وَلَقَدْ يَسَّرْنَا الْقُرْآنَ لِلذِّكْرِ فَهَلْ مِن مُّدَّكِرٍ

تفسير

# احسن الكلام

بلغة البشتو

للشيخ أبي زكريا عبد السلام الرستمي

الجزء الثامن

اتم جزء

د سورة الاحقاف نه تر سورة التحريم پورے

الناشر:

جامعة عربية لاشاعة التوحيد والسنة

بده بير - پشاور

| رُکُوْعَاتُهَا ۴ | اٰیَاتُهَا ۳۵ | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِیْمِ | سُوْرَةُ الْاَحْقَافِ ۴۶ مَکِّیَّةٌ ۶۶ |
|---|---|---|---|

حٰمٓ ① تَنْزِيْلُ الْكِتٰبِ مِنَ اللّٰهِ الْعَزِيْزِ الْحَكِيْمِ ②

اللہ تعالیٰ ته دے په مراد ښه پوهیږی. نازلول د دے کتاب د طرف د الله تعالیٰ نه دی چه زورا ور حکمتونو والا دے.

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

## سُوْرَةُ الْاَحْقَافِ

ربط دَ دے سورت دَ ماقبل سره په ډیرو وجوهو سره دے وجه اول داده چه په هغه سورت کښ امر په اتباع دَ شریعت سره وُو نو په دے سورت کښ تصدیق دَ شریعت په اثبات دَ صدق دَ نبی او دَ صدق دَ قران سره ذکر کوی. دویمه وجه داده هغه کښ سورت کښ آیات عقلیه او وحییه ذکر شول په توحید باندے نو په دے سورت کښ په هغے باندے تفریع ده په رد دَ شرك فی القدرة والعلم سره. دریمه وجه داده چه په هغه سورت کښ تخویف اخروی ذکر شوید ے او په دے سورت کښ تخویف دنیوی ذکر کوی په واقعه دَ عادیانو سره او ورسره داهم ذکر کوی چه داعذابونه دَ دے مشرکانو الِهه من دون الله تعالیٰ نشی دفع کولے.

دَعوىٰ دَ سورت. رد دے په شبهه دَ مشرکانو باندے چه معبودان من دون الله وسیلے گنړی او سبب دَ نجات ورکولو ئے گنړی نو په ۲۸ کښ دَ هغے جواب کوی په اثبات دَ صدق دَ نبی او دَ قران نه په تردید دَ اقسامو دَ شرک کښ. شرك فی التصرف. او فی العلم او فی الدعاء او فی العبادة او اثبات دَ صدق دَ نبی او دَ قران دے په تصدیق کولو دَ جناتو سره.

خلاصه دَ سورت داده. په دے کښ دوه بابونه دی اول باب تر ۱۵ پورے دے په دے کښ اول ترغیب الی القران دے بیا زجرونه دی اول زجر په اعراض کولو سره دَ آیاتِ وحییه (قران) او عقلیه نه او دویم زجر په رد دَ شرک فی التصرف په طلب دَ دلیل سره دَ مشرکانو نه دریم زجر په رد دَ شرک فی العلم او فی الدعاء سره څلورم زجر په انکار دَ قران سره بیا صداقت دَ قران او دَ رسول ذکر کوی سره دَ دلیل نقلی دَ کتاب دَ موسیٰ علیه السلام نه بیا بشارت دے.

تفسیر ۱ په دے ایت کښ ترغیب الی القران دے او اشاره ده ۳ ایاتے په بل مخ ؟

مَا خَلَقْنَا السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضَ وَمَا بَيْنَهُمَآ اِلَّا

نه دی پیدا کړی مونږ اسمانونه او زمکه او هغه چه دَ دے په مینځ کښ دی مګر

بِالْحَقِّ وَاَجَلٍ مُّسَمًّى وَالَّذِيْنَ كَفَرُوْا عَمَّآ اُنْذِرُوْا

په فائده او نیټے مقررے سره او کافران خلق دَ هغه څه نه چه دوی له پرے ویره ورکیدیشی

مُعْرِضُوْنَ ۝۳ قُلْ اَرَءَيْتُمْ مَّا تَدْعُوْنَ مِنْ دُوْنِ

مخ ګرځوونکی دی . ته او وایه خبر کړئ ما له په باره دَ هغه چا کښ چه تاسو ورته رامعبود شو ـ وایئ سیوا

اللّٰهِ اَرُوْنِيْ مَاذَا خَلَقُوْا مِنَ الْاَرْضِ اَمْ لَهُمْ

دَ الله تعالی نه او ښایئ ما ته هغه څه دی چه دوی پیدا کړیدی دَ زمکے دَ څیزونو نه ایا دوی لره شته دے

دَ سورت راتلونکے مضمون ؒ چه وحی دَ الله تعالی ده څه بے دلیله خبره نه ده .

سـ۲ـ په دے کښ اشاره ده چه راتلونکے مضمون دَ عقلی دلیلونو سره هم برابر دے یعنی دا نظام علوی او سفلی او وسطی دلالت کوی په توحید او په بعث بعد الموت باندے . وَالَّذِيْنَ كَفَرُوْا دا زجر دے په اعراض کولو سره عَمَّآ (ما) موصوله یا مصدریه دے .

سـ۳ـ په دے کښ طلب دَ دلیل دے دَ معرضینو نه دَ دعوی په شرک باندے او زجر دے په شرک فی التصرف باندے او هم داسے تیر شوی دی سورة فاطر سـ۴ـ کښ حاصل دا دے چه په زمکه کښ خلق یا په اسمان کښ شرکت په تصرف کښ دلیل دے په الوهیت باندے نو که ستاسو الٰهو کښ دَ دے نه یو قدرت وی نو اوښایئ . او دا دلیل عقلی دے او که داسے نه وی نو دلیل نقلی دَ کتاب دَ الله تعالی یا دَ مخکښنو پیغمبرانو دَ اثارو ، احادیثو نه پیش کړئ په الوهیت دَ معبودانو ستاسو باندے مَا تَدْعُوْنَ سورة فاطر کښ دَ شرکاء لفظ هم ویلے وو ځکه چه په هغه سورت کښ مخکښ دَ شرک دَ مشرکانو تفصیل کړے شوے دے . اِيْتُوْنِيْ بِكِتٰبٍ مراد دَ دے نه منزّل کتاب دے په قرینه دَ سورة فاطر سره چه په هغے کښ اٰتَيْنٰهُمْ ویلے وو . من قبل هٰذا یعنی نازل شویدی مخکښ دَ قران نه چه هغه تورات ، انجیل ، زبور دی او هر کله چه دا کتابونه مشرکانو ته نه دی ورکړے شوی دَ دے وجے نه په دے ایت کښ اٰتَيْنٰهُمْ نه دے ذکر کړے . او اَثٰرَةٍ مِّنْ عِلْمٍ نقل دے دَ عکرمه او مجاهد نه چه مراد دَ دے نه روایت نقل کړے شوے دے دَ انبیاء علیهم السلام نه چه هغے ته په اصطلاح دَ شرع کښ احادیث ویلے کیدے شی په دیکښ اشاره ده

شِرْكٌ فِي السَّمٰوٰتِ ۖ اِيْتُوْنِيْ بِكِتٰبٍ مِّنْ قَبْلِ هٰذَآ

برخه په اسمانونو کښې راوړئ ما ته کتاب (چه نازل شوی وی) مخکښې د دے کتاب نه

اَوْ اَثٰرَةٍ مِّنْ عِلْمٍ اِنْ كُنْتُمْ صٰدِقِيْنَ ﴿۴﴾ وَمَنْ

یا را نقل کړے شوے دلیل (د مخکنو نه) که چرے تاسو رشتنی یئ . او څوک دے

اَضَلُّ مِمَّنْ يَّدْعُوْا مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ مَنْ لَّا يَسْتَجِيْبُ

زیات گمراه د هغه چا نه چه رامدد شه وائی سیوا د الله تعالیٰ نه هغه چا ته چه نشی پوره کولے (حاجت)

لَهٗٓ اِلٰى يَوْمِ الْقِيٰمَةِ وَهُمْ عَنْ دُعَآئِهِمْ

د ده لره تر ورځ د قیامت پورے او دوی د هغوی د بلنے نه

غٰفِلُوْنَ ﴿۵﴾ وَاِذَا حُشِرَ النَّاسُ كَانُوْا لَهُمْ اَعْدَآءً وَّكَانُوْا

ناخبره دی . او کوم وخت چه راجمع کړیشی خلق نوشی به دوی هغوی لره دُشمنان او دوی به شی

چه دلیل شرعی صرف کتاب الله وی یا احادیث د پیغمبر د دے نه بغیر په بل څیز سره صدق نه ثابتیږی د دے وجے نه اِنْ كُنْتُمْ صٰدِقِيْنَ ئے ذکر کړو.

سه دا بل هم زجر دے په شرک فی الدعاء والعلم باندے روستو د رد د شرک فی التصرف نه وَمَنْ اَضَلُّ دا استفهام (تپوس) دے په طریقه د نفی سره او دا راغلی په بشکاره خبره کښې د اَضَلُّ نه مراد کافر دے ځکه چه کفر اخری درجه د گمراهئ ده. مِمَّنْ يَّدْعُوْا د دُعا نه مراد حاجت غوښتل او رامدد شه ویل دی په دے عقیده باندے چه دا حاجت روا او اختیارمند د نفع او ضرر دے او دا دُعا اصل عبادت دے د دے وجے نه بعض مفسرینو د یدعوا په تفسیر کښې یعبد لیکلی دے. مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ مَنْ لَّا يَسْتَجِيْبُ لفظ من دون الله خو نول ماسوی الله ته عام دے که ژوندی وی او که مړه وی بتان وی او که روح والا وی اولیاء وی او که انبیاء وی او لفظ د مَنْ خاص دے په عقل والو پورے که مړه وی او که ژوندی نو دا بدل د خاص دے د عام نه او په دے کښې اشاره ده که څوک د بتانو بندگی کوی هم نو د هغوی مقصد بُتان نه وی بلکه هغه شخص وی چه دا بُت د هغه جوړ کړے شوے دے نو کوم خلق چه وائی چه په دے ایت او د دے پشان نورو ایاتونو کښې صرف بُت پرستان مراد دی نو دا سے (رباقی په بل مخ)

بِعِبَادَتِهِمْ كٰفِرِيْنَ ۞ وَاِذَا تُتْلٰى عَلَيْهِمْ اٰيٰتُنَا بَيِّنٰتٍ

ذ بندګئ دَ هغوی نه انکار کوونکی. اوکوم وخت چه اولوستلی شی په دوی باندې آیاتونه زمونږ ښکاره

قَالَ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا لِلْحَقِّ لَمَّا جَآءَهُمْ هٰذَا سِحْرٌ

نو وائي کافران په باره دَ حق کښ هر کله چه دوی ته راغې چه دا جادو دے

خلق دَ قرآن په حقیقت نه پوهیږی بلکه تحریف کوی. تفسیر ابن کثیر، قرطبی، سراج المنیر، خازن وغیره ټولو تصریح کړے ده چه دا آیت شامل اوعام دے عابدانو دَ ملائکواودَ عیسٰی علیه السّلام او دَ پیرانو وغیره ته. لَا یَسْتَجِیْبُ لَهٗٓ یعنی دَ دوی هیڅ حاجت نه شی پوره کولے نه ورله څه فائده وررسولے شی او نه ضرر او دا شامل دے دِ خبرے ته چه مړی دَ دے ژوندو دَ پاره دُعا هم نشي غوختلے که دوی ورته دُعا طلب کوی، ځکه چه دُعا غوښتل هم استجابت دے. اِلٰی یَوْمِ الْقِیٰمَةِ په دے کښ دیر تاکید دے یعنی مشرک دِ دا خیال نه کوی چه زما دُعا ئې اوس قبوله نه کړه نو څه وخت روستو به قبوله کړی بلکه تر قیامته پورے نه شی قبلیدلے. او هرچه په قیامت کښ دے نو اګرچه حاجت روائي نه شی کولے لیکن مخاطبه به دَ یو بل سره اوکړی لکه نورو آیاتونو کښ ثابته شوے ده. وَهُمْ عَنْ دُعَآئِهِمْ غٰفِلُوْنَ دَ غفلت نه مراد نه اوریدل دی لکه سورة یونس سه ۲۹ او سورة فاطر سه ۱۴ کښ تیر شویدی لفظ دَ هم او غافلون او صفت دَ غفلت هم دلالت کوی چه دا خاص نه دے په بتانو پورے. او دا معبودان دَ دعا نه ځکه غافل دی چه څوک لرے وی او څوک نزدے وی لیکن مړه دی او مړے خو نه اوری او یا دا چه دَ مشرک آواز او دُعا وغیره ورته الله تعالٰی نه اوری دغسے تفصیل په سورة فاطر کښ تیر شوے دے.

سه لفظ دَ حشر او عداوت اوکفر (انکار) هم دلیل دے چه دا آیت په باره دَ بتانو کښ نه دے مګر هله چه مجاز کیږی لیکن چه هر کله حقیقت کیدے شی نو مجاز مراد کول جائز نه دی. کَانُوْا لَهُمْ ضمیر دَ کانوا معبودانو ته راجع دے او ضمیر دَ لهم عابدانو ته او دارنګ وَکَانُوْا بِعِبَادَتِهِمْ اول ضمیر معبودانو ته او دویم عابدانو ته راجع دے یعنی لکه دُشمن چه دُشمن سره خبرے نه کوی او براءت ترینه کوی دغسے به دا معبودان دَ عابدانو سره خبرے نه کوی او دَ هغوی دَ عبادتونو نه به انکار کوی لکه سورة یونس سه ۲۸ کښ او دا انکار دَ وجے دَ ناخبرئ نه دے.

مُّبِيْنٌ ۞ اَمْ يَقُوْلُوْنَ افْتَرٰىهُ ؕ قُلْ اِنِ افْتَرَيْتُهٗ فَلَا

ښکاره . آیا دوی وائي چه دا ئې دَ ځان نه جوړ کړیدے ته او وایه که چرے ما دَ ځان نه جوړ کړے وی نو

تَمْلِكُوْنَ لِيْ مِنَ اللّٰهِ شَيْـًٔا ؕ هُوَ اَعْلَمُ بِمَا تُفِيْضُوْنَ

وس نه لرئے تاسو ما لره دَ هیڅ کولو دَ عذاب دَ الله تعالیٰ نه هیڅ قسم . هغه ښه پوهه دے په هغه خبرو باندے چه نو ئې تاسو

فِيْهِ ؕ كَفٰى بِهٖ شَهِيْدًاۢ بَيْنِيْ وَبَيْنَكُمْ ؕ وَهُوَ الْغَفُوْرُ

په هغې کښ پوره دے الله تعالیٰ گواه په مینځ زما او په مینځ ستاسو کښ او خاص الله تعالیٰ بخښنه کوونکے

الرَّحِيْمُ ۞ قُلْ مَا كُنْتُ بِدْعًا مِّنَ الرُّسُلِ وَمَآ اَدْرِيْ

رحم کوونکے دے . ته او وایه زه نه یم نوے راغلے شوے دَ قسم دَ رسولانو نه او نه پوهیږم

سے دا هم بل زجر دے په انکار دَ قرآن سره یعنی هر کله چه دوی ته دَ توحید واضح ایاتونه (لکه دا تیر شوی دوه ایاتونه) اولوستلے شي نو دوی دا دروغ گنړی. لِلْحَقِّ دَ دے نه مراد دغه ایات بینات دی یا مراد دَ دے نه مضمون دَ هغې دے یعنی اثبات دَ توحید او رد دَ شرک. سِحْرٌ لکه جادو چه بے حقیقته خیالی څیز دی نو دوی (کافران) هم قرآن داسے گنړی یا سحر په معنیٰ دَ کذب او باطل دے لکه قاموس او نورو کتابونو دَ لغت کښ لیکلے دی.

سے دا بل زجر دے په انکار دَ قرآن سره دَ مخکښې نه ترقی ده ځکه چه دَ سحر په معنیٰ کښ بل څاته نسبت کول ماخوذ نه دی او دَ افتراء مراد دا دے چه دَ ځان نه ئې دروغ جوړ کړے دی نو بیا ئې الله تعالیٰ ته نسبت کړیدے . قُلْ په دے سره جواب ذکر کوی حاصل دَ جواب دا دے که بالفرض ما په الله تعالیٰ باندے دروغ جوړ کړے وی نو هغه به ضرور ماله سزا راکړے وے لکه چه سورة الحاقه سـ۴۵ سـ۴۶ کښ شته او تاسو څو ما نه خلاصولے لکه الحاقه سـ۴۷ کښ . لیکن الله تعالیٰ ماله عذاب نه دے راکړے بلکه ما دَ پاره ئې شهادت کړیدے . تُفِيْضُوْنَ فِيْهِ افاضه نه مراد په خبرو کښ ننوتل او دَ هغې تکذیب کول او هغې ته سحر ویل دی . شَهِيْدًاۢ بَيْنِيْ وَبَيْنَكُمْ په دے کښ اشاره ده هغه ایاتونو ته چه هغې کښ دلیلونه دَ اثبات دَ صدق دَ قرآن او دَ رسول ذکر شویدی هغه شهادتونه دَ الله تعالیٰ دی لکه سورة نساء سـ۱۶۶ رعد سـ۴۳ . وَهُوَ الْغَفُوْرُ الرَّحِيْمُ زجاج ویلے دی چه دا دعوت او ترغیب دے توبے او استغفار ته مشرکینو او منکرینو ټولو ته.

مَا يُفْعَلُ بِيْ وَلَا بِكُمْ ۚ اِنْ اَتَّبِعُ اِلَّا مَا يُوْحٰٓى اِلَيَّ وَمَآ

په هغه کار چه کیږی به زما سره او تاسو سره (په دنیا کښې) زه تابعداری نه کووم مګر دَ هغه چه دَ حی کیږی یشی ماته او نه یم

اَنَا اِلَّا نَذِيْرٌ مُّبِيْنٌ ۞٩ قُلْ اَرَءَيْتُمْ اِنْ كَانَ مِنْ

زهٔ مګر ویره ورکوونکے ښکاره ۔ ته اوایه خبر راکړئ که چرے وی (دا قرآن) دَ طرف

سـ ۹ په دے ایت کښې جواب دَ دوؤ شبهاتو دے چه هغکښې سره تعلق لری اوله شبهه دوی اویل چه ته مفتری دَ دے وجے نهٔ چه تا داسے دعوٰی کړے ده (یعنی دَ توحید او رسالت) چه هغکښې بل چا نه ده کړے دویمه شبهه دا ده که ته مفتری نهٔ نو مونږ ته زمونږ دَ غیبو دَ حالاتو خبر راکړه نو په دے ایت کښې علی الترتیب دَ دواړو شبهاتو جوابونه دی دَ اولے شبهے جواب قُلْ مَا كُنْتُ بِدْعًا مِّنَ الرُّسُلِ یعنی ماخه نوے مسئله دَ ځان نه داسے نه ده جوړه کړے چه دَ نورو رسولانو نه زه په هغے سره جدا شوے یم بلکه ما هغه مسئله دَ توحید او دعوٰی دَ رسالت پیش کړیده چه هغکښې رسولانو هم داسے پیش کړیوه ۔

بِدْعًا بدع او مبتدع په لغت دَ عرب کښې هر هغه نوے کار ته ویلے کیږی چه دَ هغے هغکښې مثال نه وی او دَ شریعت په اصطلاح کښې بدعت هر هغه خیز دے چه دلیل شرعی سره ثابت نه وی او شریعت ګرځولے شویوی که قول وی او که عقیده او که عمل وی او هیئت وی او که کیفیت وی او که مقدار وی او که وقت وی او که مکان وی په دلیل دَ حدیث صحیح سرهٔ مَن احدث فی امرنا هٰذا مالیس منه فهو ردٌّ نو لفظ دَ مآ دغه ټولو ته عام دے ۔

لَيْسَ مِنْهُ معنٰی دا چه هغے دَ پاره دلیل په شرع کښې نه وی او دَ دے تقسیم حسنه او سیئه یا واجب مستحب وغیره نه شی کیدے ځکه چه رسول الله صلّی الله علیه وسلّم فرمائیلی دی کل بدعة ضلالة او کوم تقسیم چه بعض اهل علمو ذکر کړے دے روستو دَ منلو دَ هغے نه ویلے کیدیشی چه هغه تقسیمات په بدعة لغویه کښې دی ۔ او دَ دویمے شبهے جواب

وَمَآ اَدْرِیْ مَا يُفْعَلُ بِيْ وَلَا بِكُمْ مراد دَ دے نه احوال دنیویه دی دَ حسن بصری نه مفسرینو نقل کړیدے چه دا په دنیا کښې دی او هر چه په اخرت کښې وی نو معاذالله ځکه چه نبی صلی الله علیه وسلم ته علم وؤچه دے بخلے شوے او جنتی دے نو دَ دُنیا دَ حالاتو په باره کښې نبی عالم الغیب نه دے دا علم ورته نه وؤچه دَ مکے معظمے نه به ویستلے کیږی او که قتل کیږی او که نه او دَ امت په باره کښې عالم نه وؤچه دوی به زما تصدیق کوی او که تکذیب او یه دوی به عذاب راځی او که نه او څه رنګ عذاب

عِنْدِ اللّٰهِ وَكَفَرْتُمْ بِهٖ وَشَهِدَ شَاهِدٌ مِّنْۢ بَنِیٓ

دَ الله تعالیٰ نه او انکار کوئے تاسو دَدهٔ نه او گواهی کړیده گواهی کوؤنکی دَ بنی

اِسْرَآءِيْلَ عَلٰى مِثْلِهٖ فَاٰمَنَ وَاسْتَكْبَرْتُمْ ؕ اِنَّ اللّٰهَ

اسرائیلو نه دَ دے په مثل (کتاب) باندے نو هغه ایمان هم راوړے دے او تاسو لوئی کوئے، یقینًا الله تعالیٰ

لَا يَهْدِی الْقَوْمَ الظّٰلِمِيْنَ ﴿۱۰﴾ ع وَقَالَ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا

(توفیق) دَ هدایت نه ورکوی قوم ظلم کوؤنکو ته - او وائی کافران

لِلَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لَوْ كَانَ خَيْرًا مَّا سَبَقُوْنَآ اِلَيْهِ ؕ وَاِذْ

مؤمنانو (ته ئې او روی) که چرے دا حق وے نو مخکښ شوے به نه وؤ دوی زمونږ نه دے ته او هر کله چه

به وړاندے راځی په دلیل دَ سورة اعراف ۱۸۸ - او نمل ۶۵ انعام ۵۰ سره -
سوال :- حدیث دَام العلاء الانصاریه کښ خو وارد دی (په یاره دَ عاقبت کښ) والله وانا رسول الله وما ادری مایفعل بی ولا بکم - جواب دا دے چه په دے روایت کښ صحیح الفاظ دا دی ما ادری مایفعل به لکه چه امام بخاری راوړے دے او تر دے رانګ قرطبی او ابن کثیر هم ویلے دی - اِنْ اَتَّبِعُ اه په دے روستو دواړه جملو کښ شان دَ رسول ذکر کړے شوے دے -

۱۰ دا هم زجر دے په انکار دَ قرآن سره دَ اثبات دَ صداقت دَ قرآن په شهادت سره اِنْ كَانَ دَ دے شرط جزاء دَ واستکبرتم نه روستو محذوف ده فقد ظلمتم.
شَاهِدٌ مِّنْۢ بَنِیٓ اِسْرَآءِيْلَ غوره دا ده چه مراد دَ شاهد نه موسیٰ علیه السّلام او مثله نه مراد تورات دے یعنی موسیٰ علیه السّلام دَ تورات بیان کړے وؤ چه دا کتاب دَ الله تعالیٰ دَ طرف نه نازل شوے دے او په هغے کښ مضمون دَ توحید او رسالت او بعث بعد الموت وؤ - مِثْلِهٖ مراد دَ دے نه مماثلت دے په نزول من الله کښ او په مضمون کښ او مماثل دَ قرآن نیشته په فصاحت او بلاغت کښ -

لَمْ يَهْتَدُوْا بِهٖ فَسَيَقُوْلُوْنَ هٰذَآ اِفْكٌ قَدِيْمٌ ⑪

بوهه نه لري په دے كتاب نو ضرور وائي دوى چه دا دروغ (جوړ كړے شوى) زاړه دى .

وَمِنْ قَبْلِهٖ كِتٰبُ مُوْسٰۤى اِمَامًا وَّرَحْمَةً ۭ وَهٰذَا

او مخكښ د دينه كتاب د موسى عليه السلام (نازل كړے شوے دے) پيشوا اورحمت . او دا

كِتٰبٌ مُّصَدِّقٌ لِّسَانًا عَرَبِيًّا لِّيُنْذِرَ الَّذِيْنَ ظَلَمُوْا ۖ

كتاب دے تصديق كوونكے دے ژبه عربي ده د پاره د دے چه ويره وركړي ظالمانو لره

سلا دا بل زجر دے په منكرينو د قران باندے. او طريقه د انكار دا ده چه كوم صحابه كرامو ايمان راوړے وو نو اكثر فقراء مسكينان وو نو متكبرينو به ويل چه دوى خو كم عقل دى د دوى ايمان دليل د حقانيت او خيريت نه دے بلكه دا كه خير وى نو موږ به د دوى نه وړاندے وے ځكه چه موږ هوښيار يو. قرطبي د ماوردي نه نقل كړے دى چه دا معارضه خو واپس كيږي په دوى باندے ځكه هر مخالف بل ته ويلے شي كه ستا خيره حق وے نو موږ به د هغے خلاف نه وے كړے او كه تكذيب د رسول خير وے نو تاسو به زموږ نه مخكښ والے نه وے كړے ځكه چه كل حزب بما لديهم فرحون. او ښن هم دشمنان د صحابه كرامو دا سے وائي او ابن كثير ويلے دى چه خوك اهل سنت والجماعة وى (د هغوى په زړونو كښ عزت او احترام د صحابه كرامو دے) نو هغوى وائي كُلُّ فِعْلٍ وَقَوْلٍ لَمْ يُثْبَتْ عَنِ الصَّحَابَةِ فَهُوَ بِدْعَةٌ لِاَنَّهٗ لَوْ كَانَ خَيْرًا لَسَبَقُوْنَا اِلَيْهِ لِاَنَّهُمْ لَمْ يَتْرُكُوْا خَصْلَةً مِنْ خِصَالِ الْخَيْرِ اِلَّا وَقَدْ بَادَرُوْا اِلَيْهَا (هر كار او وينا چه د صحابه كرامو نه ثابته نه وى نو هغه بدعت دے ځكه كه دغه خير بنه كار وے نو صحابو زموږ نه مخكښ كړے وے ځكه چه هغوى هيڅ خصلت د خير د خصلتونو نه پريخودے نه دے بلكه هغے ته ئے روانيدے والے كړے دے) او دا جمله د رد د بدعاتو (عقيدةً او عملاً) د پاره پوره قانون دے لكه تاويل په صفاتو د الله تعالى كښ. وسيلے په قبرونو والوسره. عُرس، عيد ميلاد النبي، حيله اسقاط او د جنازو بدعات وغيره كه دا ښه كارونه وے نو موږ نه به مخكښ صحابه كرامو كړے وے. لِلَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لام د خطاب دے نو ماسبقونا كښ التفات دے د خطاب نه غيبت ته. يا لام شانيه دے نو سبقونا په خپله معنى سره دے.

وَاِذْ لَمْ يَهْتَدُوْا اه دا دليل دے چه خوك په يو څيز باندے پوهه نه لري نو تكذيب او خلاف ئے كوي

وَبُشْرٰى لِلْمُحْسِنِيْنَ ﴿۱۲﴾ اِنَّ الَّذِيْنَ قَالُوْا رَبُّنَا اللّٰهُ

او زیرے دَ پاره دَ خائسته عمل کوؤنکو۔ یقینًا هغه کسان چه وائي دوی رب زمونږ الله تعالیٰ دے

ثُمَّ اسْتَقَامُوْا فَلَا خَوْفٌ عَلَيْهِمْ وَلَا هُمْ يَحْزَنُوْنَ ﴿۱۳﴾

بیا پاخه دی ریه ایمان باندے) نو نیشته هیڅ ویره په دوی باندے او نه په دوی غمژن کیږی۔

اُولٰٓئِكَ اَصْحٰبُ الْجَنَّةِ خٰلِدِيْنَ فِيْهَا ۚ جَزَآءً ۢ بِمَا

دغه کسان جنت والا دی همیشه به وی په هغے کښ بدله ورکیدیشی دَ هغه

كَانُوْا يَعْمَلُوْنَ ﴿۱۴﴾ وَوَصَّيْنَا الْاِنْسَانَ بِوَالِدَيْهِ اِحْسٰنًا ؕ

چه دوی عملونه کول۔ او پوخ حکم ورکړیدے مونږ انسان ته دَ مور او پلار سره دَ ښیګړے کولو

سـ۱۲ دا دلیل نقلی او ترغیب دے قران ته اِمَامًا یعنی په هغے کښ داسے دلیلونه دَ توحید او دَ صداقت دَ اخری رسول وؤ چه اقتداء دَ هغے ضروری وه وَرَحْمَةً یعنی په هغے کښ داسے عقیده او مسائل او احکام وؤ چه هغه عین رحمت دَ الله تعالیٰ وؤ او دا رنګ په هغے باندے عمل کول سبب دَ خاص رحمت دَ الله تعالیٰ وؤ او دلته عبارت کښ تقدیر دے یعنی دوی په هغے سره هدایت حاصل نه کړو بلکه خلاف او تکذیب ئے اوکړو۔ وَهٰذَا كِتٰبٌ دا ترغیب دے قران ته په ذکر کولو دَ دوه صفتونو دَ کمال او ذکر دَ دوه فائدو دے وَبُشْرٰى دا په معنیٰ دَ وَيُبَشِّرَ دے عطف دے په لینذر باندے لِلْمُحْسِنِيْنَ مراد دَ دے نه هغه کسان دی چه عمل کوی په قران باندے۔

سـ۱۳ سـ۱۴ تر دے ایت پورے ذکر دَ حالاتو دَ منکرینو وؤ او هغوی ته زواجر او جوابونه وؤ اوس ذکر کوی صفات دَ مؤمنانو او هغوی ته بشارت دے او تفسیر دَ دے په سورة حٰمٓ سجدة سـ۳۱ کښ تیر شوی دے هرکله چه په هغه سورت کښ مقام دَ دعوت کوونکو وؤ نو دَ هغے دَ اهمیت دَ وجے نه په بشارت کښ ډیر تفصیل وؤ او دلته اختصار دے۔

حَمَلَتۡهُ اُمُّهٗ كُرۡهًا وَّوَضَعَتۡهُ كُرۡهًا ؕ وَحَمۡلُهٗ وَفِصٰلُهٗ

پورته کړے دے دهٔ لره مور دَدهٔ په تکلیف سره او زیګولے دے دهٔ لره په تکلیف سره او پورته کول ددهٔ او د سینے نه بیلول ددهٔ

ثَلٰثُوۡنَ شَهۡرًا ؕ حَتّٰۤى اِذَا بَلَغَ اَشُدَّهٗ وَبَلَغَ اَرۡبَعِيۡنَ

دیرش میاشتے دی ترهغے پورے چه اورسی کلک والی ته او اورسی څلویښت

سَنَةً ۙ قَالَ رَبِّ اَوۡزِعۡنِىۡۤ اَنۡ اَشۡكُرَ نِعۡمَتَكَ الَّتِىۡۤ

کالو ته نو وائی دے اے ربه زما توفیق راکړے ما ته چه شکر اوکړم دَ نعمتونو ستا هغه

اَنۡعَمۡتَ عَلَىَّ وَعَلٰى وَالِدَىَّ وَاَنۡ اَعۡمَلَ صَالِحًا

چه تا پیرزو کړے دی په ما باندے او په مور او پلار زما باندے. او چه عمل اوکړم دَ سنت په برابر

تَرۡضٰٮهُ وَاَصۡلِحۡ لِىۡ فِىۡ ذُرِّيَّتِىۡ ؕ اِنِّىۡ تُبۡتُ اِلَيۡكَ

چه ته ئے خوښ کړے او صلاحیت راکړے ما لره په اولاد زما کښ یقیناً ما توبه کړیده تا ته

وَاِنِّىۡ مِنَ الۡمُسۡلِمِيۡنَ ﴿۱۵﴾ اُولٰٓئِكَ الَّذِيۡنَ نَتَقَبَّلُ

او یقیناً زهٔ دَ پوره حکمونو منونکو نه یم. دا سے خلق هغه دی چه قبلوؤ مونږ

سـ۱۵ دَ دے ایت نه دویم باب دے تر اخر دَ سورت پورے په دیکښ ذکر دَ دوه قسمه انسانانو دے اول قسم محسن دَ والدینو او الله تعالیٰ ته توبه کوونکے او هغه ته بشارت دے او دویم قسم نافرمان دَ والدینو او مکذّب او هغه ته تخویف اخروی. بیا تخویف دنیوی په ذکر دَ واقعه دَ عادیانو دے او جواب دَ شبهے دَ مشرکانو چه الٰهه دَ دوی مدد نشی کولے. بیا دلیل نقلی دَ جن نه دَ پاره دَ تشجیع په دعوة الی القرآن او صداقة رسول او اثبات دَ قیامت او اختتام په تشجیع سره په صبر کولو او تخویف منکرینو ته.

ربط هرکله چه تیرشوی ایانو کښ دوه قسمه انسانان ذکر شول چه دَ نبی صلی الله علیه وسلّم او دَ قرآن په باره کښ څوک تکذیب دَ هغه کوی او څوک ئے تصدیق کوی نو اوس ذکر کوی دَ دواړه قسمو نه په باره دَ والدینو کښ او په دے کښ تسلی ده نبی صلی الله علیه وسلّم ته چه هرکله مور او پلار دَ انسان دَ پاره ظاهری قریبی احسان کوونکی دی لیکن بعضے اولاد ئے اطاعت کوی او بعضے ئے نافرمانی کوی نو دارنګ دَ نبی صلی الله علیه وسلم په باره کښ هم دوه قسمه انسانان دی. په دے سـ۱۵ کښ ذکر دَ اول قسم دے.

وَوَصَّيْنَا دا عطف دے په معنیٰ دَ تیر شوی مضمون باندے یعنی مخکښې حکم دَ الله تعالیٰ دے په باره دَ اصولو دَ دین کښې نو اوس حکم دَ هغه دے په باره دَ والدینو کښې. اِحْسَانًا نیکی کول دَ والدینو سره عام او مطلق دی او اطاعت دَ هغوی مقید دے په عدم معصیت پورے او احسان په قول او عمل او خدمت او خرچ کول په هغوی باندے په وخت دَ حاجت دَ هغوی کښې او امر بالمعروف او نهی عن المنکر په نرمه لهجه سره دے ټولو ته احسان شامل دے. حَمَلَتْهُ اُمُّهٗ كُرْهًا هر کله چه دَ پلار دَ احسان اقرار (اکثر) مجبورًا کیدے شی دَ دے وجے نه چه دَ هغه نه ویره کیدے شی لیکن مور کمزورے وی نو دَ دے وجے نه انسانانو ته دَ مور تکالیف په تربیت کولو کښې درے قسمونه ذکر کوی. یو حمل، دویم وضع دَ حمل، دریم سینه ورکول او بیا دَ سینے نه پریکول او دَ هغے موده ئے ذکر کړے ده دوه نیم کاله نو معلومه شوه چه دَ مور حق په نسبت دَ پلار سره ډیر دے. كُرْهًا كِسائی او قراء ویلے دی چه کرهًا په پیښ سره هغه تکلیف دے چه انسان ئے مخپله پورته کوی او په زوَر سره هغه دے چه په بل چا باندے تکلیف اچوی. او هر کله چه دَ دے تکلیفونو اثر دَ مور کمزورے کول دی دَ دے وجے نه سورة لقمان کښې دَ دے نه تعبیر کړے وَهْنٍ په وهن سره. وَحَمْلُهٗ وَفِصَالُهٗ دلته عبارت کښې تقدیر دے یعنی ومدة حمله ومدة فصاله ثلثون شهرًا روایت دَ ابن عباس رضی الله عنهما چه قرطبی او ابن کثیر وغیره راوړے دے دَ هغے مقصد دا دے چه دا دیرش میاشتے تقسیم دی په دواړه حالتونو باندے یعنی کله چه په حمل باندے نهه میاشتے تیرے شی نو رضاعت به یوویشت میاشتے وی او که حمل شپږ میاشتے وی نو رضاعت به دوه کاله وی علی هذا القیاس.

نو هر کله چه رضاعت دَ دوه کالو نه زیاتی کول منع دی په دلیل دَ سورة بقره ~~۲۳۳~~ سره نو معلومه شوه چه دَ حمل دَ پیدا ئش کمه موده شپږ میاشتے دی دَ دے نه کم نشی کیدے او په دے کښې قرطبی واقعه دَ عثمان رضی الله عنه نقل کړیده چه یو زنانه دَ وخت دَ نکاح نه شپږ میاشتے روستو ولد راوړو نو هغه اراده اوکړه چه په دے باندے حد دَ زنا قائم کړی نو علی رضی الله عنه منع کړو او په دے آیت سره ئے دلیل پیش کړو او دا سے واقعه شربینی دَ ابوبکر او عمر رضی الله عنهما باره کښې هم ذکر کړیده - او هر کله چه دا دیرش میاشتے دَ دے دواړه حالتونو دَ پاره مشترکے دی لکه چه مخکښې بیان شو دَ دے وجے نه یو ځائے ذکر کړو. دویم قول قرطبی دا سے ذکر کړے دے چه عادةً موده دَ حمل نهه میاشتے ده او دَ رضاعت دوه کاله دی لیکن اول درے میاشتے دَ بچی درون ولے زیاتے په بل مخ

په ګېډه کښې نه محسوس کېږي او دَ حمل نه مراد دروند والے دے دَ دے وجې هغې درے میاشتې اولنۍ ورسره شمار کړے نه دي . او په ایت کښې زیاته موده دَ حمل نه ده ذکر کړے دَ دے وجې نه په هغې کښې دَ ائمو ډېر اختلاف دے . دریم تفسیر مدارک کښې ذکر کړے دے چه دَ حمل نه مراد دَ امام ابوحنیفه رحمة الله په نیز بانده په لاسو کښې ګرځول دي او ثلثون شهرًا ټوله دَ رضاعت موده ده یعنې دوه نیم کاله. لیکن دا تفسیر ضعیف دے په څو وجوهو سره اول وجه دَ حمله نه دا معنٰی مراد اغستل دَ صحابه کرامو تابعینو نه نقل نه ده دویمه وجه دَ امام صاحب نه دا روایت په ظاهر روایت یا نادر روایت کښې زمونږ په علم کښې نه دے ثابت شوے دریمه وجه دَ بچي په لاسونو کښې دَ ګرځولو دَپاره دَ مودے څه تعیین نیشته ځکه چه اکثر ګرځیدل دَ بچي دَ یو کال په عمر کښې شورو کېږي او دَ دوه کاله یا دوه نیم کلونو بچې خو په منډه منډه په زمکه بانده ګرځي په لاسونو کښې پورته کولو ته محتاج نه وي - څلورمه وجه دا چه دَ امام ابوحنیفه رحمة الله په نیز چه موده دَ رضاعت دوه نیم کاله ده دا دَ ظاهر ایت دَ سورة بقره ۲۳۳ نه خلاف دے اګرچه په هغې کښې تاویلونه کیدے شي او ملا علي قاري شرح نقایه کښې ویلي دي چه فتوٰی په قول دَ صاحبینو باندے ده چه موده دَ رضاعت دوه کلونه دي. حَتّٰٓى اِذَا بَلَغَ اَشُدَّهٗ ، په عبارت کښې تقدیر دے یعنې استمرت حیا نه یعنې ژوند ئې تېرېږي تر دے پورے چه اورسیږي. اَشُدَّهٗ مراد دَ دے نه بلوغ دے یا اتلس کلونه یا دَ دیرش کلونه دَ دا اقوال مختلفه دَ مفسرینو دي. وَبَلَغَ اَرْبَعِيْنَ سَنَةً اشاره ده چه عقل دَ انسان پوره کېږي په وخت دَ څلویښت کاله کښې نو که دَ دے نه پروانه دے دَ هلکوالے یا دَ ځوانۍ په سبب چه غلط کارونه ئې کړے وي لیکن کله چه څلویښت کالو ته اورسیږي نو اسباب دَ ګناهونو ئې کمزوري شول او عقل ئې پوره شو اوس خو ضرور توبه اوباسي او شکر ګذار ئې ته ملا او تړي او دا هم خوش قسمتي دَ انسان ده - قَالَ رَبِّ اَوْزِعْنِيْٓ په دے کښې اشاره ده چه اوس ئې پوره توجه شکر دَ الله تعالٰی ته پیدا شوه لیکن انسان په شکر کولو کښې هم توفیق دَ الله تعالٰی ته محتاج دے ځکه دعا غواړي رب اوزعني وزع په اصل کښې تقسیم او برخې کولو ته وائي او الهام او توفیق دَ شکر خائسته برخه ده - اَنْ اَشْكُرَ نِعْمَتَكَ نظم الدرر کښې لیکلي دي چه لوے شکر دَ نعمتِ الٰهي توحید في العبادات دے .
وَاَنْ اَعْمَلَ صَالِحًا تَرْضٰىهُ تَرْضٰىهُ تفسیر دَ صالح دے یعنې چه موافق وي دَ کتاب او سنت سره یا تَرْضٰىهُ په معنٰی دَ قبولیت دے یعنې عمل اګرچه صالح وي لیکن

عَنْهُمْ اَحْسَنَ مَا عَمِلُوْا وَنَتَجَاوَزُ عَنْ سَيِّاٰتِهِمْ

دَ دوی نه ډیر ښائسته عملونه چه دوی کړي دي او تیریدل کوؤ مونږ دَ ګناهونو دَ دوی نه

فِيْٓ اَصْحٰبِ الْجَنَّةِ ۭ وَعْدَ الصِّدْقِ الَّذِيْ كَانُوْا

وی به دوی په جنت والو کښ. وعده دَ رښتین والی هغه چه کیدے شوه

يُوْعَدُوْنَ ⑯ وَالَّذِيْ قَالَ لِوَالِدَيْهِ اُفٍّ لَّكُمَآ

وعده دَ دوی سره. او هغه څوک چه اُوبل ئې مور او پلار خپل ته افسوس دے په تاسو دواړو

اَتَعِدٰنِنِيْٓ اَنْ اُخْرَجَ وَقَدْ خَلَتِ الْقُرُوْنُ مِنْ

آیا ویره وئے تاسو ماله چه زه به بیا راوُویستلے شم (دَ زمکے نه) او حال دا چه تیر شوی دی ډیرے پیړئ زما نه

قبلول په اختیار دَ الله تعالىٰ کښ دی. وَ اَصْلِحْ لِيْ فِيْ ذُرِّيَّتِيْ صلاحیت دَ اولاد اشاره ده بقاء او اجراء دَ توحید او دَ عمل صالح ته په اولاد دَ ده کښ او صلاحیت دَ اولاد هم فائده ده دَ پاره دَ والدینو او هر کله چه دلته اجراء دَ صلاحیت مراد ده دَ دے وجے نه متعدی کړو په فِيْ سره. اِنِّيْ تُبْتُ اِلَيْكَ مراد دا چه هغه عوارض دَ ځوانئ او غلبه دَ شهوا تو چه ورسره دَ عقل کموالے هم وو دَ هغے ټولو نه ما رجوع اوکړه. وَاِنِّيْ مِنَ الْمُسْلِمِيْنَ په توبه کښ صفاتِ سلبیه ته اشاره ده چه دَ نافرمانئ نه پاک کیدل دی او په المسلمین کښ صفات ثبوتیه ته اشاره ده یعنی پوره تابعداری کول.

سلا دا بشارت دے دَ پاره دَ دے قِسم کسانو او لفظ دَ اُولٰٓئِكَ دلیل دے چه دغه آیت محکمے خاص په یو شخص پورے نه دے لکه بعضِ مفسرینو سبب نزول کښ نبی صلّی الله علیه وسلّم ذکر کړے دے او بعضو ابوبکر رضی الله عنه. اَحْسَنَ مَا عَمِلُوْا مراد دَ دے نه ټول حسنات دی نو احسن په معنیٰ دَ هغه خیر دے چه په هغه کښ صفت دَ حسن وی یا احسن مقابل دَ حسن دے او حسن مباح ته ویلے کیږی چه نه په هغے کښ ثواب وی او نه عذاب. فِيْٓ اَصْحٰبِ الْجَنَّةِ حال دے په تقدیر دَ کائنین سره یا خبر دَ مبتدا ایښ دے یعنی هم فی اصحاب الجنة. وَعْدَ الصِّدْقِ دا تیر شوے جملے په معنیٰ دَ وعدے کښ دی نو دا مفعول مطلق دے دَ تاکید دَ دغه مضمون دَ پاره او فعل ئې پټ دے. وَعَدَ اللّٰهُ وَعْدَ الصِّدْقِ او دا اضافت دَ موصوف دے یا اضافتِ بیانیه دے.

قَبۡلِیۡ ۚ وَ هُمَا یَسۡتَغِیۡثٰنِ اللّٰهَ وَیۡلَكَ اٰمِنۡ ٭ۖ اِنَّ

مخکښ او دے دواړه فریاد کوؤ الله تعالیٰ ته ردځوئي په باره کښ) تباه به شے ایمان راوړه یقینًا

وَعۡدَ اللّٰهِ حَقٌّ ۚۖ فَیَقُوۡلُ مَا هٰذَاۤ اِلَّاۤ اَسَاطِیۡرُ

وعده د الله تعالیٰ رښتیا ده نو وائي نه دی دا مګر نقل شوے (دروغ) قصے

الۡاَوَّلِیۡنَ ﴿۱۷﴾ اُولٰٓئِكَ الَّذِیۡنَ حَقَّ عَلَیۡهِمُ الۡقَوۡلُ

د زړو خلقو دی ۔ دا هغه کسان دی چه پوره شویده په دوی باندے فیصله د عذاب

فِیۡۤ اُمَمٍ قَدۡ خَلَتۡ مِنۡ قَبۡلِهِمۡ مِّنَ الۡجِنِّ وَ

(داخلیږی) به په هغه ډلوکښ چه تیر شویدی د دوی نه مخکښ د پیریانو او

سکا دا ذکر د دویم قسم دے نافرمان د مور او پلار په مسئله د بعث بعد الموت کښ ۔ یعنی صرف د نافرمان ذکر کول مقصد نه دے اګرچه دا هم ګناه دے بلکه هغه نافرمان د والدینو مراد دی چه په اسلامی عقیده کښ د مور او پلار مخالفت کوی او دا درجه د کفر ده او قرآن کریم کښ عادةً کامل وصف والا ذکر کیږی ۔ اُفٍّ لَّکُمَاۤ تفصیل د دے سورة اسراء ۲۳ کښ تیر شویدے ۔ وَقَدۡ خَلَتِ الۡقُرُوۡنُ مِنۡ قَبۡلِیۡ دا دلیل دے د منکر د بعث چه مخکښ ډیر خلق تیر شویدی او اوسه پورے یو هم دوباره نه دے پیدا شوے او حال دا چه دا دلیل ئے باطل دے ځکه مدعا خو دا نه ده چه اوس په دنیا کښ خلق دوباره ژوندے کیږی بلکه دوباره ژوندیه د دے دنیا د فنا نه روستو دی ۔ وَهُمَا یَسۡتَغِیۡثٰنِ اللّٰهَ په دے کښ اشاره ده چه داعی الی الحق د پاره ضروری دی چه د دعوت سره د الله تعالیٰ نه د هدایت د خلقو د پاره دُعا ګانے هم غواړی ۔ وَیۡلَكَ اٰمِنۡ په دے جمله کښ تخویف او علاج دواړه ذکر کړی دی یعنی که ایمان را نوړے نو هلاک به شے او که ایمان دے راوړو نو بچ به شے د هلاکت نه ۔ اِنَّ وَعۡدَ اللّٰهِ حَقٌّ علت د ماقبل دے ۔ فَیَقُوۡلُ مَا هٰذَاۤ دا دویم طریقه د انکار د منکر ده یعنی مخکښ خلقو کښ هم دا خبره د قیامت ذکر شویده لیکن دروغ قصے دی ۔

فائده :- دا جمله اکثر د قرآن نه د انکار په باره کښ استعمال شویده لکه سورة انعام ۲۵ کښ خو فرق دا دے چه هلته مراد دا دے چه دا قرآن د مخکنو خلقو قصے دی لیکن دروغ دی او دلته مراد دا دے چه د قیامت خبرے مخکنو خلقو جوړے کړے دی ۔

الْاِنْسِ ۚ اِنَّهُمْ كَانُوْا خٰسِرِيْنَ ⑱ وَلِكُلٍّ دَرَجٰتٌ

انسانانو نه یقیناً دوی دَ تاوان کاروُنه کول - او دَ هرچا دَ پاره درجے دی

مِّمَّا عَمِلُوْا ۚ وَلِيُوَفِّيَهُمْ اَعْمَالَهُمْ وَهُمْ لَا يُظْلَمُوْنَ ⑲

دَ وجے دَ عملونو دَ دوی نه او چه پوره ورکړی الله تعالیٰ دوی ته جزا دَ عملونو دَ دوی او په دوی باندے به هیڅ ظلم نشی کیدے

وَيَوْمَ يُعْرَضُ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا عَلَى النَّارِ ۭ اَذْهَبْتُمْ

او په کومه ورځ چه پیش به کړے شی کافران په اور باندے (او به ویلے شی) وړے دی تاسو

طَيِّبٰتِكُمْ فِيْ حَيَاتِكُمُ الدُّنْيَا وَاسْتَمْتَعْتُمْ بِهَا ۚ

خپلے مزے په ژوند دنیوی ستاسو کښ او فائدے مو اخستلے دی په هغے سره

سلا۱۸ دا تخویف اخروی دَ دوییم قسم دَ پاره . اُولٰٓئِكَ دا دلیل دے چه دا ایت محکمی عام دے خاص نه دے په عبدالرحمان بن ابی بکر یا عبدالله بن اُبیٔ پورے لکه چه مفسرینو په سبب دَ نزول کښ هغوی ذکر کړے دی او بیضاوی او بقاعی رد کړے دے په هغه مفسرینو باندے چه چا سبب نزول عبدالرحمٰن بن ابی بکر ګرځولے دے . الْقَوْلُ فیصله دَ عذاب چه لَاَمْلَـَٔنَّ جهنم اه ده یا قول په معنیٰ د حجت دے یعنی دنیا کښ دَ مود او پلار یا دَ بل داعی الی الحق په واسطے سره په دوی باندے حجت قائم شوے دے . فِیْٓ اُمَمٍ په تقدیر دَ کائنین سره دا حال دَ امم قد خلت من قبلهم په دے کښ دَ دوی متبوعینو پیرانو او ملایانو ګمراهانو ته اشاره ده .

سلا۱۹ دا دَ فریقینو سره تعلق لری په طریقه دَ دفع کولو دَ وهم سره . وهم دا وؤ چه دَ دوی دواړو فریقو په مینځ کښ دَ فرق وجه څه ده ؟ حاصل جواب دا دے چه سبب دَ فرق عملونه دَ دوی دی یعنی عملونه مختلف دی نو دَ دے په سبب درجات او جزا مختلفه ده . سوال :. درجات کښ معنیٰ دَ بره ختلو ده نو دَ دے اطلاق په جهنم باندے ولے کیږی ؟ جواب :. دَ یو بل نه زیاتیدل په بره تللو یا په خکته تللو سره دے نه درجات ویلے کیږی نو دَ جهنم په مرتبو باندے اطلاق کول صحیح دی یا دا اطلاق تغلیباً دے . وَلِيُوَفِّيَهُمْ دا علت دے دَ محذوف فعل یعنی جَزَاهُمْ بِالدَّرَجَاتِ لِيُوَفِّيَهُمْ . وَهُمْ لَا يُظْلَمُوْنَ ظلم دَ اضدا دو نه دے زیاتے کول په بدو کښ او نقصان کول په نیکو کښ دواړو ته شامل دے .

فَالْيَوْمَ تُجْزَوْنَ عَذَابَ الْهُوْنِ بِمَا كُنْتُمْ

نو نن به بدله درکیدلے شی تاسوته دَ عذاب دَ ذلت (سپک والی) په دے وجے سره چه تاسو

تَسْتَكْبِرُوْنَ فِي الْاَرْضِ بِغَيْرِ الْحَقِّ وَبِمَا كُنْتُمْ

لوئی کوله په ملک کښ په ناحقه سره او په دے وجه سره چه تاسو

تَفْسُقُوْنَ ﴿۲۰﴾ وَاذْكُرْ اَخَا عَادٍ ۭ اِذْ اَنْذَرَ قَوْمَهٗ

حکمونه دَ الله تعالیٰ نه منل. او یاد کړه (ددی ته) رور دَ عادیانو. کله چه ویره ئے ورکوله قوم خپل ته

سنځ دا تخویف اخروی دے اول سبب محرومیدل دَ طیباتو نه په آخرت کښ ذکر کوی اوهر

کله چه پټول طیبات روک شی نو نتیجه ئے ذلت او سپکوالے وی دَ دے وجے نه

فَالْيَوْمَ تُجْزَوْنَ عَذَابَ الْهُوْنِ ئے په مخکښ متفرع کړو په حرف دَ فا سره بیا ئے

دوه سببونه دَ عذاب دَ پاره ذکر کړل چه هغه په حقیقت کښ سبب دَ حرمان دَ

طیباتو او سبب دَ عذابِ هون دی۔ اَذْهَبْتُمْ طَيِّبٰتِكُمْ مراد دَ طیبات نه مزیدار

خوراک څښاک پوشاک دے چه زړه ئے غواړی نو حاصلوی یا مراد دَ دے نه ځوانی او قوتونه

خرچ کول دی په مزو حاصلولو دَ دُنیا کښ او دَ آخرت دَ پاره هیڅ محنت نه دے کړے

دویم قول دَ ضحاک نه نقل دے او اکثرو مفسرینو اول قول را وړے دے او په هغې

کښ دَ عمر رضی الله عنه ډیر روایات نقل کړے شوے دی۔

سوال:۔ دَ دے نه معلومیږی چه استعمال دَ طیباتو ناروا دے او حال دا چه سورة

اعراف ۳۲ کښ دَ هغې په تحریم باندے زجر ورکړے دے؟

جواب:۔ اول جواب دا دے چه مراد دَ دے نه په استعمال دَ طیباتو کښ انهماک کول او دَ دے نه عادت جوړول

دی نو هغه سبب جوړ شی دَ پاره دَ حرامو، لکه یو انسان ځان عادت کړی دَ مزے په څیزونو باندے نو کله چه

هغه نه ملاویږی نو بیا دَ هغې دَ حاصلولو دَ پاره حرام طریقے استعمالوی۔

دویم جواب دا دے چه مراد دَ دے نه ترک دَ شکر دے یعنی دَ طیباتو استعمال ئے کوؤ او شکر

ئے نه کوؤ۔ وَاسْتَمْتَعْتُمْ لفظ په دے باندے دلالت کوی یعنی دا طیبات ئے صرف دَ دنیا دَ پاره

استعمال کړے دی دین او آخرت ئے هیر کړے دے۔

فائده: دا آیت اگر چه صراحةً په باره دَ کافرانو کښ وارد دے خو بیا هم صحابه کرامو

دَ دے نه خوف کوؤ دَ وجے دَ ډیرے تقویٰ نه نو کوم آیاتونه چه عام وی نو مؤمنانو

لره دَ هغې په باره کښ ضرور ویره پکار ده دا بهانه ده نه کوی چه دا زمونږ په باره

بِالْاَحْقَافِ وَقَدْ خَلَتِ النُّذُرُ مِنْ بَيْنِ يَدَيْهِ

په احقاف ځائے کښې او حال دا چه تیر شوي وُو ویره ورکوونکي مخکښې د دهٔ نه

وَمِنْ خَلْفِهٖٓ اَلَّا تَعْبُدُوْٓا اِلَّا اللّٰهَ ؕ اِنِّیْٓ اَخَافُ

او روستو د دهٔ نه (ئې دا خبره) چه بندګي مکوئ د هیچا سیوا د الله تعالیٰ نه یقیناً ویریږم زه

عَلَيْكُمْ عَذَابَ يَوْمٍ عَظِيْمٍ ﴿۲۱﴾ قَالُوْٓا اَجِئْتَنَا لِتَاْفِكَنَا

په تاسو باندے د عذاب د ورځے لوئے نه۔ دوی اوئیل آیا ته راغلے ئې مونږ ته د دے د پاره چه واړوے مونږ

کښې نه دی نازل شوی۔

فائده :- د مخکښې بحث نه معلومه شوه چه د مزے خوراک څښاک بشرطیکه چه حلال دی منع نه دے لیکن د هغے د پاره تکلف کول او عادت کیدل منع دی بلکه سنت د نبی صلّی الله علیه وسلّم دا دے چه څان په ئې مره وُو هر کله چه خوراک په ملاؤ شو او صبر به ئې کوؤ چه نه به ملاویدلو۔ حلوئ، غوښه، چرګ ئې خوړلو کله چه به ملاؤ شو او کله ئې به اوچه ډوډئ، ستوان د اوبو سره، ډوډئ د اوربشو او په کجورو باندے اکتفاء کړیده دغه رنګ په لباس کښې هم نو مسلمان لره په دے سنت باندے عمل پکار دے سره د شکر نه په نعمت باندے او سره د صبر نه په تکلیف باندے۔ بِمَا كُنْتُمْ تَسْتَكْبِرُوْنَ الخ استکبار په عقیده کښې دے په ارتکاب د شرک او کفر سره او فسق په عملونو کښې دے۔ سـ۲۱ـ دا دلیل نقلی دے د پاره د تسلئ ورکولو نبی صلّی الله علیه وسلّم ته لکه چه وَصَّيْنَا الْاِنْسَانَ الخ کښې هم تسلی وه۔ او دا رنګ دا د تخویف دنیوی یو مثال دے مشرکینو مکے بینو ته د پاره د عبرت اخستلو۔ او تخصیص د عادیانو په ذکر سره د دے وجے دے چه د دوی بدنونه هم قوی وُو یادشاهی ئې هم وسیع وه۔ سرکشی ئې هم ډیره وُه د دے وجے نه ئې ویل مَنْ اَشَدُّ مِنَّا قُوَّةً او ایادے ئې هم پخے وے لیکن سره د دے دومره قوت نه هغوی د عذاب د الله تعالیٰ نه بچ نه شول نو دا مشرکین مکه او نور کافران به څه رنګ بچ شی۔ اَخَا عَادٍ هغه هود علیه السّلام وُو چه د عادیانو نسبی ورور وُو او په دے تعبیر کښې اشاره وه چه څوک د رور خبره نه منی نو د پردی سړی خو بالکل نه منی۔ بِالْاَحْقَافِ جمع د حقف ده د شګو ډیرے ته ویلے کیږی چه اوګده او غټه وی لیکن غر ترینه نه وی جوړ شوی او دا یو علاقه ده د عمان نه نزمهره پورے۔ یقاعی ویلے دی چه دا سے ډیرے د شګے چه کومه (پاتے په بل مخ)

عَنْ اٰلِهَتِنَا ۚ فَاْتِنَا بِمَا تَعِدُنَآ اِنْ كُنْتَ مِنَ

دَ بندګئ دَ معبودانو زمونږه نو راوړه مونږ ته هغه عذاب چه ویروے ته مونږه که چرے ته ئے دَ

الصّٰدِقِيْنَ ﴿۲۲﴾ قَالَ اِنَّمَا الْعِلْمُ عِنْدَ اللّٰهِ ۖ وَ اُبَلِّغُكُمْ

رښتینو نه . دهٔ اُوئیل یقیناً علم (دَ عذاب) دَ الله تعالیٰ سره دے او رسوم تاسو ته

مَّآ اُرْسِلْتُ بِهٖ وَلٰكِنِّيْٓ اَرٰىكُمْ قَوْمًا تَجْهَلُوْنَ ﴿۲۳﴾

هغه پیغام چه رالیږلے شوے یم په هغې سره اولیکن زهٔ وینم تاسو لره داسے قوم چه ناپوهي کوئے .

علاقه کښې وی نو په هغې کښې عادةً سختې سیلې نه راځی. نو معلومه شوه چه په دوی باندے دَ سیلې عذاب خارق للعادة وؤ وَقَدْ خَلَتِ النُّذُرُ اه دا جمله معترضه ده او په دې کښې اشاره ده ماکنت بدعا من الرسل ته چه په دے سورت کښې زمونږ دَ نبی صلّی الله علیه وسلّم په باره کښې تیر شوید ے یعنی ټول رسولان هم په دے صفت کښې شریک دی. اَلَّا تَعْبُدُوْٓا اِلَّا اللّٰهَ اشاره ده چه یرهٔ ورکوونکی اگرچه ډیر وی لیکن مدعٰی ئے یو ده چه مسئله دَ توحید ده یعنی دا اتفاقی مسئله ده اِنِّيْٓ اَخَافُ په دې کښې تخویف دَے په وخت دَ اعراض کولو کښې دَ توحید نه.

۲۲ په دے کښې انکار دَ هغوی ذکر کړے دے او انکار دَ دوی متعلق دے دَ هغه مسئلے سره چه الا تعبدوا الا ایاه یعنی په دے مسئلے سره ته مونږ لره زمونږ دَ الهوٗ دَ تعظیم او دَ بندګئ نه اړوے. لِتَاْفِكَنَا په دے کښې دوی اشاره کوله چه دا اهول دَ الهو نه هم په دهوکه او په دروغو سره دی فَاْتِنَا بِمَا تَعِدُنَآ دا متعلق دے دَ اِنِّيْٓ اَخَافُ عَلَيْكُمْ عَذَابَ اه سره.

۲۳ قَالَ اِنَّمَا الْعِلْمُ دا جواب دے دَ دے دَ هغوی قول فَاْتِنَا اه او دا جواب دَے په ترقئ سره یعنی عذاب راوستل خو لرے خبره ده بلکه ما سره دَ هغې علم هم نیشته چه کله به وی او څه رنګ به وی او په دے کښې مقصد اظهار دَ شان دَ رسول دے چه هغه غیب دان نه وی بلکه دَ هغه صفت دا دے وَ اُبَلِّغُكُمْ مَّآ اُرْسِلْتُ بِهٖ چه مسئله دَ توحید او تخویف بالعذاب دے. تَجْهَلُوْنَ شرک کول، عذاب په تادئ سره غوښتل، عذاب په اختیار یا په علم دَ پیغمبر کښې ګنړل دا ټول دَ جهل کارونه دی.

فَلَمَّا رَاَوْهُ عَارِضًا مُّسْتَقْبِلَ اَوْدِيَتِهِمْ قَالُوْا هٰذَا

پس هرکله چه دوی اولیده پلنه وریځ چه مخامخ راتلله دَ دوی میدانونو ته　دوی اُویل دا

عَارِضٌ مُّمْطِرُنَا ؕ بَلْ هُوَ مَا اسْتَعْجَلْتُمْ بِهٖ ؕ رِيْحٌ

پلنه وریځ ده چه باران[1] وروی په موږ باندے (او داسے نه شو) بلکه دا هغه څیز دے چه تاسو پرے تلوار غوښتلو. دا باد[2] ده

فِيْهَا عَذَابٌ اَلِيْمٌ ﴿۲۴﴾ تُدَمِّرُ كُلَّ شَيْءٍ ۭ بِاَمْرِ رَبِّهَا

په دے کښ عذاب دردناک دے　هلاکوی هر څیز لره په حکم دَ رب دَ دے

فَاَصْبَحُوْا لَا يُرٰٓى اِلَّا مَسٰكِنُهُمْ ؕ كَذٰلِكَ نَجْزِي

نو صبا کړو دوی په داسے حال چه نه ښکاریدل سیوا دَ کورونو دَ دوی نه　دغسے بدله ورکوؤ موږ

الْقَوْمَ الْمُجْرِمِيْنَ ﴿۲۵﴾ وَلَقَدْ مَكَّنّٰهُمْ فِيْمَآ اِنْ مَّكَّنّٰكُمْ

قوم　مجرمانو ته -　او یقینا طاقت ورکړو موږ دوی ته په هغه څیزونو کښ چه نه دَے[3] ورکړی موږ تاسو ته طاقت

۲۴ - ۲۵ دا ذکر دَ عذاب دَ هغوی دے په تفصیل سره فَلَمَّا رَاَوْهُ (ه) ضمیر عذاب یا ماتعدنا ته راجع دے - عَارِضًا صفت دے دَ موصوف محذوف سحابًا عارضًا۔

قَالُوْا هٰذَا الخ مفسرینو لیکلی دی چه دَ دوی[1] باران څه موده بند شوے وۀ نو هر کله چه دوی وریځه اولیدله نو دوی دَ خپل عقل موافق په هغے باندے خوشحالی ښکاره کړه چه اوس به باران اوشی۔ یعنی دَ خپلو بد اعمالو دَ سزا هیڅ خیال ئے هم اونکړو۔ بَلْ هُوَ مَا اسْتَعْجَلْتُمْ بِهٖ دا قول دَ الله تعالیٰ دے په واسطه دَ هود علیه السلام سره یا دا په زبان حال سره دے۔ او استعجال دَ دوی په دے لفظ سره تیر شو فاتنا بما تعدنا۔ رِيْحٌ یعنی هغه وریځ نه ده بلکه دَ سیلی طوفان وۀ چه اسمان ئے پټ کړیوۀ دَ وریځ په شان ښکاره کیده - تُدَمِّرُ كُلَّ شَيْءٍ دمار پوره هلاکت چه ناګهه وی کل شی نه مراد هغه دے چه اَتَتْ عَلَيْهِ لکه سورت ذاریات ۴۲ کښ۔ او دَ كُلَّ شَيْءٍ نه دَ هود علیه السلام او دَ هغه دَ ملګرو خارج کیدل خارق للعادة وۀ۔ بِاَمْرِ رَبِّهَا اشاره ده چه اسباب تاثیر نه شی کولے بغیر دَ امر دَ الله تعالیٰ نه۔ كَذٰلِكَ دا تخویف دے روستو مجرمانو ته او كذٰلك کښ تشبیه عامه ده که په اصل عذاب کښ وی او که په نوع یا جنس دَ هغه کښ۔

فِيْهِ وَجَعَلْنَا لَهُمْ سَمْعًا وَّاَبْصَارًا وَّاَفْـِٕدَةً ۖ فَمَآ

په هغې کښې او ورکړي وو ووردي لره غوږونه او سترګې او زړونه نو

اَغْنٰى عَنْهُمْ سَمْعُهُمْ وَلَآ اَبْصَارُهُمْ وَلَآ اَفْـِٕدَتُهُمْ

وا نه وړوُ دَ دوی نه غوږونو دَدوی او نه سترګو دَ دوی او نه زړونو دَ دوی

مِّنْ شَيْءٍ اِذْ كَانُوْا يَجْحَدُوْنَ ۙ بِاٰيٰتِ اللّٰهِ

هيڅ حصه ( دَعذاب نه ) ځکه چه دوی انکار کوؤ دَ اياتونو دَ الله تعالیٰ نه

وَحَاقَ بِهِمْ مَّا كَانُوْا بِهٖ يَسْتَهْزِءُوْنَ ﴿٢٦﴾ ع وَلَقَدْ

او راګير کړو دوی لره هغه څيز چه دوی ورپورې ټوقې کولے - او يقيناً

س۲۶ په دے کښې خطاب دے موجوده مجرمانو ته او ذکر کوی دَ عاديانو دوه قوتونه او بوسبب عذاب او اشاره ده چه په هيڅ قوت دَ دوی سره عذاب نه شو دفع کيدلے۔ يو قوت تمکين دے مراد دَ دے نه يا خه مکانونه غټ بدنونه ډير مالونه دی اِنْ مَّكَّنّٰكُمْ اِن نافيه دے يعنی موجوده خلقو سره دومره قوت نيشته او بقاعی ويلی دی چه په اِنْ کښې مبالغه دَ نفی ده په نسبت دَ ما سره۔ او دويم قوة وَجَعَلْنَا لَهُمْ سَمْعًا اه په دے کښې اشاره ده قوة باطنيه ته لکه فهم، ادراك، او هوښياری په دنيوی کارونو کښې او دا رنګ دا اسباب وؤ دَ حق معلومولو دَپاره۔ فَمَآ اَغْنٰى اه يعنی هر کله چه دا حواس دوی دَ حق دَ پاره استعمال نه کړل بلکه صرف دَ دنياوی علومو او تجربو دَ پاره ئے استعمال کړل نو په هغې سره عذاب دَ الله تعالیٰ دفع نه شو۔ او هر کله چه علمی قوت دَ مالی قوت نه مضبوط دے او په علمی قوت سره دوی ته فائده او نه رسيدله نو په مالی قوت سره خو په طريقه اولیٰ عذاب نه شی دفع کيدلے دَ دے وجے نه عدم افاده دَ سمع او بصر وغيره کښې ذکر کړه او عدم افاده دَ تمکين ئے ذکر نه کړه دَ هغې ذکر ئے مقايسته پريخود۔ او سبب دَ عذاب ئے ذکر کړے دے په اِذْ كَانُوْا يَجْحَدُوْنَ اه سره نو معلومه شوه چه دَ اسبابِ الٰهيه په مقابله کښې هيڅ طاقت فائده نشی ورکولے۔

أَهْلَكْنَا مَا حَوْلَكُمْ مِّنَ الْقُرٰى وَصَرَّفْنَا الْاٰيٰتِ

هلاک کړي دي مونږ چاپېره ستاسو نه ديـر کلي او قسما قسم بيان کړي وو مونږ آيا تونه

لَعَلَّهُمْ يَرْجِعُوْنَ ﴿۲۷﴾ فَلَوْلَا نَصَرَهُمُ الَّذِيْنَ اتَّخَذُوْا

دے د پاره چه دوی را او ګرځي د باطل نه - نو ولے مدد نه کوو د دوی سره هغه کسانو چه دوی جوړ کړی وو

مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ قُرْبَانًا اٰلِهَةً ؕ بَلْ ضَلُّوْا عَنْهُمْ ۚ وَ

سیوا د الله تعالٰی نه د پاره د نزدیکت (الله تعالٰی ته) معبودان - بلکه هیر شو د دوی نه او

ذٰلِكَ اِفْكُهُمْ وَمَا كَانُوْا يَفْتَرُوْنَ ﴿۲۸﴾ وَاِذْ صَرَفْنَا

دا دروغ د دوی وو او هغه خبرے چه دوی د ځان نه جوړولے - او کله چه راواړوله مونږ

س۲۷ پدیکښ تخویف دنیوی دے په اجمالی طریقے سره مَا حَوْلَكُمْ مِّنَ الْقُرٰى اشارة ده واقعے د ثمودیانو او قوم د لوط علیه السلام او اهلِ مدین ته چه دوی حجاز والو ته نزدے وو - الْاٰیٰتِ دلیلونه ، وعظونه ، تخویفات او بشارات و غیره ۔

س۲۸ دا رد د شرك دے چه متفرع دے په مخکښ واقعه باندے او دا جواب د شبهے د مشرکانو دے چه دوی وائي چه مونږ یا بابا رامدد شه یا شیخ عبد القادر وغیره د دے وجے نه وایو چه د دے په برکت سره زمونږ نه عذابونه مصیبتونه دفع کیږی حاصل د جواب دا دے چه تیر شوی مشرکانو (عادیانو وغیرو) هم دا سے کول لیکن هرکله چه په هغوی باندے عذاب راغے نو د دوی الهو د دوی سره امداد او نه کړو الَّذِيْنَ اتَّخَذُوْا مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ قُرْبَانًا اٰلِهَةً - د اتخذوا اول مفعول هُمْ ضمیر محذوف دے چه راجع دے الذین ته او الهة مفعول ثانی دے او قربانًا حال دے او بعض مفسرینو ویلے دی چه قربانًا دویم مفعول دے او الهة د هغے نه بدل دے یا بیان دے لیکن زمخشری او قرطبی په دے باندے رد کړیدے . قُرْبَان هر هغه خیز دے چه په هغے سره تقرب کیدے شی الله تعالٰی ته . نو مشرکانو بزرګان او اولیا د الله تعالٰی د نزدیکت د پاره وسیلے جوړے کړیدی دا رنګ سورة زمر س۲ کښ تیر شویدی . بَلْ ضَلُّوْا عَنْهُمْ ضلال په معنٰی د غائب کیدلو او په معنٰی د هیریدلو او په معنٰی د غافل کیدلو دے دا تولے معانی دلته صحیح کیږی - وَذٰلِكَ اشارة ده اتخاذ الالهة ته اِفْكُهُمْ او ریدل د توحید ته یا ذالك اشارة ده (پاتے په بل مخ)

إِلَيْكَ نَفَرًا مِّنَ الْجِنِّ يَسْتَمِعُونَ الْقُرْآنَ فَلَمَّا

تاته یو ډله د پیریانو نه چه غوږ به ئې کېښودلو قرآن ته پس هرکله چه

حَضَرُوهُ قَالُوا أَنصِتُوا فَلَمَّا قُضِيَ وَلَّوْا إِلَىٰ قَوْمِهِم

راننوتل نو دوی اوویل ( یو بل ته ) چپ شئ نو هرکله چه پوره شو لوستل روان شو دوی خپل قوم ته

مُّنذِرِينَ ﴿٢٩﴾ قَالُوا يَا قَوْمَنَا إِنَّا سَمِعْنَا كِتَابًا أُنزِلَ

( اراده کوونکی ) د ویره ورکولو۔ دوی اُویل اے زمونږ قومه یقیناً مونږ اوریدلے دے یو کتاب چه نازل کړے شوے دے

مِن بَعْدِ مُوسَىٰ مُصَدِّقًا لِّمَا بَيْنَ يَدَيْهِ يَهْدِي

روستو د موسیٰ علیه السّلام نه تصدیق کوونکے دے د هغه کتابونو چه د ده نه مخکښ دی هدایت کوی

ضلال د الِهه ته او اِفْکُهُمْ کښ مضاف پټ دے یعنی اثر اِفْکِهِمْ۔ او هرکله چه د دوی دوه عقیدے ذکر شوے یو الِهه نیول یعنی هغوی لره بندګی کول دویم دعویٰ د تقرب الی الله کول نو د دے وجے نه دوه الفاظ ئې ذکر کړل افك او افتراء او دارنګ آیت په سورة هود سټا کښ هم دے۔

سـ۲۹ دا دلیل نقلی دے د جنانو نه د پاره د اثبات د صداقت د رسول او د قرآن او په دے کښ تسلی هم ده نبی صلّی الله علیه وسلّم ته او دارنګ په دے واقعه کښ ذکر د طریقے د دعوت دے چه اول علم د قرآن دے بیا دعوت دے قرآن ته بیا دعوت دے اطاعت او اجابت د رسول ته۔ دا واقعه په سفر د طائف کښ وه چه نبی صلّی الله علیه وسلّم بطن نخله کښ قرآن لوستلو نو جنانو واؤریدل یا دا دعوت د رسول الله صلی الله علیه وسلم پیریانو ته په لیلة الجن کښ ؓ او بیا دغه جنات نبی صلی الله علیه وسلّم داعیان مقرر کړل د پار د قوم د هغوی۔ نَفَرًا او وه کسان وو یا نهه کسان وو بعضے د نجران او بعضے د نصیبین وو۔ یَسْتَمِعُونَ الْقُرْآنَ طلب ئې کوؤ د قرآن د اوریدلو یعنی د لرے نه آواز د لوستلو د قرآن ئې تر غوږ شو مائله شول اوریدلو ته نو نزدے راغلل۔ أَنصِتُوا دا ادب د قرآن دے او د دے ادب د وجے نه په دوی باندے رحم اوکړے شو یعنی هدایت ورته نصیب شو او توفیق د دعوت ورته الله تعالیٰ ورکړو لکه چه سورة اعراف سـ۲۰۴ کښ ذکر دے۔

وَلَّوْا إِلَىٰ قَوْمِهِم مُّنذِرِينَ یعنی دوی د هغه وخت نه په اراده د انذار د خپل قوم

إِلَى الْحَقِّ وَإِلَىٰ طَرِيقٍ مُّسْتَقِيمٍ ﴿٣٠﴾ يَٰقَوْمَنَا أَجِيبُوا

حق طرف ته او نیغ لارے ته - اے قومه زمونږ قبول کړئ

دَاعِيَ اللَّهِ وَآمِنُوا بِهِ يَغْفِرْ لَكُم مِّن ذُنُوبِكُمْ وَ

(دعوت) دَ دعوت کوونکی دَ الله تعالیٰ او ایمان راوړئ په ده باندې بخنه به اوکړی تاسو دَ گناهونو ستاسو او

يُجِرْكُم مِّنْ عَذَابٍ أَلِيمٍ ﴿٣١﴾ وَمَن لَّا يُجِبْ

پناه به درکړی تاسو ته دَ عذاب دردناک نه - او چا چه قبول والے اونکړو (دَ دعوت)

سره روان شو او دا ادب دے دَ هر سړی دَ پاره چه علم دَ قرآن او سنت حاصل کړی نو هغه دِ دے خپل قوم ته اورسوی او دا رنګ سورة توبه ۱۲۲ کښ هم ذکر دی۔

۳۰ په دے ایت کښ ذکر دے دعوت کول دَ جنا تو قرآن کریم ته او دا خائسته طریقه دَ دعوت ده۔ مِنْ بَعْدِ مُوسَىٰ دَ عیسیٰ علیه السّلام ذکر یئے اونه کړو دَ دے وجه نه چه دوی دَ عیسیٰ علیه السلام نه نه وو خبر شوی یا دَ دے وجے نه چه دَ انجیل اصل هم تورات وو۔ يَهْدِي إِلَى الْحَقِّ الخ مراد دَ حق نه صحیح عقیده ده چه امر یقینی او واقعی دے او مراد دَ طریق مستقیم نه اتباع دَ رسول ده یعنی دَ قرآن حاصل دعوت دے توحید او سنت ته او سورة جن ۱/۲ کښ هم دا سے ذکر کړی دی۔

۳۱ په دے کښ دعوت دے تصدیق دَ رسول الله صلی الله علیه وسلّم او اتباع دَ هغه ته۔ دَاعِيَ اللَّهِ مراد دَ دے نه رسول الله صلّی الله علیه وسلّم دے او دا دلیل دَے چه هغه دَ ټول انس وجن دَ پاره رالیږلے شوے وو۔ وَآمِنُوا بِهِ دا تفسیر دَ اجابت دے او ایمان ذکر دَ اهم خیز دے په اجابت کښ۔ يَغْفِرْ لَكُمْ الخ دَ اجابت دوه فائدے ذکر کړے دی۔ مِّن ذُنُوبِكُمْ مِنْ دَ پاره دَ تعمیم دَ انواعو دَ ګناهونو دے یعنی دَ هر قسم ګناهونو نه بخنه کوی په سبب دَ ایمان سره یا مِنْ دَ پاره دَ تبعیض دے یعنی هغهٔ ګناهو نه بخشش کوی کوم چه دَ ایمان راوړلو نه مخکښ وی۔ او دا اشاره کیدیشی چه جنت ته به یئے داخلوی ځکه چه ګناهو نه مانع وو دَ دخول دَ جنت نه نو چه هغه یئے اوبخل نو جنت ته دَ داخلیدلو نه مانع پاتے نه شو او دا مسئله اختلافیه ده چه جنات به جنت ته داخلیږی او که نه۔ صحیح دا ده چه دَ دوی حکم هم پشان دَ انسانانو دے او دَ استحقاق دَ جنت دَ پاره چه کوم دلیلونه دَ پاره دَ بشر دی نو هغه دوی ته هم شامل دی۔

دَاعِيَ اللّٰهِ فَلَيْسَ بِمُعْجِزٍ فِي الْاَرْضِ وَلَيْسَ

دَ دعوت کوؤنکی دَ الله تعالیٰ نو نه دے ـ بیخ کیدونکے دَ عذاب دَ الله تعالیٰ نه په ټول ملک کښې او نیشته

لَهٗ مِنْ دُوْنِهٖۤ اَوْلِيَآءُ ؕ اُولٰٓئِكَ فِيْ ضَلٰلٍ مُّبِيْنٍ ﴿۳۲﴾

دۀ لره سیوا دَ الله تعالیٰ نه مددګاران دغه کسان په ګمراهئ ښکاره کښې دی ـ

اَوَلَمْ يَرَوْا اَنَّ اللّٰهَ الَّذِيْ خَلَقَ السَّمٰوٰتِ وَ

آیا او دوی نه ګوری چه یقینًا الله تعالیٰ هغه ذات دے چه پیدا کړیدی اسمانونه او

الْاَرْضَ وَلَمْ يَعْيَ بِخَلْقِهِنَّ بِقٰدِرٍ عَلٰۤى اَنْ

زمکه او نه دے ستړے شوے په پیدائش دَ هغې سره قدرت لرونکے دے په دے خبره باندے

يُّحْيِۦَ الْمَوْتٰى ؕ بَلٰۤى اِنَّهٗ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيْرٌ ﴿۳۳﴾

چه ژوندی به کړی مړی! هاؤ یقینًا هغه په هر خیز باندے قدرت لرونکے دے ـ

۳۲ دا زجر او تخویف دے په ترک دَ اجابت دَ رسول صلی الله علیه وسلم سره. فَلَيْسَ بِمُعْجِزٍ فِي الْاَرْضِ په دے کښې اشاره ده عذاب الٰهی ته وَلَيْسَ لَهٗ مِنْ دُوْنِهٖۤ اَوْلِيَآءُ اشاره ده چه بزرګان وغیره هم دَ دوی امداد نه شی کولے یعنی نه په خپل زور سره بیخ کیدے شی او نه دَ بل چا په امداد سره. اُولٰٓئِكَ په دے ځائے کښې دوه همزګان په ضمے سره جمع شویدی همزه دَ اولیاء او همزه دَ اولٰئك دا په قرآن کښې بل ځائے کښې نیشته.

۳۳ په دے ایت کښې زجر دے منکرینو دَ قیامت ته چه دوی سره دَ علم نه په قدرت دَ الله تعالیٰ باندے انکار کوی دَ بعث نه او دا تفسیر دَ ضلال مبین دے کوم چه مخکښې ایت کښې ذکر شویدے وَلَمْ يَعْيَ بِخَلْقِهِنَّ او دلیل ئے دا دے چه تر اوسه پورے په نظام دَ الله تعالیٰ کښې هیڅ نقصان نه دے راغلے که چرے ستړے شوے وے نو ضرور به نقصان پیدا شوے وو لکه سورة ق سره کښې. بِقٰدِرٍ با دَ تاکید دَ پاره په اثبات کښې هم راځی لکه كَفٰى بِاللّٰهِ شَهِيْدًا کښې. او دا خبر دَ اَنَّ دے حاصل دَ معنیٰ دا دے آیا دوی علم نه لری په دے خبره باندے چه هغه الله تعالیٰ چه خالق دے نو قادر هم دے په دوباره ژوندی کولو باندے. بَلٰى په دے کښې اثبات دَ هغه نفی دے

وَيَوْمَ يُعْرَضُ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا عَلَى النَّارِ ۭ اَلَيْسَ

او په کومه ورځ چه پیش به کړے شی کافران په اور باندے (او به ویلے شی) آیا نه دے

هٰذَا بِالْحَقِّ ۭ قَالُوْا بَلٰى وَرَبِّنَا ۭ قَالَ فَذُوْقُوا الْعَذَابَ

دا حق ، دوی به اوائی هاؤ قسم دے په رب زمونږ باندے اوبه وائی الله تعالیٰ نو اوڅکئ عذاب

بِمَا كُنْتُمْ تَكْفُرُوْنَ ﴿۳۴﴾ فَاصْبِرْ كَمَا صَبَرَ اُولُوا الْعَزْمِ

په دے وجه چه تاسو کفر کوؤ - نو صبر اوکړه لکه چه صبر کړے وؤ پوخ کار کوؤنکو

مِنَ الرُّسُلِ وَلَا تَسْتَعْجِلْ لَّهُمْ ۭ كَاَنَّهُمْ يَوْمَ

رسولانو او په تادۍ سره دوی لره عذاب مه غواړه یقیناً دوی په کومه ورځ

يَرَوْنَ مَا يُوْعَدُوْنَ ۙ لَمْ يَلْبَثُوْٓا اِلَّا سَاعَةً مِّنْ

چه اُوینی هغه چه دوی سره یئے وعده کیده شی (گمان به اوکړی) چه نه وؤ حصار شوی دوی مګر یو ساعت دَ

نَّهَارٍ ۭ بَلٰغٌ ۚ فَهَلْ يُهْلَكُ اِلَّا الْقَوْمُ الْفٰسِقُوْنَ ﴿۳۵﴾

ورځ نه دا رسَول دی پس نه به شی هلاکولے په عذاب سره مګر قوم نافرمانی کوؤنکی۔

چه اولم یروا کښ ده یعنی بلکه دوی علم لری په قدرت دَ الله تعالیٰ باندے نو سرهٔ دَعلم نه انکار کوی او دا رنګ سورة اسراء ۹۹ کښ هم دی۔

فائده :- هرکله چه په دے سورت احقاف کښ دَ ابتداء نه اثبات دَ بعث بعد الموت ته اشاره وه نو دَ دے وجے نه دَ تاکید دَپاره بآئے زیاتی راوړه چه مقصد خه واضح شی۔

۳۴ دَ اثبات دَ قیامت نه روستو دَ هغے هیبتِ شان بیانوی دَپاره دَ تخویف هغه کښ ایت ۲۰ کښ هم تیر شوید ی په هغے کښ اسباب دَ عذاب ذکر کړیدی او په دے کښ اقرار دَ منکرینو ذکر کوی سرهٔ دَعذاب نه هٰذَا اشاره ده دوباره ژوند ته -

۳۵ هرکله چه ذکر کړے شو انکار دَ منکرینو دَ توحید او رسالت او قرآن او قیامت نه نو اوس تسلّی ورکوی پیغمبر صلی الله علیه وسلم ته په امر سره په صبر کولو او په عدم استعجال دَ عذاب سره - اُولُوا الْعَزْمِ مِنَ الرُّسُلِ - العزم نه مراد پوخ پاتے کیدل دی په دین باندے سرهٔ دَ هر قسم مصیبتونو نه بغیر دَ شکایت نه مخلوق ته او په دے کښ اقوال مختلفه دی اول قول دا دے چه مِن بیانیه دے او ټول رسولان اولوالعزم دی (په بلغ)

ځکه چه تولو رسولانو کښې دغه معنیٰ دَ عزم موجود وه. دویم قول دا دے چه مِنْ دَ پاره دَ تبعیض دے او مراد دَ دے نه پنځه رسولان دی چه په سورة شوریٰ ۱۳ او احزاب ۷ کښې ذکر دی. دریم قول دا دے چه دا اتلس پیغمبران دی چه سورة انعام ۸۳ ۸۵ ۸۶ کښې ذکر دی او دَ هغوی په اقتداء باندے امر کړے شوے دے په انعام ۹۰ کښې څلورم قول دا دے چه هغه شپږ انبیاء مراد دی چه سورة اعراف کښې دَ هغوی قصے ذکر دی. خو په دے کښې اول قول غوره دے. وَلَا تَسْتَعْجِلْ لَّهُمْ دَ دے نه مراد دا دے چه دَ بے صبرئے دَ وجے نه زر دَ دوی دَ پاره عذاب اوغواړے. نو صبر اعلیٰ دَ فضائلو نه دے او استعجال اعلیٰ دَ رزائلو نه دے نو په اول باندے ئے امر اوکړو او دَ دویم نه نهی اوکړه. كَاَنَّهُمْ يَوْمَ يَرَوْنَ دا هم په تسلّیٔ کښې داخل دے یعنی دوی عذاب په تلوارے سره غواړی او دوی وائي چه عذاب په مونږ ولے زر نه راځی لیکن هرکله چه راشی نو دوی به پخپله اقرار اوکړی چه دا عذاب خو زر راغے ځکه چه کوم څیز تیر شی نو دَ انسان نه هیر شی یا دَ هیبت دَ عذاب دَ وجے نه دَ دوی نه به هغه اوګده ژوند دَ دنیا او مزے هیرے شی. مَا يُوْعَدُوْنَ عام دے که دَ دُنیا عذاب وی او که دَ اخرت وی او دا سے په سورة مؤمنون ۱۱۳ او سورة نازعات ۴۶ کښې هم ذکر دی. بَلٰغٌ دا هم خطاب دے نبی صلّی الله علیه وسلّم ته په طریقه دَ تشجیع سره یعنی عَلَيْكَ بَلٰغٌ یا خبر دَ مبتدا محذوف دے هٰذَا دا قرآن بلاغ دے او حمل دَ مصدر مبالغةً دے فَهَلْ يُهْلَكُ اِلَّا الْقَوْمُ الْفٰسِقُوْنَ دا هم داخل دے په تسلّیٔ دَ پیغمبر کښې یعنی روستو دَ تبلیغ نه عذاب په خاص راځی په نافرمانو باندے هاں که تبلیغ اونشی نو عذاب په عام راځی ـ

خـتم شو تفسیر دَ سورة احقاف په فضل دَ الله تعالیٰ سره

سُوْرَةُ مُحَمَّدٍ ۴۷ مَدَنِيَّةٌ ۹۵ | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | اٰيَاتُهَا ۳۸ رُكُوْعَاتُهَا ۴

اَلَّذِيْنَ كَفَرُوْا وَصَدُّوْا عَنْ سَبِيْلِ اللّٰهِ اَضَلَّ

هغه کسان چه کفر یې کړیدے او اړوی خلقو لره دَ لارے دَ الله تعالیٰ نه بے کاره کړیدی

اَعْمَالَهُمْ ① وَالَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ وَ

عملونه دَ دوی - او هغه کسان چه ایمان یې راوړے دے او عملونه یې کړیدی په برابر دَ سنت سره او

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

## سُوْرَةُ محمّد او بل نوم یې سورة القتال دے

داسورت او سورة فتح او حجرات دا خلورم باب دے دَ اٰخرے حصّے نه په دے کښې مسئله دَ قتال او انتظام ذکر کوی۔

ربط دَ دے سورت دَ ماقبل سره په ډیر وجوهو سره دے اوله وجه داده چه ماقبل کښې ذکر دَ دعوت او تبلیغ وؤ نو په دے سورت کښې امر دے په قتال فی سبیل الله تعالیٰ سره۔ دویمه وجه داده چه دَ هغه سورت په اٰخر کښې اهلاک دَ فاسقینو ذکر شو نو دَ دے سورت په اول کښې ذکر دَ علت دَ هغې دے۔ دریمه وجه داده چه په هغه سورت کښې اثبات دَ اصول اربعو (توحید، صداقتِ رسول، صداقتِ قراٰن، قیامت) اوشو نو اوس په دے سورت کښې اصول ممدّه ذکر کوی چه قتال او انفاق فی سبیل الله دے۔

دعویٰ دَ دے سورت امر په قتال فی سبیل الله سره په سے کښې په ذکر دَ اتلس ۱۸ احوالو دَ کافرانو او هغه علتونه دَ قتال دی او اتلس صفات دَ مؤمنانو دَ پاره دَ تیزئې ورکولو په قتال باندے او اتلس قبائح دَ منافقینو چه هغه اوصاف مانعه دَ قتال دی۔ او دعویٰ دَ توحید چه مقصد دَ قتال دے ذکر ده په اٰیت ۱۹ کښې۔

خلاصه دَ سورت داسورت تقسیم دے دوه بابونو ته اول باب تر ۱۹ پورے دے په دے کښې تفصیل ذکر کوی احوال دَ مشرکینو اتلس او صفات دَ مؤمنانو اتلس په طریقه دَ تقابل دَ فریقینو سره۔ او بیا تخویف په ذکر دَ قرب دَ قیامت سره په ۱۸ کښې او دعویٰ دَ توحید په ۱۹ کښې۔ (پاتے په بل مخ)

اٰمَنُوْا بِمَا نُزِّلَ عَلٰى مُحَمَّدٍ وَّهُوَ الْحَقُّ مِنْ رَّبِّهِمْ ۙ

ایمان ئې راوړې دے په هغه (وحی) چه نازل کړے شوې په محمد صلی الله علیه وسلم باندې او دا حق دے د طرف د رب د دوی نه

كَفَّرَ عَنْهُمْ سَيِّاٰتِهِمْ وَاَصْلَحَ بَالَهُمْ ۝۲ ذٰلِكَ بِاَنَّ

لرې کوی الله تعالیٰ د دوی نه بدئ د دوی او ښائسته کوی حال د دوی - دا په دے وجه سره چه یقیناً

الَّذِيْنَ كَفَرُوا اتَّبَعُوا الْبَاطِلَ وَاَنَّ الَّذِيْنَ اٰمَنُوا

کافرانو تابعداری د باطل کړیده او یقیناً مؤمنانو

اتَّبَعُوا الْحَقَّ مِنْ رَّبِّهِمْ ۚ كَذٰلِكَ يَضْرِبُ اللّٰهُ

تابعداری د هغه حق کړے ده چه د دوی د رب د طرف نه دے ، دغسے بیانوی الله تعالیٰ

لِلنَّاسِ اَمْثَالَهُمْ ۝۳ فَاِذَا لَقِيْتُمُ الَّذِيْنَ كَفَرُوا

خلقو لره حالات د هغوی - نو کوم وخت چه مخامخ شئ د کافرانو سره (په میدان جنګ کښ)

تفسیر سا په دے ایت کښ درے حالات د کافرانو ئې ذکر کړیدی د پاره د زجر او هر هغه خوك چه دا اوصاف پکښ وی نو دا ایت هغوی ته شامل دے - اَضَلَّ اَعْمَالَهُمْ مراد د دے نه هغه عملونه د خیر دی چه ورسره کفر او شرك کوی لکه عبادات، ښائسته اخلاق قیدیان خلاصول، صدقات کول، خپلولی پالل، مسکینانو ورکول، کافرانو سره احسان کول دا ټول برباد دی -

سلا په دے کښ د مؤمنانو ښځه حالات ذکر کړیدی او بشارت دے هغوی ته وَاٰمَنُوْا بِمَا نُزِّلَ عَلٰى مُحَمَّدٍ هر کله چه په دے سورت کښ مقصد ذکر وو د دے امت، او اولنی دواړه صفات ټولو مؤمنانو ته شامل وو نو دا صفت ئې ذکر کړو چه معلومه شی چه فقط دا امت مراد دے - وَهُوَ الْحَقُّ ضمیر هو ما نزل یا محمد ته یا ایمان راوړلو ته راجع دے او په دے لفظ کښ اشاره ده چه ایمان د دوی په قرآن او په دے نبی صلی الله علیه وسلم باندې د وجے د حقانیت نه دے نه د وجے عصبیت وغیره نه. وَاَصْلَحَ بَالَهُمْ مراد د بال نه مطلق حال او شان د دوی دے که دنیوی وی او که دینی وی او د اصلاح نه مراد په هغے کښ فائدے دنیوی او اخروی اچول دی او د برباد ئې نه بچ کول دی -

سلا دا ایت د هغکنو دواړه ایاتو سره متعلق دے یعنی د اضل اعمالهم - او کفر

فَضَرْبَ الرِّقَابِ ۭ حَتّٰٓى اِذَآ اَثْخَنْتُمُوْهُمْ فَشُدُّوا

نو اووهئ سټوته د دوی تر دے چه هرکله بنهٔ وینے تویٔ کړئ د دوی نو کلک کړئ

الْوَثَاقَ ڰ فَاِمَّا مَنًّۢا بَعْدُ وَاِمَّا فِدَاۗءً حَتّٰى تَضَعَ

تړل د هغوی نو یا خو احسان اوکړئ احسان کول روستو (د تړلو نه) او یا تربیته فدیئ واخلئ تر هغې پورے چه کیدی

الْحَرْبُ اَوْزَارَهَا ڔ ذٰلِكَ ڔ وَلَوْ يَشَاۗءُ اللّٰهُ لَانْتَصَرَ

جنګ سامان خپل دا خبره ده او که چرے اوغواړی الله تعالیٰ نو بدله به واخلی

مِنْهُمْ ڔ وَلٰكِنْ لِّيَبْلُوَا۟ بَعْضَكُمْ بِبَعْضٍ ۭ وَالَّذِيْنَ

پخپله د دوی نه او لیکن (تاسو ته ئے حکم د قتال درکړو) د دے د پاره چه ازمیښت اوکړی د بعض ستاسو په بعضو سره او هغه کسان

قُتِلُوْا فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ فَلَنْ يُّضِلَّ اَعْمَالَهُمْ ۝۴

چه اووژلے شو په لار د الله تعالیٰ کښ نو هیچرے نه بے کاره کوی عملونه د هغوی.

عنهم سیئاتهم د پاره سببونه ذکر کوی په طریقه د ترتیب سره او په دے کښ د کافرانو حال او د مؤمنانو هم یو حال ذکر کړے دے. ذٰلِكَ اشاره ده اضلال او تکفیر او اصلاح ته په تاویل د مذکور سره. الْبَاطِلَ د دے نه مراد دلیل باطل دے لکه اتباع د هوٰی (خواهش) او اتباع د اباؤ او الْحَقَّ د دے نه مراد دلیل حق دے قرآن او حدیث چه دا وحی ده د الله تعالیٰ د طرف نه. كَذٰلِكَ يَضْرِبُ اللّٰهُ اه مراد د امثال نه احوال او صفات دی او هُمْ ضمیر دواړه فریقو ته راجع دے یعنی صفات د دواړو ډلو الله تعالیٰ نورو خلقو ته ذکر کوی د پاره د دے چه خلق د حق او باطل تمیز او پیژنی او عبرت ترے واخلی.

سک دا تفریع ده په ماقبل دواړه قسمونو حالاتو باندے یعنی اے مؤمنانو هرکله چه ستاسو دغه اوچت حالات دی او ستاسو مقابله کښ کافران دی او د هغوی احوال د ذلت دی د دے وجے نه هغوی لره قتل کړئ د پاره د دے چه دا ذلیل اوصاف د دُنیا نه پورته شی. فَضَرْبَ الرِّقَابِ اشاره ده چه مؤمن صرف دفع کوونکے نه دے بلکه دے رفع کوونکے دے د دے وجے نه لَقِيْتُمْ ئے ووئیلی دی نو دا رنګ د قتل قصد کوونکی دلے اندام باندے ګذار کوی چه مقتول د هغے په وجے سره زر مړ کیدے شی (رباطے په بلامح)

سَيَهْدِيْهِمْ وَيُصْلِحُ بَالَهُمْ ﴿٥﴾ وَيُدْخِلُهُمُ

| ضرور کامیابوی دوی لره او ښائسته کوی حال دَ دوی - او داخله دی دوی لره |
|---|

او دغه انتام سته دے چه دَ هغې په وهلو سره دَ مرے رګونه پریکړے شی - فَشُدُّوا الْوَثَاقَ اشاره ده (اګرچه مؤمن رافع دے رلرے کوونکے دَ کافرانو دے) لیکن مقصد په رفع کښ په خلقو باندے رعب اچول دی دَپاره ددے چه بیا دَ مؤمن مخ له نه راځی دَ دے دوجے دَ ډیر قتل نه روستو امر ئې دَ قید کولو ورکړو فَإِمَّا مَنًّا بَعْدُ وَإِمَّا فِدَاءً دَ هر یو نه مخکښ فعل پټ دے تمنون منا او تفدون فداءً - قرطبی پنځه اقوال دَ دے ایت په ذیل کښ ذکر کړی دی چه دا منسوخ یا ناسخ دے یا محکم دے او بیا ئې اخری غوره کړیدے چه سرهٔ دَ قتال نه قیدیان جوړول او بیا احسانی پریښودل یا په فدیے سره پریښودل دا ټول کارونه جائز دی - حَتَّىٰ تَضَعَ الْحَرْبُ أَوْزَارَهَا په دے کښ توجیهات دی الحرب نه مراد جنګ کول دی یا ترینه مراد اهل الحرب دی أَوْزَارَهَا مراد ترینه اسلحه دَ جنګ ده یا مراد ترینه اسباب دَ جنګ دی یعنی شرك او کفر - هر کله چه دَ حرب نه مراد جنګ وی نو دَ اوزارو ایښودلو نسبت مجازی دے او چه اهل حرب مراد شی نو دَ اسلحے ایښودلو نه مراد صلح کول، جزیه اداکول، یا اسلام راوړل دی او چه مراد ترینه کفر او شرک شی نو دا به مناسب شی دَ سورة انفال ٣٩ سره یعنی چه ټول خلق به مسلمانان شی او هغه زمانه دَ نزول دَ عیسٰی علیه السلام ده - دا دَ مجاهد نه قرطبی نقل کړیدی او مطلب به دا شی چه اَلْجِهَادُ مَاضٍ إِلَىٰ يَوْمِ الْقِيَامَةِ ذَٰلِكَ دا یو کلمه ده چه فصیحان بلیغان خلق ئې استعمالوی کله چه دَ یو کلام نه بل کلام ته انتقال کوی - او دا په محل دَ رفع کښ دے مبتدا ئې حذف ده یعنی خبره دغه ده یا ئې خبر حذف دے دغه حکم دَ کافرانو دے یا په محل دَ نصب کښ ده یعنی دا کار اوکړئ - وَلَوْ يَشَاءُ اللَّهُ په دے جمله کښ حکمت دَ فرضیت دَ قتال ذکر کوی چه هغه ابتلاء کول دی په بندګانو باندے او دا حکمت په ټولو فرائضو الهیو کښ دے وَالَّذِينَ قُتِلُوا دا تسلّی ده دَپاره دَ شهداء فی سبیل الله -
فَلَنْ يُضِلَّ أَعْمَالَهُمْ په دے کښ حال دَ مؤمنانو شهداؤ ذکر کړے دے او مقابل دے دَ ١ سره -

٤ - ٦ په دے ایاتو کښ درے حالات دَ مومنانو شهیدانو ذکر کوی دَپاره دَ ترغیب دَ قتال فی سبیل الله - روستو دَ مرګ نه دَ هدایت معنی جنت ته رسول دَ

الْجَنَّةَ عَرَّفَهَا لَهُمْ ⑥ يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا إِنْ

جنت ته تعریف یې کړې دَ هغه جنت دوی لره - اے ایمان والو که

تَنْصُرُوا اللَّهَ يَنْصُرْكُمْ وَيُثَبِّتْ أَقْدَامَكُمْ ⑦

مدد اوکړئ دَ الله تعالیٰ نو مدد به اوکړی ستاسو او ټاخه به کړی قدمونه ستاسو .

وَالَّذِينَ كَفَرُوا فَتَعْسًا لَهُمْ وَأَضَلَّ أَعْمَالَهُمْ ⑧

او هر چه کافران دی نو تباهي ده دوی لره او برباد کړی دی عملونه دَ دوی .

لکه سورة اعراف ۴۳ کښ . وَيُصْلِحُ بَالَهُمْ په ۵ کښ اصلاح دَ بال (حال) په دنیا کښ مراد وه او دلته اصلاح په آخرت کښ مراد ده . عَرَّفَهَا لَهُمْ دَ تعریف نه دے په معنیٰ دَ پیژندګلے سره دے یعنی هر جنتی ته به خپل منزل او خودلے شی او هغه به یې پیژنی . یا دَ عرف نه دے په معنیٰ دَ خوشبویه کولو او په دیکښ نور توجیهات هم مفسرینو لیکلے دی .

۷ روستو دَ امر دَ قتال نه سره دَ ذکر دَ حالاتو دَ فریقینو نه تشجیع ورکوی په جهاد فی سبیل الله باندے او دوه حالتونه دَ مؤمنانو ذکرکوی دا حالتونه دوه وعدے دی دَ الله تعالیٰ دَ طرف نه په شرط دَ جهاد کولو سره . ان تَنْصُرُوا اللّٰهَ نصرت په اصل کښ دَ له کتین داخلیدل او دَ له کولو ته ویلے کیږی او هغے ته همکاری هم ویلے شی یعنی الله تعالیٰ دین رالیږلے دے او نبی صلی الله علیه وسلم یې رالیږلے دے او دین چلوی دا کار دَ الله تعالیٰ دے نو په دیکښ (دین چلولو کښ) ملګرتیا کولو ته نصرت ویلے کیږی نو دَ هغے یې دوه فائدے ذکر کړے دی یو نصرت دَ الله تعالیٰ دَ طرف نه یعنی غلبه ورکول په دشمن باندے دویم په دین باندے کلکول لکه سوره حج ۴۰ .

۸ دا یو قسم نصرت الهیه دے دَ مؤمنانو سره - او دَ کافرانو دوه حالتونه ذکرکوی دَ تخویف دَ پاره - فَتَعْسًا لَهُمْ . تعس په اصل کښ پر مخ پر یوتلو ته وائي لکه نکس چه په سر باندے غورځیدل دی بیا قرطبی دَ دے لس معانی ذکر کړے دی دَ هغے ټولو مقصد یو دے چه ذلیل کیدل دی . هغه لس دا دی . لرے والے ، غم ، مشقت ، بدرد ویل . هلاکت ، نا امیدی ، قباحت ، ذلیل کیدل ، بد حال ، بد بختی . وَأَضَلَّ أَعْمَالَهُمْ مراد دَ اعمالو نه دَ دوی کیدونه او مکروته دی په مخالفت دَ ایمان والو کښ .

ذٰلِكَ بِاَنَّهُمْ كَرِهُوْا مَآ اَنْزَلَ اللّٰهُ فَاَحْبَطَ اَعْمَالَهُمْ ﴿٩﴾

دا دَ دے وجے نه چه یقینًا دوی بدګنړی هغه چه نازل کړیدے الله نو بے فائدے کړیدی عملونه دَ دوی .

اَفَلَمْ يَسِيْرُوْا فِي الْاَرْضِ فَيَنْظُرُوْا كَيْفَ كَانَ

آیا دوی نه ګرځی په ملک کښ نو چه اوګوری چه څه رنګ وؤ

عَاقِبَةُ الَّذِيْنَ مِنْ قَبْلِهِمْ ؕ دَمَّرَ اللّٰهُ عَلَيْهِمْ ز وَ

آخری انجام دَ هغه خلقو چه دَ دوی نه مخکښ تیر شویدی تباهی راوستله الله تعالیٰ په هغوی باندے او

لِلْكٰفِرِيْنَ اَمْثَالُهَا ﴿١٠﴾ ذٰلِكَ بِاَنَّ اللّٰهَ مَوْلَى الَّذِيْنَ

کافرانو لره دَ دے پشان عذابونه دی . دا دَ دے وجے نه چه یقینًا الله مددګار (دوست) دَ

سـ۹ـ په دیکښ دوه حالات دَ کافرانو ذکر کوی . ذٰلِكَ په تاویل دَ مذکور سره اشاره ده تعس او اضلال ته یعنی دَ دغه دواړو دَ پاره سبب کراهیت دَ ما انزل الله دے بدګنړل دَ قرآن او سنت . ناکاره ګنړل حکم او شریعت دَ الله . فَاَحْبَطَ اَعْمَالَهُمْ دَ دے نه مراد عملونه دَ کفر او شرک او نور قبائح فواحش دی . فا دلالت کوی په سببیت باندے یعنی بدګنړل دَ ما انزل الله سبب دے دَ پیدا کیدلو دَ ناکاره عملونو دَ پاره لکه چه دا سبب دَ تعس او دَ اضلال هم دے فا دلالت کوی په سببیت خفیه (پټ) باندے او بآء دَ پاره دَ سببیت ظاهر په راځی نو دا ایت دلیل دے چه بدګنړل او نفرت کول دَ قرآن او سنت او دَ هغے دَ احکامونه سبب بنکاره دَ دَ پاره دَ هلاکت او دَ ذلت او دَ بے کاره کیدلو دَ عملونو او دَ دے نه پیدا کیږی بدکاری فحاشی او نور بد اعمال هم -

سـ۱۰ـ دا تخویف دنیوی دے او دَ کافرانو بوحال ذکر کوی او مثال دَ تعس (هلاکت) ذکر کوی په سبب دَ کراهیت دَ ما انزل الله سره - دَمَّرَ اللّٰهُ عَلَيْهِمْ دَمّار پوره هلاکولو او دَ بیخ نه ویستلو ته ویلے کیږی او عَلَيْهِمْ دلالت کوی په احاطه کولو دَ دمّار سره په هغوی باندے - وَلِلْكٰفِرِيْنَ دَ پاره دَ تعمیم وصف دَ کفر ئے ذکر کړو چه ټولو کافرانو ته شامل شی - اَمْثَالُهَا هَا ضمیر عاقبت ته راجع دے یعنی په تیر شوی اقوام مکذبه باندے چه کوم عذابونه راغلی وؤ نو دَ هغے پشان به په روستنو باندے هم راځی -

امَنُوْا وَاَنَّ الْكٰفِرِيْنَ لَا مَوْلٰى لَهُمْ ﴿۱۱﴾ اِنَّ اللّٰهَ

مؤمنانو دے او یقیناً کافران چه دی نیشته مددګار دَ هغوی . یقیناً الله تعالیٰ

يُدْخِلُ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ جَنّٰتٍ

به داخلوی هغه کسان چه ایمان ئې راوړے دے او عملونه ئې کړی دی په سنت برابر جنتونو ته

تَجْرِيْ مِنْ تَحْتِهَا الْاَنْهٰرُ ؕ وَالَّذِيْنَ كَفَرُوْا

چه بهیږی په لاندے دَ هغے نه ولے او کافران خو

يَتَمَتَّعُوْنَ وَيَاْكُلُوْنَ كَمَا تَاْكُلُ الْاَنْعَامُ وَالنَّارُ

مزے اخلی (دَ دنیا) او خوراک کوی لکه چه خوراک کوی څاروی او اور

مَثْوًى لَّهُمْ ﴿۱۲﴾ وَكَاَيِّنْ مِّنْ قَرْيَةٍ هِيَ اَشَدُّ

ځائے دَ دیره کیدلو دَ دوی دے . او ډیر کلی دی چه هغه مضبوط دی

سلا دا سبب دَ ماقبل دے او دَ مؤمنانو بوحال او دَ کافرانو بوحال ذکر کوی ذٰلِكَ اشاره ده نصرت دَ مؤمنانو او ذلت او هلاکت دَ کافرانو ته . مَوْلَى الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا دَ قشیری نه نقل دے چه دا ایت کریمه دَ ډیر اُمید (دَ خوشحالئ) ایت دے ځکه چه الله تعالیٰ خپل ولایت په عبادت کوونکو، وظیفو او ذکر کوونکو او ریاضت کوونکو پورے نه دے خاص کړے بلکه صرف مؤمنان ئې ذکر کړی دی. او دَ دے ایت موافق اعلان رسول الله صلّی الله علیه وسلّم په اُحد کښې کړے وو "لنا المولی ولا مولی لکم" په جواب دَ قول دَ کافرانو کښې "لنا العزیٰ ولا عزیٰ لکم".

سلا روستو دَ ذکر دَ حالاتو دَ فریقینو نه بشارت ذکر کوی یو فریق ته او تخویف دویم فریق لره او دَ مؤمنانو بوحال او دَ کافرانو درے حالتونه ئې ذکر کړی دی. تَجْرِيْ مِنْ تَحْتِهَا الْاَنْهٰرُ په دے جمله کښې اشاره ده چه دغه باغات دَ جنت همیشه تروتازه او په ترقئ سره دی . يَتَمَتَّعُوْنَ وَيَاْكُلُوْنَ تمتع عام دے دَ خوراك، څښاك، لباس، لهو ولعب، زیب وزینت ټولو ته شامل دے او اکل ئې خاص ذکر کړے دے اشاره ده چه لوے مقصد دَ دوی خوراک دے لکه سورة حجر سلا کښې تیر شوی دی . كَمَا تَاْكُلُ الْاَنْعَامُ تشبیه په ډیر څیزونو کښې ده . (ربا ئې په بل مخ)

قُوَّةً مِّنْ قَرْيَتِكَ الَّتِيْٓ اَخْرَجَتْكَ اَهْلَكْنٰهُمْ فَلَا

په قوت کښې سخت ډېر کلي ته هغه چه وویستلي يې ته هلاک کړي دي مونږ هغوی نو نه وو

نَاصِرَ لَهُمْ ﴿۱۳﴾ اَفَمَنْ كَانَ عَلٰى بَيِّنَةٍ مِّنْ رَّبِّهٖ

مددګار دوی لره. آيا څوک چه دی په ښکاره دليل باندې د رب د طرف نه يې

كَمَنْ زُيِّنَ لَهٗ سُوْٓءُ عَمَلِهٖ وَاتَّبَعُوْٓا اَهْوَآءَهُمْ ﴿۱۴﴾

پشان د هغه چا دې چه ودلي کړې شوي دي ده ته بدعمل د ده او تابعداري کړېږي د خواهشاتو خپلو.

مَثَلُ الْجَنَّةِ الَّتِيْ وُعِدَ الْمُتَّقُوْنَ ؕ فِيْهَآ اَنْهٰرٌ

صفت د هغه جنت چه وعده يې کړې شوې ده د متقيانو سره (دا دې) په هغې کښې ولې دي

مِّنْ مَّآءٍ غَيْرِ اٰسِنٍ ۚ وَاَنْهٰرٌ مِّنْ لَّبَنٍ لَّمْ يَتَغَيَّرْ

د اوبو نه چه نه په ګنده کېږي او ولې د پيو نه چه نه په بدلېږي

په تللو کښې، په فرق نه کولو د حرامو او حلالو کښې، په اول کښې بسم الله نه ويل او په آخر کښې حمد او شکر نه کول، خوراک مقصد ګرځول، او دا رنګ په ولاړه باندې خوړل.

۱۳ دا تسلّی ده نبي صلّی الله عليه وسلّم ته او تخويف دنيوي دې منکرينو ته.

قَرْيَةٍ هِيَ اَشَدُّ قُوَّةً اشاره ده احقاف ته چه هغې کښې سورت کښې تېر شول او د هغې په شان نورو واقعاتو هغکنو ته. اَهْلَكْنٰهُمْ هم ضمير اهل قريه ته راجع دې چه حذف دې.

۱۴ په دې کښې د تسلّی او د تخويف (چه هغې کښې ذکر شول) اسباب ذکر کوي او تقابل د فريقينو دې چه د مؤمنانو بوحال ذکر کوي او د کافرانو د دوه حالات ذکر کوي.

عَلٰى بَيِّنَةٍ مِّنْ رَّبِّهٖ اشاره ده چه مؤمنان د تقليد مذموم (تقليد جامد) نه بچ وي بلکه په دليل پسې روان وي. كَمَنْ زُيِّنَ لَهٗ سُوْٓءُ عَمَلِهٖ يعني شرك او بدعات ورته ثواب معلوميږي لکه سورة کهف ۱۰۴ سورة فاطر ۸ کښې تېر شوې دي. وَاتَّبَعُوْٓا اَهْوَآءَهُمْ يعني د عمل کولو د پاره دليل د وحی نه لري او خواهش (هوی) خو دليل نه دې.

طَعْمُهٗ ۚ وَاَنْهٰرٌ مِّنْ خَمْرٍ لَّذَّةٍ لِّلشّٰرِبِيْنَ ۚ وَاَنْهٰرٌ

خوند دَ هغې او ویلې دي دَ شرابو چه مزه ورکوي څکونکو لره او ویلې دي

مِّنْ عَسَلٍ مُّصَفًّى ۗ وَلَهُمْ فِيْهَا مِنْ كُلِّ

دَ ګبین چه صفا کړے شوے دے او دوی لره به وي په هغې کښ دَ هر قسم

الثَّمَرٰتِ وَمَغْفِرَةٌ مِّنْ رَّبِّهِمْ ۗ كَمَنْ هُوَ خَالِدٌ

میوه جاتو نه دي او بخښش دے دَ دوی دَرب دَ طرف نه (آیا دا سے کس) پشان دَ هغه چا دے چه همیشه وي

فِي النَّارِ وَسُقُوْا مَآءً حَمِيْمًا فَقَطَّعَ اَمْعَآءَهُمْ ﴿۱۵﴾

په اور کښ او څکولے کیږي په دوی باندے اوبه خوټکیدلے نو ټوټے ټوټے به کړي کولمے دَ دوی -

۱۵ ایت نه مخکښ بشارت په جنت سره ذکروؤ اوس دَ هغې تفصیل بیانوي او تقابل دے دَ فریقینو په جزا کښ. مَثَلُ الْجَنَّةِ دا مبتدا ده خبر ئے پټ دے (مَا تَسْمَعُوْنَ) یا همزه دَ استفهام محذوف دے او دا مبتداء ده او كَمَنْ هُوَ خَالِدٌ دا ئے خبر دے او مینځ کښ جمله حالیه ده. فِيْهَآ اَنْهٰرٌ مِّنْ مَّآءٍ غَيْرِ اٰسِنٍ دا صرف تفصیل دَ انواعو دَ مشروباتو ذکر کوي هرکله چه اول په مشروباتو کښ محبوب اوبه دي نو هغه ئے اول ذکر کړے. غَيْرِ اٰسِنٍ په خلاف دَ اوبو دَ دُنیا نه چه خوند ئے کله دَ اصل نه بدل وي او کله په عارض سره بدل شي لکه په یو ځائے ډیرے حصارے شي یا لهه پکښ پیدا شي. وَاَنْهٰرٌ مِّنْ لَّبَنٍ دَ اوبو نه روستو زیات نزدے هر طبیعت ته پئے (شودهٔ) څکل دي نو دویم ئے ذکر دَ پیو اوکړو لَمْ يَتَغَيَّرْ طَعْمُهٗ په خلاف دَ پیو دَ دینا چه کله دَ غولانزے نه راوځي او خوند ئے خراب وي یا ډیر وخت پرے تیر شي نو خراب شي. دَ اوبو صفت (غیر اسن) په صیغه دَ اسم سره ذکر وؤ او دَ پیو صفت (لم یتغیر) په صیغه دَ فعل سره ذکر کړو اشاره ده چه دَ اوبو دَ جنت به دغه صفت همیشه وي او جنتیان به هم دَ هغې خوند بدلول نه غواړي او دَ پیو خوند به پخپله نه بدلیږي لیکن که جنتیان غواړي چه ماسته شوملے وغیره و تربنه جوړے شي نو جوړیں لا شي. وَاَنْهٰرٌ مِّنْ خَمْرٍ هرکله چه عام طبیعتو نه دَ میوؤ او غلو نه ویستلے شوے رَس غواړي چه دَ هغې نه صوره دَ خمرو (شرابو) جوړیږي نو دریم ذکر ئے دَ هغې اوکړو لَّذَّةٍ لِّلشّٰرِبِيْنَ یعنی دَ هغې رنګ یا خوند یا عاقبت به داسے نه وي چه څکونکي دَ هغې نه نفرت (رپانے په بل مخ)

وَمِنْهُمْ مَّنْ يَّسْتَمِعُ اِلَيْكَ حَتّٰى اِذَا خَرَجُوْا مِنْ

او بعض خلق داسے دی چه غوږ کیدی تا ته (په جاسوسئ سره) تردے پورے چه هر کله او ځی ستا

عِنْدِكَ قَالُوْا لِلَّذِيْنَ اُوْتُوا الْعِلْمَ مَاذَا

دَ خوا نه وائي هغه کسانو ته چه علم ورکړے شویدے دا څه

قَالَ اٰنِفًا قف اُولٰٓئِكَ الَّذِيْنَ طَبَعَ اللّٰهُ

اُویل اوس دا هغه خلق دی چه مُهر وهلے دے الله تعالیٰ

اوکړی او په هغې کښ به ذاتی لذت پروت وی په خلاف دَ خمر دَ دنیا نه چه دَ هغې خوند او رنګ او عاقبت هم کریه وی لیکن په خارجی نورو څیزونو سره ئې پکښ عارضی لذت پیدا کړے وی۔ وَاَنْهٰرٌ مِّنْ عَسَلٍ هر کله چه عام طبیعتونه دَ مشروباتو خوګولے غواړی او دَ عام خوګو څیز و نو خوګوالے عارضی دے دَ دے وجے اکثر اوقاتو کښ هغه مضر هم کیدے شی او دَ عسل (ګبین) خوګوالے اصلی ذاتی دے او هغه شفاء او علاج دے بله دا چه عسل دَ مختلفو بوټو او ګلونو نه را ویستلے رس وی نو مناسبت ئې دَ خمرو سره شته دے۔ مُصَفًّى په صیغه دَ اسم مفعول دَ تصفیه نه راوړلو کښ مبالغه ده دَ هغې په صفائی کښ یعنی ګویا چه صفا ګوونکو هغې لره صفا کړے وی چه په هغې کښ په پکه او خسترې وغیره هیڅ نه وی۔ وَلَهُمْ فِيْهَا مِنْ كُلِّ الثَّمَرٰتِ مخکښ ذکر شو مشروبات او دا اجمالی ذکر دے دَ مطعوماتو۔ وَمَغْفِرَةٌ مِّنْ رَّبِّهِمْ اشاره ده چه په دُنیا کښ کله میزبان (کوربه) په زړه کښ دَ میلمنو نه خفه وی لیکن په جنت کښ به الله تعالیٰ دَ ټولو نه رضا وی او دَ دے وجے نه ګناهونه ئې ورته بخلے دی۔ كَمَنْ هُوَ خَالِدٌ فِى النَّارِ دَ زجاج نه نقل دے چه تقدیر دَ عبارت داسے دے اَفَمَنْ كَانَ عَلٰى بَيِّنَةٍ مِّنْ رَّبِّهٖ وَاُعْطِىَ هٰذِهِ الْاَشْيَاءَ كَمَنْ زُيِّنَ لَهٗ سُوْٓءُ عَمَلِهٖ وَهُوَ خَالِدٌ فِى النَّارِ۔

وَسُقُوْا مَآءً حَمِيْمًا دا په مقابله دَ مشروباتو دَ جنت کښ دے۔ دا داسے اوبه دی چه څوک نو ته ئې نزدے کړی نو مخ به ئې رویت پریت شی او دَ مخ غرمن به په هغې لوځی دَ اوبو کښ پریوځی لکه سورة کهف ۲۹ کښ تیر شوی بیا به ورله دننه کولمے ټکړے ټکړے کړی۔ او په حدیث کښ وارد دی چه دا ټکړے به دَ دوی نه لاندے او ځی (اللّٰهم اجرنا من النار)۔

عَلٰى قُلُوْبِهِمْ وَاتَّبَعُوْٓا اَهْوَآءَهُمْ ⑯

په زړونو دَدوی باندے او تابعداری کوی دوی دَ خواهشاتو خپلو۔

وَالَّذِيْنَ اهْتَدَوْا زَادَهُمْ هُدًى وَّ

او هغه کسان چه هدایت والا دی زیاتی کوی الله تعالیٰ دوی لره هدایت او

اٰتٰىهُمْ تَقْوٰىهُمْ ⑰ فَهَلْ يَنْظُرُوْنَ اِلَّا السَّاعَةَ

ورکوی دوی ته (توفیق) دَ تقویٰ۔ نو انتظار نه کوی دا منکرین مګر دَ قیامت

اَنْ تَاْتِيَهُمْ بَغْتَةً ۚ فَقَدْ جَآءَ اَشْرَاطُهَا ۚ

چه راشی دوی ته ناساپه نو یقیناً راغلی دی نخښے دَ هغے

سلا دا تقسیم دَ کافرانو ته اشاره ده چه بعضے پکښ داسے عمل کوی او دا عمل دَ منافق دے دَ مِنْهُمْ ضمیر راجع دے الذین یتمتعون ویاکلون ته او په دے آیت کښ دَ دوی درے حالات ئے ذکر کړیدی۔ مَاذَا قَالَ اٰنِفًا یعنی دَدوی توجه نه وی کلام دَ الله او دَ رسول ته په غفلت کښ وی نو پوهه نه لری او مراد دَ دے نه هغه کلام دے چه دوی واوریدلو یا مراد دَ دے نه هغه کلام دے چه دَدوی دَ راوتلو نه روستو وؤ دوی دَ هغے تپوس کوی په دے خیال باندے چه زمونږ په غیبت کښ ئے څه ویلی دی۔ یا دا چه غفلت کښ نه وی لیکن په طریقه دَ استهزاء او دَ نفرت سره وائی۔ دائی چه دے نبی دا څه بے فائدے خبرے اوکړے۔ وَاتَّبَعُوْٓا اَهْوَآءَهُمْ دا سبب دے دَ پاره دَ نه پوهیدلو په کلام دَ الله تعالیٰ او دَ رسول دَ هغهٔ یا دا استهزاء ده په هغے پورے او په سکلا کښ چه اتباع هویٰ ذکر کړے وه نو هغه سبب وؤ دَ پاره دَ تزیین دَ بد عمل دَدوی۔

سکلا دا په مقابله دَ مخکښ کښ دَ مؤمنانو دوه صفات ذکر کوی۔ زَادَهُمْ ضمیر الله تعالیٰ ته راجع دے یا استماع دَ قرآن ته۔ یعنی ایمان والا چه قرآن اوری نو الله تعالیٰ دوی لره په سبب دَ هغے سره ایمان زیاتوی ځکه چه دوی ئے په غفلت سره نه اوری او استهزاء هم نه کوی۔ وَاٰتٰىهُمْ تَقْوٰىهُمْ یعنی په قرآن اوریدلو سره طریقے دَ تقویٰ هم ایزده شی او دَ هغے توفیق ورته هم حاصل شی۔

فَأَنّٰى لَهُمْ إِذَا جَآءَتْهُمْ ذِكْرٰىهُمْ ﴿۱۸﴾ فَاعْلَمْ أَنَّهٗ لَآ

نو د کوم ځائے نه به وی دوی لره کله چه قیامت راشی نصیحت اخستل د دوی. پس پوهه شه چه یقیناً نیشته

إِلٰهَ إِلَّا اللّٰهُ وَاسْتَغْفِرْ لِذَنْۢبِكَ وَلِلْمُؤْمِنِيْنَ وَ

حقدار د بندګۍ سیوا د الله تعالیٰ نه او بخنه غواړه د پاره د بوج خپل او د پاره د مؤمنانو سړو او

---

ف۱۸ په دے کښ تخویف اخروی دے او ذکر د بد حال د کافرانو دے. فَهَلْ يَنْظُرُوْنَ إِلَّا ه
یعنی دا کافران هر کله چه اوس ایمان نه راوړی نو معلومیږی چه انتظار د قیامت کوی
(دوی وائی) چه قیامت راشی نو بیا به ایمان راوړو أَنْ تَأْتِيَهُمْ بَغْتَةً دا بدل اشتمال دے
د السَّاعَةُ نه یعنی قیامت خو ناګهه راځی دوی ته بیا مهلت د توبے نشی ورکیدے بَغْتَةً
هغه حال دے چه تاریخ معیین ئے معلوم نه وی نو انسان ورته تیار نه وی
کړے او ناسا په راشی اګرچه نښے ئے معلومے وی.
فَقَدْ جَآءَ أَشْرَاطُهَا شرط نښے د زخم ته ویلے کیږی کله چه جوړ شی دلته مراد د هغے
نه د قیامت واړه علامات دی چه اول په هغے کښ د نبی صلی الله علیه وسلم بعثت دے
لکه چه صحیح حدیث کښ وارد دی (بُعِثْتُ أَنَا وَالسَّاعَةُ كَهَاتَيْنِ) نو نبی صلی الله
علیه وسلم خوړا اولیږلے شو او دارنګ انشقاق القمر او دُخان دے او دا خو تیر شوی
د دے وجے نه جَآءَ په فعل ماضی سره ئے اوویل او هر کله چه اوله نښه موجوده شوه
نو نورے ورپسے پرله پسے راځی د دے وجے نه جمع صیغه ذکر کړله. او نورے
نښے په احادیثو کښ ذکر دی بعضے د هغو نه دا دی. علم د دین به پورته کړے شی.
جهل به زیات شی. غریبان به مالداران شی. ربا خوړل او شراب څښل او زنا
کول به ډیر شی. نارینه به کم شی. زنانه به ډیرے شی تر دے پورے چه د
پنځو سو زنانو به یو سړے منتظم وی. امانت به برباد کړے شی یعنی کارونه
به نااهلو ته او سپارلے شی شهادت د دروغو او په دروغه قسمونه به ډیر شی
مساجدو کښ به آوازونه اوچت کړے شی د ټنګ ټکور سامان به ډیر شی دوستانو
به تزدے کولے شی او مور و پلار او خپلوان به لرے کړے شی. نو دا نښے زمونږ
زمانه کښ اکثر موجود دی لیکن اکثر مخلوق تر ېته بیا هم غافل دے. فَأَنّٰى لَهُمْ
إِذَا جَآءَتْهُمْ ذِكْرٰىهُمْ. ذِكْرٰىهُمْ مبتداده فانی لهم خبر مقدم دے اذا جاءتهم
شرط (معترض) دے لکه سورة فجر ف۲۳ کښ دی.

الْمُؤْمِنٰتِ وَاللّٰهُ يَعْلَمُ مُتَقَلَّبَكُمْ وَمَثْوٰىكُمْ ⑲ وَ

ذ زنانو مومنو دَ پاره . او الله تعالیٰ پیژنی ستاسو دَ گرځیدلو او دَ دیره کیدلو ځایونه . او

۱۹ په دے کښی دعویٰ دَ توحید ده چه هغه مقصد دَ مثال دے. ربط دَ مخکښی سره داده چه دَ قیامت نزدے کیدل یئ ذکر کړل نو اوس دَ قیامت دَ عذاب نه دَ بچ کیدلو دَ پاره طریقه کار ذکر کوی. نو تقدیر دَ عبارت داده دَ اِذَا ثبت ان الذکری لا تَنْفَعُ وَقْتَ مجی الساعة فاعلم (الآن) رهر کله چه ثابته شوه چه کله قیامت راشی نو ذکری فائده نه ورکوی نو اوس په ذکری باندے علم حاصل کړئ . او اول او اهم ذکری کلمه دَ توحید ده . فَاعْلَمْ پیغمبر صلّی الله علیه وسلّم ته خطاب دے او مراد تربیته امت دے یا مراد دَ دے نه په دے علم باندے کلک پاتے کیدل دی . او علم دَ دے کلمے شامل دے علم ته په الفاظو دَ هغے باندے او په معنیٰ دَ هغے باندے او په هغے باندے عقیده ساتل او په مقتضیاتو دَ هغے باندے هم پوهه او عمل کول. او دا دلیل دے چه علم دَ توحید اول فرض دے او دا رنگ دا دلیل دے چه علم دَ قول او عمل نه مخکښی دے ذدے وجے امام بخاری په ترجمة الباب کښی ذکر کړے دی باب العلم قبل القول والعمل او بیا یئ په دے ایت سره استدلال کړیدے. وَاسْتَغْفِرْ لِذَنْۢبِكَ استغفار قول دَ ژبے دے او عمل هم دے اشاره ده چه دَ علم سره استغفار په کثرت سره ضروری دے. لِذَنْۢبِكَ (سوال) نبی صلّی الله علیه وسلّم خو معصوم دے نو هغه ته ئے دَ ذنب نسبت ولے اوکړو؟

جواب . اول جواب داده چه مراد دَ ذنب نه گناه نه دے بلکه بوج دَ زړه او خفگان دے په سبب دَ شرک دَ مشرکانو او مخالفت دَ مخالفینو یعنی استغفر الله وایه دَ پاره دَ ختمه کولو دَ خفگان دَ زړه نه او دلیل په دے باندے حدیث دے . انه لیغان علی قلبی فاستغفر الله سبعین مرةً او مأته مرة (یقینا زما په زړه باندے بوج او خفگان راځی نو ځه اویا یا سل کرته استغفار وایم ) دویم جواب مراد دَ ذنب نه افضل کار کله کله پریخودل دی اگر چه هغه گناه نه دے لیکن دَ مقربینو دَ شان سره مناسب نه دے دریم جواب قرطبی ذکر کړے دے چه استغفار غواړه دَ پاره دَ بچ کیدلو دَ گناه کولو نه . وَلِلْمُؤْمِنِيْنَ وَالْمُؤْمِنٰتِ دا شفاعت کول دی په دنیا کښی او اشاره ده چه هر مؤمن لره ضروری دی چه استغفار په دَ نورو مؤمنانو دَ پاره غواړی . وَاللّٰهُ يَعْلَمُ مُتَقَلَّبَكُمْ وَمَثْوٰىكُمْ دا دواړه الفاظ (پاتے په بل مخ )

يَقُوْلُ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لَوْلَا نُزِّلَتْ سُوْرَةٌ ۚ فَاِذَآ

وائي هغه خلق چه دعوىٰ دَ ايمان كوى ولے نشى نازليدلے يو سورت نو كوم وخت

اُنْزِلَتْ سُوْرَةٌ مُّحْكَمَةٌ وَّذُكِرَ فِيْهَا الْقِتَالُ ۙ رَاَيْتَ

چه نازل كړيشى سورت پوخ مضمون والا او ذكر كړيشى په هغے كښ حكم دَ قتال وبه وينے ته

الَّذِيْنَ فِىْ قُلُوْبِهِمْ مَّرَضٌ يَّنْظُرُوْنَ اِلَيْكَ

هغه كسان چه په زړونو دَ هغوى كښ مرض دے گورى تا ته

نَظَرَ الْمَغْشِيِّ عَلَيْهِ مِنَ الْمَوْتِ ۗ فَاَوْلٰى لَهُمْ ۝٢٠

پشان دَ نظر كولو دَ هغه چاچه بيهوشى وربانده راغلے وى دَ مرگ دَ وجے نه نو تباهى ده دوى لره۔

ډيرو معانو ته شامل دى ع۱ گرځيدل دَ ورځے او ځائے دَ آرام كولو دَ شپے ع۲ عملونه ستاسو په دُنيا كښ او مرجع په قبر او په قيامت كښ ع۳ گرځيدل په سفر كښ او اقامت كول په يو ځائے كښ يعنى ستاسو په ټولو حالاتو باندے الله تعالىٰ عالم دے دَ دے وجے نه دَ هغه دَ توحيد دَ الوهيت علم ضرورى دے او استغفار غوښتل پكار دى۔ دا رنگ په دے كښ اشاره ده چه علم او عمل په تاسو باندے فرض دے او هرچه دَ هغے عاقبت او نتيجه ده نو هغه دَ الله تعالىٰ په علم او اختيار كښ ده۔

س۲ دَ دے آيت نه دويم باب دے تر آخر دَ سورت پورے په دے كښ زواجر دَ منافقينو دى په ذكر دَ اتلس قبائحو دَ هغوى سره او ترغيب دے قتال ته په س۳۳ س۳۵ كښ او ترغيب دے انفاق ته سره دَ تزهيد فى الدنيا نه۔

تفسير په دے (س۲۰) كښ زجر دے منافقينو ته په ذكر دَ څلورو حالاتو دَ هغوى سره الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا دا قول دَ مخلصانو مؤمنانو دے دَ پاره دَ شوق دَ جهاد او دَ حرص په وحى او ريدلو باندے دا طلب كوى يا مراد دَ دوى نه منافقان دى چه طلب دَ نزول دَ سورت په طريقه دَ منافقت سره كوى لكه سورة نساء س۷۷ كښ ذكر دى۔ مُحْكَمَةٌ چه ښكاره مراد والا وى او نه منسوخ كيږى۔ فِىْ قُلُوْبِهِمْ مَّرَضٌ نفاق او بزدلى دَ چه دَ هغے اثر ئے روستو ذكر كړے دے الْمَغْشِيِّ عَلَيْهِ مِنَ الْمَوْتِ دَ مرگ په وخت كښ بے هوشى راشى يا دَ ويرے دَ مرگ نه بے هوشه شى نو دَ هغه سترگے نيغ او وازے وى يو طرف ته او دا رنگ دَ بزدل سړى دَ ويرے دَ

طَاعَةٌ وَّقَوْلٌ مَّعْرُوْفٌ فَاِذَا عَزَمَ الْاَمْرُ فَلَوْ

(ښكاره ده) دوى لره تابعدارى كول او وينا نيكه نو كوم وخت چه پوخ شو حكم دَ قتال نو كه چرے

صَدَقُوا اللّٰهَ لَكَانَ خَيْرًا لَّهُمْ ﴿۲۱﴾ فَهَلْ عَسَيْتُمْ

رښتيني كړے وو دوى لوظ دَ الله تعالىٰ ضرور به غوره وو دوى لره . نو يقيناً نزدے يئ تاسو

اِنْ تَوَلَّيْتُمْ اَنْ تُفْسِدُوْا فِى الْاَرْضِ وَتُقَطِّعُوْٓا

كه چرے مخ واړوئ چه فساد به اوكړئ په ملك كښ او پرے به كړئ

اَرْحَامَكُمْ ﴿۲۲﴾ اُولٰٓئِكَ الَّذِيْنَ لَعَنَهُمُ اللّٰهُ فَاَصَمَّهُمْ

خپلوى ستاسو . دا هغه خلق دى چه لعنت كړيدے الله تعالىٰ په دوى باندے نو كانړه ئے كړل دوى

وجے نه سترګے وازے وى او يو طرف ته ګورى فَاَوْلٰى لَهُمْ اصمعى وئيلى دى چه دَدے معنىٰ داده چه قريب شو دوى ته هغه خير چه هلاكوى دوى لره نو اَوْلٰى فعل ماضى لازمى ده او فاعل ئے حذف دے يا فعل ماضى متعدى ده ضمير فاعل الله تعالىٰ ته راجع دے او هلاك مفعول ئے حذف دے. يا اولى په معنىٰ دَ ويل سره مصدر دے يا اوْلٰى په معنىٰ دَ زيات لائق دے او مبتدا حذف ده يعنى العقاب اَوْلٰى لَهُمْ يا اَوْلٰى په معنىٰ لائق سره دے او خبر دے مقدم او مبتدا ئے طَاعت دَ قول معروف دے.

س۲۱ طَاعَةٌ اه دَدے دَ پاره خبر حذف دے يعنى خَيْرٌ لَّهُمْ. يعنى كه چرے دوى دَ جهاد نه ويره نه كولے بلكه طاعت ئے كړے وے نو ډير خير به وو. او مراد طاعة نه طاعت دَ الله تعالىٰ او دَ رسول دے عموماً او خاص په معامله دَ جهاد كښ. مَّعْرُوْفٌ هغه خير دے چه شرعاً معلوم وى خائست دَ هغے. فَاِذَا عَزَمَ الْاَمْرُ يو بس شو حكم دَ جهاد يعنى فرض كړے شو په داسے طريقه چه بيا نه منسوخ كيږى. فَلَوْ صَدَقُوا اللّٰهَ، دا ټوله جمله جزاء دَ اِذَا ده مراد دَ صدق نه اخلاص كول دَ ايمان او دَ جهاد دى. لَوْ دلالت كوى په امتناع دَ دواړه جزئينو دَ جملے نو معلومه شوه چه دوى صادق نه دى نو دا دَ منافقينو بل حال دے.

س۲۲ مراد دَ تَوَلَّيْتُمْ نه اعراض دَ كتاب الله او دَ جهاد نه دے دا قول دَ قتاده دے نو په دے ايت كښ اشاره ده ناكاره تا تجو ته دَ اعراض دَ كتاب الله (پاتے په بل مخ)

وَأَعْمَىٰٓ أَبْصَارَهُمْ ﴿٢٣﴾ أَفَلَا يَتَدَبَّرُونَ الْقُرْآنَ أَمْ

او ړندې ئې کړلې سترګې د دوی | آیا دوی سوچ نه کوي | په قرآن کښې | بلکه

عَلَىٰ قُلُوبٍ أَقْفَالُهَا ﴿٢٤﴾ إِنَّ الَّذِينَ ارْتَدُّوا عَلَىٰ

په زړونو د دوی باندې جرندې د هغې دي. | یقیناً | هغه کسان چه واوړیدل (د ایمان نه) | په

او د جهاد نه. یعنې که چرې تاسو د قرآن نه مخ واړوئې او جهاد پریږدئې نو په ملک کښې به ګناهونه او بغاوت او ناحق قتلونه ډیر شي او دا فساد دې او خپلوئې به ختم شي یعنې په خپلوانو باندې به ظلم شورو شي او یو بل باندې به لوټ مار کیږي پشان د جاهلیت. یا مراد د تولیتم نه والیان کیدل دي یعنې منافقانو ته چه ولایت افسري ملاو شي نو فسادونه به کوي په مخالفت د قرآن او سنت سره او په ظلمونو کولو او په رشوتونو اخستلو سره. نو په آیت کښې دا دوه حالات د منافقانو ذکر دي چه په اعراض کولو یا په ولایت حاصلولو سره پیدا کیږي.

فائده:- ارحام کم قرطبي ویلي دي چه ارحام دوه قسمونه دي اول عام دویم خاص دې عام رحم یعنې تعلق د دین اسلام دې او دا د ټولو مسلمانانو حق دې او خاص خو صرف د نسبي خپلوانو حق دې.

۲۳ تا ۲۴ دا نور صفات د منافقانو دي په دواړو آیاتونو کښې ئې پنځه ذکر کړې دي. أُولَٰئِكَ دا اشاره ده تیر شوي صفتونو والو ته یعنې ماقبل (افساد او قطع الارحام) سبب د لعنت دې او لعنت سبب د اصمام او عمی د سترګو دې حرف د فا په دې ترتیب او سببیت باندې دلیل دې.

فائده: فاصم اذانهم ئې او نه وییل اشاره ده چه په غوږ پریکولو سره اوریدل نه فوت کیږي او په سترګه لرکولو سره نظر ختمیږي. أَفَلَا يَتَدَبَّرُونَ الْقُرْآنَ، همزه استفهام انکاري دې نفي د تدبر ترینه مراد ده او حرف فا دلالت کوي چه اصمام او عمی سبب دې د نفي د تدبر د قرآن او په دې کښې اشاره ده چه مقصد د قرآن صرف تلاوت د الفاظو نه دې بلکه تدبر او سوچ کول دي په معاني او مقاصدو او حکمتونو د هغه کښې او دا رنګ سورة نساء ۸۲ کښې تیر شوې دي. أَمْ عَلَىٰ قُلُوبٍ أَقْفَالُهَا أَمْ په معنی د بَلْ سره دې د پاره د ترقۍ په سبب د نفي د تدبر د قرآن کښې یعنې د تدبر نه کولو حقیقي وجه دا ده چه د دوی په زړونو باندې جرندې وهلې شوې دي.

أَدْبَارِهِمْ مِّنْ بَعْدِ مَا تَبَيَّنَ لَهُمُ الْهُدَى

شا ته خپلو پاندے روستو دَ دے نه چه ښه ښکاره شو دوی ته هدایت

الشَّيْطٰنُ سَوَّلَ لَهُمْ ۗ وَأَمْلٰى لَهُمْ ﴿٢٥﴾ ذٰلِكَ بِأَنَّهُمْ

شیطان چولی کړیدی دوی ته (عملونه دَدوی) او مهلت ئے ورکړیدے دوی ته۔ دادَ دے وجے نه چه یقیناً دوی

قَالُوا لِلَّذِينَ كَرِهُوا مَا نَزَّلَ اللّٰهُ سَنُطِيعُكُمْ فِي

وائی هغه کسانو ته چه بدا گنړی هغه چه نازل کړیدے الله تعالیٰ موږ به ستاسو خبره اومنو په

لکه جرندہ (تالہ) چه دروازه پاندے اُوهلے شی نو دننه هیڅ خیز نه شی داخلیدلے نو دارنګ دَدوی زړونو ته دننه حق خبره نه داخلیږی۔

فائده: قلوب نکره ده په سیاق دَاثبات کښ ده یعنی په بعضے زړونو پاندے قفل وهی۔ او أَقْفَالُهَا ئے مضاف کړیدے ضمیر دَ قلوب ته اشاره ده چه مراد دَ دے نه جرندے دَ او سپنے نه دی بلکه جرندے چه مناسب وی دَ زړونو سره یعنی جرندے دَ کفر او عناد کولو۔

۲۵ دا هم زجر دے منافقانو ته او ارتداد دَ هغوی دا دے چه دَ قرآن نه فرضیت دَ قتال ورته معلوم شو او بیا ئے هم اعراض اوکړو او سبب دَ ارتداد ئے ذکر کړو سَوَّلَ او أَمْلٰى نو په دے آیت کښ دَ منافقانو درے حالات ذکر شول۔

سَوَّلَ لَهُمْ تسویل نه مراد خائسته کول سره دَ اسانولو نه دی۔ وَ أَمْلٰى لَهُمْ سوال۔ مهلت ورکوونکے الله تعالیٰ دے نو شیطان ته وَلے نسبت او شو؟

اول جواب دا دے چه أَمْلٰى ضمیر الله تعالیٰ ته راجع دے په قرینه دَ ۱۷۸ دَ سورة آلعمران او ۵۵ دَ سورة مؤمنون۔

دوئم جواب دا دے چه ضمیر شیطان ته راجع دے چه شیطان مهلت ورکوی یعنی په وسوسو سره دَانسان نه مرګ هیر کړی او دَ دے تائید په سورة اعراف ۲۰۲ کښ دے۔ سَوَّلَ کښ اشاره ده اعمالو دَ شرک او بدعاتو ته چه هغه ته دوی ګناهو نه نه وائی دَ دے وجے نه توبه او باسی او أَمْلٰى کښ اشاره ده انهماک دَ دوی په خواهشاتو او شهواتو نفسیاتو کښ چه توبے کولو نه غافل دی۔

بَعْضِ الْاَمْرِ ۚ وَاللّٰهُ يَعْلَمُ اِسْرَارَهُمْ ﴿٢٦﴾ فَكَيْفَ اِذَا

بعض کارونو کښې او الله تعالىٰ پوهیږی دَدوی په پټو خبرو کولو باندے. نو څه رنګ حال به دوی وی

تَوَفَّتْهُمُ الْمَلٰٓئِكَةُ يَضْرِبُوْنَ وُجُوْهَهُمْ وَاَدْبَارَهُمْ ﴿٢٧﴾

چه ساه اخلی دَدوی نه ملائک دَمرګ وهی به مخونه دَدوی او شاګانے دَدوی.

ذٰلِكَ بِاَنَّهُمُ اتَّبَعُوْا مَآ اَسْخَطَ اللّٰهَ وَكَرِهُوْا

دا په دے وجه چه یقیناً دوی تابعداری کړیده دَ هغه کار چه خفه کړیدے الله تعالىٰ او بد ګڼلی دوی

رِضْوَانَهٗ فَاَحْبَطَ اَعْمَالَهُمْ ﴿٢٨﴾ اَمْ حَسِبَ الَّذِيْنَ

رضا دَ الله تعالىٰ نو بے فائدے کړیدی عملونه دَدوی. آیا ګمان کوی هغه کسان

سـ٢٦ په دے ایت کښې هم زجر دے منافقانو ته او سبب دَ تسویل الشیطان ذکر کوی چه هغه دَ بے دینو خلقو سره په بے دینئ کښې تعاون کول دی یا دَ تعاون کولو وعده کول دی. كَرِهُوْا مَآ اَنْزَلَ اللّٰهُ دَدوی ذکر دَ دے سورت په ایت سـ٩ کښې تیر شویدے او هغه ښکاره کافران او مشرکان دی. بَعْضِ الْاَمْرِ مراد ترینه مخالفت دَ نبی صلّی الله علیه وسلّم او خلقو لره دَ هغه دَ طاعت نه منع کول او دَ جهاد نه منع کول دی اظهار دَ شرک ترینه مراد ندے. اِسْرَارَهُمْ دا خبرو دوی پټه کوله او دا رنګ نور منافقتونه دوی پټ ساتلی دی هغه دلته مراد دی.

سـ٢٧ دا تخویف دَ حال دَ زنکدن دے. او حرف دَ فَا دلیل دے چه دا عذاب به په سبب دَ مخکښے ذکر شوی صفاتو او احوال سره وی. تخصیص دَ مخونو او شاګانو په دے وجه سره دے چه په وخت دَ اعلان دَ قتال کښې دَدوی په مخونو باندے آثار دَ خفګان ښکاره کیده او دغه مخ به ئے پټ کوو هسے نه چه په قتال کښې په هغے باندے ګذار اولګی او شا به ئے ګرځوله په وخت دَ تختیدلو کښې نو په دے ایت کښې دَ دوی یو حال ذکر شو. دا رنګ په سورة انفال سـ٥٠ کښې هم تیر شویدی.

سـ٢٨ په دے ایت کښې دَ دوی درے حالتونه ذکر کوی او هغه اسباب دی دَ تیر شوی عذاب (ضرب دَ مخونو او دَ شاګانو) په طریقه دَ لف نشر مرتب سره یعنی وهل دَ مخونو په سبب دَ اتباع دَ ما اسخط سره دی او وهل دَ شاګانو په سبب دَ کراهت دَ رضا دَ الله تعالىٰ دی او په دغه دواړو باندے احباط دَ عمل مرتب کړے دے.

فِيْ قُلُوْبِهِمْ مَّرَضٌ اَنْ لَّنْ يُّخْرِجَ اللّٰهُ اَضْغَانَهُمْ ﴿۲۹﴾

چه په زړونو دَدوی کښې مرض (کينه) دے چه راښکاره نه کړی الله تعالیٰ کينے دَدوی (دَ مؤمنانو سره)

وَلَوْ نَشَآءُ لَاَرَيْنٰكَهُمْ فَلَعَرَفْتَهُمْ بِسِيْمٰهُمْ وَلَتَعْرِفَنَّهُمْ

او که مونږ اوغواړو نو اوبه ښايو تاته دوی نو او به پيژنے دوی لره په نخښو دَدوی سره، او ضرور به ته اوس پيژنے

فِيْ لَحْنِ الْقَوْلِ وَاللّٰهُ يَعْلَمُ اَعْمَالَكُمْ ﴿۳۰﴾ وَلَنَبْلُوَنَّكُمْ

په چالاکو خبرو کښې او الله تعالیٰ پوهه دے په عملونو ستاسو ۔ او ضرور ازميښت کوؤ مونږ به تاسو باندے

اتَّبَعُوْا مَآ اَسْخَطَ اللّٰهَ سبب دَ غضب دَ الله تعالیٰ کفر کول دی او دَ هغې سره خِداع او فساد او په مؤمنانو پورے استهزاء ئيو خلے کړيدی. وَكَرِهُوْا رِضْوَانَهٗ سبب دَ رضا دَ الله تعالیٰ ايمان، توحيد، اخلاص او اتباع دَ قرآن او سنت ده هغه دوی بد ګنړی ۔

فائده ۔ رضوان ئې په صيغه دَ اسم سره او اسخط په صيغه دَ فعل سره ذکر کړيدی اشاره ده چه رضا دَ الله تعالیٰ غالبه ده په غضب دَ هغه باندے. اَعْمَالَهُمْ دَ دے نه مراد هغه اعمال حسنه دی چه منافقان ئې دَ نفاق دَ وجے کوی۔

س۲۹ په دے کښې زجر دے او ذکر دَ يو حالت دَ منافقانو دے. او په دے کې سره دَ منافقانو ګيله ختموی ۔ دوی وائي چه زمونږ قبائح نښکاره نه دی پکار. نو الله تعالیٰ اوفرمائيل چه دا ګمان دَ دوی غلط دے چه مونږ به دَ دوی قبائح نه ښکاره کوؤ. مَرَضٌ ، نفاق او حسد او بغض دَ مؤمنانو سره دَ دوی دَ زړه مرض دے ځکه چه روستو لفظ اَضْغَانَهُمْ په هغې باندے دلالت کوی يعنی دا ټول صفات دَ منافقت دَ دوی دَ مؤمنانو سره دَ کينے کولو دَ وجے نه دی۔

س۳۰ هرکله چه دَ منافقينو بعضے علامات او صفات ذکر شول او ټول ئې بيان نه کړل دَ دے وجه ذکر کوی په دے ايت کښې لَاَرَيْنٰكَهُمْ مراد دَ دے نه خودل دَ ټولو علامتو دی ليکن لو دلالت کوی په امتناع دَ دواړو جملو يعنی دَ الله تعالیٰ مشيت په دے باندے نيشته نو ټول علامات دَ دوی دَ معرفت ئې تا ته نه دی خودلی۔

فَلَعَرَفْتَهُمْ بِسِيْمٰهُمْ دا عطف دے لَاَرَيْنٰكَهُمْ باندے ليکن هرکله چه په هغې کښې معنیٰ دَ انتفاء ثابته شوه نو په دے جمله کښې هم معنیٰ دَ انتفاء ده يعنی ته ئې په علامانو سره نه پيژنے ۔ وَلَتَعْرِفَنَّهُمْ فِيْ لَحْنِ الْقَوْلِ دا ذکر دے دَ يو علامت خاصه يعنی په وخت دَ لحن القول کښې به ئې ضرور پيژنے (باقی په بل مخ)

حَتّٰى نَعْلَمَ الْمُجٰهِدِيْنَ مِنْكُمْ وَالصّٰبِرِيْنَ وَنَبْلُوَا

(تر) دے پورے چه جدا کړو موږ جهاد کوونکی ستاسو نه او صبر کوونکی او ښکاره به کړو موږ

اَخْبَارَكُمْ ﴿٣١﴾ اِنَّ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا وَصَدُّوْا عَنْ سَبِيْلِ

(حقیقت) دَ خبرونو ستاسو۔ یقیناً هغه کسان چه کفر ئې کړیدے او منع کوی خلقو لره دَ لار

سوال:- دا جمله دلالت کوی چه نبی صلّی اللّٰه علیه وسلّم نټول منافقان پیژندل او دَ ایت دَ سورة نو په سلا نه صراحتاً معلومیږی چه هغه ټول نه پیژندل؟

جواب:- دَ دے جواب ابن کثیر سورة نو په کښ لیکلے دے دَ هغے حاصل دادے چه دا دَ باب دَ توسم نه دے (یعنی په نخه سره پیژندل) او دَ دے نه دا نه لازمیږی چه ټول منافقانو په تعیین او په تفسیر سره پیژنی۔ حاصل دَ جواب دادے چه په لحن القول سره پیژندلے شی لیکن هر یو منافق په هر وخت کښ لحن القول نه کوو دَ دے وجے نه په ټولو باندے علم حاصل نه شو۔

سوال:- حدیث دَ مسند احمد کښ چه نبی صلّی اللّٰه علیه وسلّم دَ جُمعے په ورځ یو یو منافق ته آواز ورکړو او دَ مسجد نه ئې اوشړلو او شپږ دیرش کسانو نومونه ئې واخستل نو معلومه شوه چه ټول منافقان ئې او پیژندل؟

جواب:- دَ دے نه معلومه شوه چه نبی صلّی اللّٰه علیه وسلّم بعض منافقان پیژندلے دو ټول ئې نه وو پیژندلی۔ لَحْنِ الْقَوْلِ۔ لَحْن مائل کول دَ کلام دی دَ ظاهری معنی نه بلے معنی ته۔ ابو حیان وئیلے دی مراد تریته هغه کلمات دی چه ظاهراً اخائسته دی او مراد تریته قبیح وی لکه راعنا وغیره۔ لَحْن ورانے او چالاکے دَ خبرو ته وئیلے کیږی او لَحْن خطائے او غلطے دَ کلماتو ته هم وئیلے کیږی دا ټولے معانی دلته مراد کیدیشی۔ وَاللّٰهُ يَعْلَمُ اَعْمَالَكُمْ اضافت دَ پاره دَ استغراق دے یعنی ستاسو په ټولو عملونو ظاهری او باطنی باندے صرف اللّٰه تعالیٰ علم لری دا دلیل دے چه پیغمبر هم په ټولو اعمالو دَ مخلوق باندے علم نه لری۔

ف۳۱:- مخکښ ایت کښ دَ معرفت دَ منافقانو دَ پاره یو علامت ذکر کړے وو په دے ایت کښ دَ دے معرفت او تمیز دَ پاره بله طریقه ذکر کوی چه هغه ابتلاء ده په مصیبتونو سره یا په عباداتونو او په فرضیت دَ جهاد سره او ابتلاء دَ اللّٰه تعالیٰ دَ حقیقت ښکاره کولو دَ پاره وی دَ دے وجے حَتّٰى نَعْلَمَ راوړو مراد دَ علم نه علم دَ

اللّٰهِ وَشَآقُّوا الرَّسُوْلَ مِنْۢ بَعْدِ مَا تَبَيَّنَ لَهُمُ الْهُدٰى ۙ

دَ الله تعالیٰ نه او خلاف کوی دَ رسول نه روستو دَ دے نه چه ښه ښکاره شو دوی ته هدایت

لَنْ يَّضُرُّوا اللّٰهَ شَيْـًٔا ۭ وَسَيُحْبِطُ اَعْمَالَهُمْ ۝ يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ

هیچرے ضرر نه شی ورکولے الله تعالیٰ ته هیڅ قسم او ضرور بے فائدے به کړی عملونه دَ دوی ۔ اے ایمان

اٰمَنُوْٓا اَطِيْعُوا اللّٰهَ وَاَطِيْعُوا الرَّسُوْلَ وَلَا تُبْطِلُوْٓا

والو اطاعت کوئے دَ الله تعالیٰ او اطاعت کوئے دَ رسول او مه برباد وئے

اَعْمَالَكُمْ ۝ اِنَّ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا وَصَدُّوْا عَنْ سَبِيْلِ

عملونه خپل (په مخالفت دَ دے دواړو) یقیناً هغه کسان چه کفر ئے کړیدے او منع کول کوی دَ لارے

اظهار او دَ تمیز دے ۔ الْمُجَاهِدِيْنَ عام دے قتال او نورو سختو اعمالو شرعیو ته ۔
وَنَبْلُوَا اَخْبَارَكُمْ اخبار په معنیٰ دَ باطنی حالاتو دے چه اخلاص او نفاق وغیره دی یعنی جهاد او صبر ظاهری اعمال دی او اخلاص، نفاق باطنی اعمال دی دا تول په ابتلاء اتو سره ښکاره کیږی ۔ دَ فضیل بن عیاض رحمة الله علیه نه نقل دے چه هغه به دا آیت اولوستلو نو ژړا به ئے اوکړه او دُعا به ئے کوله چه یا الله تعالیٰ زمونږ پټ حالات مه ښکاره کوه دَ پاره دَ دے چه شرمنده نه شو۔
۳۲ په دے آیت کښ زجر دے منافقانو او نورو کافرانو ته او دَ دوی پنځه حالات ذکر کوی۔ وَشَآقُّوا الرَّسُوْلَ مشاقة دَ شقاق او دَ شِق نه ماخوذ دے یعنی مخالفت دَ رسول او دَ سنت دَ رسول په ضد او په عناد سره کوی په دا سے طریقے سره چه خپله لار دَ نبی دَ لارے نه په بل جانب اوګرځوی۔ وَسَيُحْبِطُ اَعْمَالَكُمْ مراد دَ دے نه هغه کیدونه او مکرونه دی چه په دشمنئ دَ رسول الله صلّی الله علیه وسلّم کښ دوی کوی۔
۳۳ هر کله چه دَ منافقانو احوال ئے ذکر کړل نو اوس مؤمنان منع کوی دَ صفاتو دَ منافقانو نه او ترغیب ورکوی اطاعت دَ الله تعالیٰ او دَ رسول دَ هغه ته۔ وَلَا تُبْطِلُوْٓا اَعْمَالَكُمْ مراد دَ دے نه تحذیر دے دَ صفاتو دَ منافقانو نه چه مخکښ بیان کړے شول چه هغه سبب دَ بطلان دَ عملونو دے ۔ بیا دا جمله عامه ده هر ابطال ته شامله ده که په مخالفت دَ الله تعالیٰ او دَ رسول سره وی او که په (ریا نے په بل مخ)

اللّٰهِ ثُمَّ مَاتُوْا وَهُمْ كُفَّارٌ فَلَنْ يَّغْفِرَ اللّٰهُ لَهُمْ ﴿۳۴﴾ فَلَا

دَ الله تعالىٰ نه بيا مړه شي په دغه حال کښې چه کافر وي نو هيچرې بخنه نه کوي دوي ته الله تعالىٰ . نو کمزوري

تَهِنُوْا وَتَدْعُوْآ اِلَى السَّلْمِ ۖ وَاَنْتُمُ الْاَعْلَوْنَ ۖ وَاللّٰهُ

مه بنکاره کوئ او بلنه مه کوئ صلح کولو ته (دَ وجې دَ سستئ نه) او حال دا چه تاسو اوچت يئ او الله تعالىٰ

مَعَكُمْ وَلَنْ يَّتِرَكُمْ اَعْمَالَكُمْ ﴿۳۵﴾ اِنَّمَا الْحَيٰوةُ الدُّنْيَا

ستاسو ملګرې دې او هيچرې نه کمه وي ثواب دَ عملونو ستاسو . يقيناً ژوند دنيوي

مرتد کيدلو سره او که په شرك او کفر کولو سره وي .

فائده :- يو نفل يا سنت مونځ چه شورو وي او په دغه وخت دَ فرض جماعت شورو شي نو نفل او سنت به في الحال پريږدي روستو ولې به نه کوي دَ پاره دَ عمل کولو په دې حديث "اذا اقيمة الصلوٰة فلا صلوٰة الا المكتوبة" او دې ته ابطالِ عمل ويل جائز نه دي بلکه دا خو موافقت کول دي په حديث صحيح باندې . او دا رنګ نفل عمل نه پوره کول روستو دَ شورو کولو نه (سيوا دَ حج او عمرې) دا ابطال دَ عمل نه دې بلکه ترك دَ عمل اختياري دې .

۳۴ روستو دَ خطاب دَ مؤمنانو نه زجر دې کافرانو ته . مخکښې ۳۲ په باره دَ ضديانو عناديانو کښې وو او دا په باره دَ جاهلانو کافرانو کښې دې . فَلَنْ يَّغْفِرَ اللّٰهُ لَهُمْ اشاره ده که چرې دَ مرګ نه مخکښې ئې دَ کفر نه صحيح توبه کړې وي نو الله تعالىٰ به ورته بخنه کړې وې .

۳۵ هر کله چه دَ کافرانو خبا ثتونه ئې ذکر کړه نو اوس مؤمنانو ته تشجيع ورکوي په جهاد کولو او منع کوي دوي لره دَ بې همته کيدلو نه . فَلَا تَهِنُوْا دا په سورة العمران ۱۳۹ کښې هم تير شويدې وهن کمزوري بنکاره کول دي دُشمن ته او حديث کښې دَ وهن دوه اسباب ذکر شويدي محبت دَ دنيا ۲ ويره کول دَ مرګ نه . وَتَدْعُوْآ اِلَى السَّلْمِ دا دَ وهن يو صورت دې چه پخپله صلح کولو ته دعوت ورکوي نو دا وهن دې او دَ دې آيت دَ آيت دَ سورة انفال ۶۱ سره مخالفت نيشته ځکه چه هلته ئې شرط لګولې دې چه کافران هر کله دَ صلح طلب کوي نو بيا صلح کول جائز دي او دلته مراد دا دې چه تاسو دَ اول سر نه طلب دَ صلح مه کوئ . دَ دې وجې نه په حديبيه کښې صلح په طلب دَ کافرانو سره شوې وه .

لَعِبٌ وَّلَهْوٌ ۗ وَاِنْ تُؤْمِنُوْا وَتَتَّقُوْا يُؤْتِكُمْ اُجُوْرَكُمْ

لوبے او مشغلہ دہ او کہ تاسو ایمان راوړو او تقویٰ مو اوکړه نو دربه کړی تاسو ته ثوابونه ستاسو

وَلَا يَسْـَٔلْكُمْ اَمْوَالَكُمْ ﴿۳۶﴾ اِنْ يَّسْـَٔلْكُمُوْهَا فَيُحْفِكُمْ

او نه غواړی الله تعالیٰ ستاسو نه مالونه ستاسو ۔ که چرے او غواړی ستاسو نه مالونه او زور درباندے اوکړی

وَاَنْتُمُ الْاَعْلَوْنَ اوچت والے په عزت او په مرتبه کښ دے په نیز د الله تعالیٰ یعنی ستاسو مرتبه په نیز د الله تعالیٰ اوچته ده نو سپک کار مه کوئ۔ یا مراد اوچت والے دے په حجت او دلیل کښ۔ یا مراد د دے نه غلبه ده په عاقبت کښ اگر چه بعض اوقاتو کښ د بعض عوارضو د وجے نه مؤمنان مغلوب شی۔ او تشجیع د پاره ئے درے علتونه ذکر کړے دی اول انتم الاعلون۔ دویم والله معکم۔ دریم ولن یترکم الخ۔
وَاللّٰهُ مَعَكُمْ په معنیٰ د ملگرتیا او مدد کولو سره استعمالیږی او دا ښکاره معنیٰ ده تاویل نه دے نو معلومه شوه چه معیت د متشابهاتو نه نه دے لکه چه امام بخاری او نورو سلفو هم دا معنیٰ ذکر کړے ده او د بعضو علماؤ په نیز دا د متشابهاتو نه دے یعنی معیت نه معنیٰ ظاهری مراد ده او کیفیت د هغې باندے الله تعالیٰ ته پوهیږی لیکن دا توجیه ضعیفه ده ځکه چه په عقیده د فوقیت د الله تعالیٰ کښ شبه پیدا کوی۔
وَلَنْ يَّتِرَكُمْ اَعْمَالَكُمْ دا په مقابل د سیحبط اعمالهم کښ دے او مراد د دے نه ثواب د اعمالو صالحو دے۔

۳۶ په دے ایت کښ تزهید فی الدنیا ذکر کوی ځکه چه محبت د دنیا سبب د وهن دے او دا رنگ ترغیب ورکوی انفاق فی سبیل الله ته۔ اِنَّمَا الْحَيٰوةُ الدُّنْيَا هغه ژوند او هغه سامانونه چه د دین د پاره نه خرچ کیږی هغه دلته مراد دی۔
لَعِبٌ وَّلَهْوٌ دا دواړه په دے مفهوم کښ شریک دی چه په بے فائدے څیز باندے مشغوله کیدل دی لیکن په لعب کښ ځان خوشحالول مقصد وی او دا اکثر د ډیر بچو کار دے وی او په لهو کښ صرف ځان مشغولول وی سره دا خوشحالی پکښ مقصد نه وی او دا د ځوانانو او د مشرانو خلقو کار دے۔ یا مراد د ایت نه تشبیه ده د زرختمیدلو د ژوند د دنیا یعنی دا ژوند دا سے زر ختمیږی لکه د لعب او لهو وخت چه لگ وی او زر ختم شی۔ وَاِنْ تُؤْمِنُوْا وَتَتَّقُوْا اشاره ده چه هر کله د ژوند دنیوی سره ایمان او تقویٰ جمع شی نو بیا په ریاتے په بل مخ)

تَبْخَلُوا وَيُخْرِجْ أَضْغَانَكُمْ ﴿۳۷﴾ هَا أَنتُمْ هَٰؤُلَاءِ تُدْعَوْنَ

تو بخل به اوکړئ او را ښکاره به کړی کینې ستاسو۔ خبر شئ تاسو اے خلقو را بللے کیږے شئ

لِتُنفِقُوا فِي سَبِيلِ اللَّهِ فَمِنكُم مَّن يَبْخَلُ وَ

دَ پاره دَ دے چه خرچه اوکړئ په لار دَ الله تعالیٰ کښ تو بعض ستاسو نه هغه دی چه بخل کوی او

مَن يَبْخَلْ فَإِنَّمَا يَبْخَلُ عَن نَّفْسِهِ وَاللَّهُ الْغَنِيُّ

چا چه بخل اوکړو تو یقیناً بخل کوی (رچه راوځی) دَ نفس دَ هغه نه او الله تعالیٰ بے حاجته دے

هغے سره ډیرے فائدے حاصلیږی۔ او په تقویٰ سره مراد په دے ایت کښ دَ بزدلے

او وهن او دَ بخل نه بچ کیدل دی په جهاد او انفاق کولو سره۔ وَلَا يَسْأَلْكُمْ أَمْوَالَكُمْ

په دیکښ څلور توجیهات دی اوله داده چه ستاسو نه ټول مالونه نه غواړی بلکه

بعض حصّه دَ مال لکه لسمه شلمه اوڅلویښتمه۔ دویم داچه ستاسو مالونه الله تعالیٰ

دَ ځان دَ پاره نه غواړی بلکه ستاسو انفاق ستاسو دَ فائدے دَ پاره دے۔ دریم دا مالونه

ستاسو مالونه نه دی بلکه دَ الله تعالیٰ دی نو هغه در نه خپل مالونه غواړی ستاسو

مالونه نه غواړی۔ څلورم داچه نبی صلّی الله علیه وسلّم ستاسو نه په دعوت دَ دین

باندے اجرت نه غواړی۔ په اول درے توجیهاتو سره دا ترغیب دے انفاق طرف

ته۔ او په اخری توجیه باندے ترغیب دے ایمان او تقویٰ ته چه په دے اجرونه

ملاویږی او ستاسو هیڅ خیر پکښ نه خرچ کیږی یعنی گټه ده او تاوان پکښ

نیشته۔

۳۷ په دے کښ حکمت ذکر کوی چه الله تعالیٰ ستاسو نه ټول مال نه غواړی

دَ پاره دَ دے چه شرمنده نشئ په ښکاره کیدلو دَ بخل او دَ کینې کولو سره۔ ځکه چه

الله تعالیٰ مهربان دے او په خپلو بندګانو باندے پرده اچوی۔ فَيُحْفِكُمْ احفاء په

لغت کښ انتهاء ته رسیدل دی په خبره کولو جګړه کولو او سوال کولو کښ۔

وَيُخْرِجْ أَضْغَانَكُمْ دَ اخراج نه مراد راښکاره کول دی او مخرج ضمیر بخل ته

راجع دے یا الله تعالیٰ ته راجع دے یا سوال او احفاء ته راجع دے او روستنی

جمله دلیل دے چه دا خطاب منافقانو ته دے ځکه چه دَ مخکښ نه معلومه شویه

چه دا صفتونه (بخل، ضغن) دَ منافقانو دی۔

وَاَنْتُمُ الْفُقَرَآءُ ۚ وَاِنْ تَتَوَلَّوْا يَسْتَبْدِلْ

او تاسو حاجتمند يئ او که چرې مخ واړوۍ تاسو نو بدله کښ به راولي

قَوْمًا غَيْرَكُمْ ثُمَّ لَا يَكُوْنُوْٓا اَمْثَالَكُمْ ﴿۳۸﴾

نور خلق سيوا ستاسو نه بيا به نه وي هغوي ستاسو پشان ۔

سے۳۸ هغکښ ايت کښ بخل ذکر کړے شو په هغه وخت کښ چه ټول مال ترينه طلب کړے شي نواوس ترقي کوي په زجر کښ چه ټول مال خو پريګده که لګه حصّه ترينه دَ انفاق في سبيل الله دَ پاره طلب کړيشي نو هم دوي بخل کوي ۔ فَمِنْكُمْ مَّنْ يَّبْخَلُ دويم قسم يئ حذف کړے دے يعني منکم من يجود ليکن دلته بخلاؤ ته زجر مقصد دے دَ دے وجے نه دايو قسم يئ ذکر کړو ۔ فَاِنَّمَا يَبْخَلُ عَنْ نَّفْسِهٖ په عَنْ حرف کښ اشاره ده چه دا بخل پيدا شويدے دَ دوي دَ نفوسو خبيثو نه ۔ وَاللّٰهُ الْغَنِيُّ وَاَنْتُمُ الْفُقَرَآءُ دا سے سورة فاطر ۱۵ کښ هم تير شوي دي ليکن دلته يئ والله الغني هغکښ ذکر کړے دے او هلته کښ روستو وجه داده چه دلته دفع دَ وهم مقصد ده وهم دادے چه الله تعالیٰ امر دَ انفاق کوي نو معلوميږي چه الله تعالیٰ محتاج دے نو دَ دے په جواب کښ والله الغني ړاندے ذکر کړو او په سورة فاطر کښ رد دَ شرك في الدعاء مقصد وو نو فقر دَ مخلوق يئ هغکښ ذکر کړو چه دا مخلوق دَ الله تعالیٰ سره څه رنګه شريک جوړيدے شي دوي خو بخپله محتاج دي ۔ وَاِنْ تَتَوَلَّوْا يَسْتَبْدِلْ قَوْمًا دا عطف دَ په ان تؤمنوا وتتقوا باندے په سے۳۶ کښ يا واو استينافيه دے اِنْ په مقام دَ شک کښ ذکر کيږي نو معلومه شوه چه مخاطبين چه صحابه کرام دي هغوي نه وو اړولے دَ دے وجے نه دَ هغوي په ژوند کښ دَ دين حفاظت الله تعالیٰ په بل چا باندے دَ هغوي په بدله کښ نه دے کړے هاں هرکله چه دَ سلف صالحينو دَ زمانے تير يدلو نه روستو رفته رفته عربو مخ واړوۍ نو الله تعالیٰ دَ دين کار عجمو ته او سپارلو ۔ يا دا خطاب منافقانو دَ مدينے ته وۍ چه هغوي وخت په وخت دَ جهاد او انفاق نه مخ اړوۍ نو الله تعالیٰ هغوي رفته رفته هلاك کړل او انصار يئ دَ هغوي په ځائے باندے دَ دين دَ حفاظت دَ پاره قائم کړل ۔

ختم شو تفسير دَ سورة محمد په فضل دَ الله تعالیٰ سره او په توفيق دَ هغه سره ۔

| ایاتها ۲۹ | ۴ رکوعاتها | بسم الله الرحمٰن الرحیم | سورة الفتح | ۴۸ مدنیة ۱۱۱ |
|---|---|---|---|---|

اِنَّا فَتَحۡنَا لَکَ فَتۡحًا مُّبِیۡنًا ۙ﴿۱﴾ لِّیَغۡفِرَ لَکَ اللّٰهُ

یقینًا فتح درکړه مونږ تاته فتح ښکاره . د دے دپاره چه بخښنه اوکړی تاته الله تعالیٰ

بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِیۡمِ

## سورة الفتح

ربط دَ دے سورت دَ مخکښی سورت سره په دیرو وجوهو سره دے اوله وجه هر کله چه امر دَ قتال اوشو په مخکښی سورت کښی نو په دے سورت کښی بشارت دے په فتح او په انزال السکینه سره - دویمه وجه هر کله چه په هغه سورت کښی دَ مؤمنانو هغه اتلس صفات یے ذکر کړل چه علتونه دَ تشجیع دَ قتال فی سبیل الله وو نو اوس دا سے اتلس صفتونه دَ هغوی ذکر کوی چه اسباب دَ رضا دَ الله تعالیٰ دی دَ هغوی ته. دریمه وجه په هغه سورت کښی ذکر وو نوم دَ محمد صلی الله علیه وسلم نو اوس په دے سورت کښی ذکر دَ عظمتِ شان دَ هغه دے خلورمه وجه دا ده چه په هغه سورت کښی منع وه دَ دعوت الی الصلح نه نو اوس په دے سورت کښی اشاره کوی که چرے کافران دعوت درکوی صلحے ته نو صلح اوکړئے دا فتح اوګنړئے لکه صلح حدیبیه -

دعویٰ دَ سورت - زیرے ورکول نبی صلی الله علیه وسلم ته په فتح سره او عظمتِ شان دَ هغه او زیرے ورکول مؤمنانو (صحابه کرامو) ته په انزال السکینه سره او ذکر دَ صفاتو دَ هغوی -

او مسئله دَ توحید یے په مختلف تعبیراتو سره په ۴ ۹ ۱۱ ۱۴ ۲۶ ۲۷ کښی راوړے ده او نهه اسماءِ حسنیٰ دَ الله تعالیٰ -

خلاصه دَ سورت دا تقسیم دے دوه بابونو ته اول باب تر ۱۸ پورے دے په دے کښی دوه بشارتونه دی او دَ هر یو سره متعلق خلور خلور امور ذکر دی بیا صداقت دَ رسول او عظمت شان دَ هغه سره دَ ذکر دَ توحید نه بیا توی - بیا اس قباحتونه دَ منافقانو زجرًا او ذکر دَ عذر والو دے په ۱۷ کښی -

مَا تَقَدَّمَ مِنْ ذَنْبِكَ وَمَا تَأَخَّرَ وَيُتِمَّ نِعْمَتَهُ

دَ هغه چه مخکښ تیر شویدی دَ خطا ګانے ستا نه او هغه چه روستو شویدی او پوره کوی نعمت خپل

عَلَيْكَ وَيَهْدِيَكَ صِرَاطًا مُّسْتَقِيمًا ﴿٢﴾ وَيَنْصُرَكَ

په تا باندے او کلکه وی تا لره په لار نیغه باندے - او مدد به کوی تا سره

تفسیر سلـ مراد دَ فتح نه په صحیح قول کښ صلح دَ حدیبیه ده چه سبب دَ فتح دَ اسلام او ګرځیدله په دلیل دَ حدیث دَ براء بن عازب رضی الله عنه سره هغه ویلی دی چه تاسو فتح دَ مکے فتح ګنړے هاں هغه خو یو فتح ده او مونږ بیعت الرضوان فتح ګنړو. او دا رنګ روایت دَ انس رضی الله عنه دے هرکله چه نبی صلّی الله علیه وسلّم دَ صلح حدیبیه نه واپس شو نو په صحابه کرامو باندے ډیر غم او خفګان وو نو دا آیا تونه نازل شول او نبی صلّی الله علیه وسلّم اوفرمائیل چه دا ماته دَ ټولے دنیا نه زیات خوږ دی امام زهری رحمة الله نه نقل دے چه دَ صلح حدیبیه نه غټه فتح بله نه وه دَ دے وجے نه چه مشرکان دَ مسلمانانو سره خلط شول دَ هغوی خبرے ئے واوریدے نو اسلام کښ داخل شول او په دوه درے کاله کښ ډیر خلق مسلمانان شول. فَتْحًا مُّبِينًا په دے کښ ډیر معجزات ښکاره شول او سبب شو دَ غلبے دَ اسلام او قتال پکښ هم او نشو دَ دے وجے نه مبین صفت ئے ذکر کړو.

سـ۲ سـ۳ دا ذکر دَ څلورو فائدو دے په فتح کښ دَ پاره دَ نبی صلّی الله علیه وسلّم.

اوله فائده :- لِيَغْفِرَ لَكَ اللَّهُ لام دَ پاره دَ عاقبت او غائے دے یعنی فتح سبب دے دَ پاره دَ دے څلورو فائدو او وجه دَ سببیت دا ده چه فتح مبین دَ وجے دَ جهاد او دَ قتال فے سبیل الله او دَ نورو تکالیفو تیرولو نه روستو راغله او دغه کارونه سبب دَ مغفرت دَ ګناهونو دی ځکه چه ان الحسنات یذهبن السیئات هود سـ۱۱۴ او مشهوره ده چه إِنَّ الْعَطَايَا عَلَى مَتْنِ الْبَلَايَا ریقیناً بخششونه دَ مصیبتونو په شا باندے وی) دویم قول دا دے چه لام دَ پاره دَ علت دے یعنی فتح مبین ئے دَ دے وجے نه ورکړه چه الله تعالی مغفرت کړے دے او دا نور کمالات ئے ورکړیدی. لیکن دا قول ضعیف دے ځکه دا څلور امور ئے په صیغه دَ مستقبل ذکر کړے دی او فتح ئے دَ ماضی په صیغه سره ذکر کړے ده نو را تلونکے څیز علت او سبب دَ تیر شوی دَ پاره نشی کیدلے.

سوال :- لفظ دَ مغفرت او ذنب دلالت کوی چه نبی صلّی الله علیه وسلّم (پاتے په یل مخ)

اللّٰهُ نَصْرًا عَزِيْزًا ۝۳ هُوَ الَّذِيْٓ اَنْزَلَ السَّكِيْنَةَ فِيْ

اللّٰه تعالیٰ مدد عزت والا . خاص اللّٰه تعالیٰ هغه ذات دے چه رالیږلے ده تسلی (یقین) په

ګناهونه کړیدی او حال دا دے چه هغه او ټول انبیاء علیهم السّلام معصوم دی د ګناهونو نه ؟

**جواب** :- په ډیرو وجوهو سره دے اوله وجه دا ده چه دا جمله مستلزم د ګناهونو کولو دپاره نه ده د دے وجې نه چه د ذنب نه مراد خلاف الافضل کارونه دی چه هغه ګناه نه دے لیکن د انبیاء علیهم السلام دپاره سبب د خفګان وی نو هغه خفګان اللّٰه تعالیٰ لرے کړی دے نه مغفرت ویلے شویدے . دویمه وجه مغفرت په معنیٰ د عصمت دے لکه شربینی دا قول نقل کړیدے یعنی اللّٰه تعالیٰ ته بچ ساتلے یئې د ګناهونو کولو نه په تیر شوی وخت کښ او هم په روستو وخت کښ . دریمه وجه دا جمله په ظاهر کښ تجیزیه ده لیکن په معنیٰ د تعلیق سره ده یعنی که چرے وی ستا مخکښ او روستو ګناهونه نو اللّٰه تعالیٰ تا ته بخنه کړیده . مَا تَقَدَّمَ مِنْ ذَنْۢبِكَ وَمَا تَاَخَّرَ په دے کښ ډیر اقوال دی د مفسرینو . قول د مجاهد دا دے چه مخکښ د نبوت نه او روستو د نبوت نه .

دویم قول مخکښ د فتح نه او روستو د فتح نه . دریم قول مخکښ د دے وخت نه او روستو د دے نه . څلورم قول چه ارتکاب د منهی عنه یئې کړے وی او مامور به یئې پریخود لے وی .

**دویمه فائده** :- وَيُتِمَّ نِعْمَتَهٗ عَلَيْكَ په دے کښ اشاره ده نزول د هغه احکامو ته چه روستو د فتح نه نازل شویدی او دا رنګ اشاره ده چه روستو د فتح نه ډیر متکبرین خلق په اسلام کښ داخل شی لکه سورة نصر کښ د فتح نه روستو وَرَاَيْتَ النَّاسَ يدخلون فی دين اللّٰه افواجا راغلے دے .

**دریمه فائده** :- وَيَهْدِيَكَ صِرَاطًا مُّسْتَقِيْمًا هدایت په معنیٰ د تثبیت سره دے یعنی فتح سبب شو دپاره د تثبت په دین باندے .

**څلورمه فائده** :- وَيَنْصُرَكَ اللّٰهُ نَصْرًا عَزِيْزًا **سوال** :- سورة نصر کښ نصرت د فتح نه مخکښ ذکر کړے دے او دلته یئې فتح سبب د اخرت او ګرځوله نو معلومه شوه چه فتح په نصرت باندے مخکښ ده ؟ **جواب** :- په هغه سورت کښ د نصر نه مراد اسباب د غلبے ورکول دی او په دے ایت کښ مراد د نصر نه غلبه ورکول دی په ټولو دشمنانو باندے نو اشاره شوه د مکے فتح کولو نه او ورسره د دغے نه روستو چه کوم فتوح نبی صلی اللّٰه علیه وسلّم ته حاصل شول .

عَزِيْزًا عزت والا یعنی د غلبے سره به عزت وی یا عزیز په معنیٰ د عزیز الوجود (یعنی بے مثاله نصرت) دے .

قُلُوْبِ الْمُؤْمِنِيْنَ لِيَزْدَادُوْٓا اِيْمَانًا مَّعَ اِيْمَانِهِمْ ؕ

زړونو دَ مؤمنانو کښې . دے دَپاره چه زیاتی شی ایمان سرهٔ دَ ایمان دَ دوی نه ،

وَلِلّٰهِ جُنُوْدُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ ؕ وَكَانَ اللّٰهُ عَلِيْمًا

او خاص الله تعالیٰ لره لښکرے دَ اسمانونو او دَ زمکے دی او الله تعالیٰ دے علم والا

حَكِيْمًا ۙ﴿۴﴾ لِّيُدْخِلَ الْمُؤْمِنِيْنَ وَالْمُؤْمِنٰتِ جَنّٰتٍ

حکمتونو والا . دے دَپاره چه داخل کړی مؤمنان سړی او مؤمنے زنانه جنتونو ته

سکـ دادویم بشارت دے مؤمنانو ته په انزال السکینه سره. مراد دَ دے نه کلکیدل دَ په دین او اطمینان دَ زړه دے او شبهات دَ زړه لرے کیدل دی سرهٔ دَ دے نه چه دَ حدیبیه دَ سفر مصیبتونه او دَ کفارو منع کول او بغیر دَ مقصد دَ عمرے کولو نه وطن ته واپس کیدل او بعض شرطونه دَ صلح چه ظاهرًا دلیل دَ کمزورے وؤ مثلاً، دا ټول سبب دَ زیغ او دَ خفگان وؤ لیکن دَ هغے اثرئے دَ دوی دَ زړونو نه لرے کړو . دَ ابن عباس رضی الله عنهما نه روایت دے چه هره سکینه په قران کښې په معنیٰ دَ طمانیت ده بیا یو روایت کښې دَ سورة بقره دَ لفظ سکینه استثناء ده لیکن هغه استثناء صحیح نه ده ځکه چه هغه هم په معنیٰ دَ طمانیت ده . بیا دَ انزال السکینه باندے څلور فائدے مرتب کړے دی اوله فائده :. لِيَزْدَادُوْٓا اِيْمَانًا مَّعَ اِيْمَانِهِمْ او وجه دَ تفریع دَ دے فائدے داده چه هر کله شبهات دَ زړه نه لرے شول او ډیر معجزات دَ نبی صلی الله علیه وسلم (چه په سفر حدیبیه کښې) ښکاره شول نو په دے سره ضرور ایمان زیات شو. او په دے زیادت دَ ایمان اقوال دی اول ایمان په شرائعو دَ دین باندے روستو دَ ایمان بالله والیوم الاخر نه دا روایت دَ ابن عباس رضی الله عنهما دے. دویم قول یقین په الله تعالیٰ او په رسول باندے وؤ نو هغه یقین نور زیات شو دا دَ ضحاک قول دے. یا دَ ایمان فطری سره ایمان شرعی یوځائے شو نو ایمان زیات شو دا روستو قول ضعیف دے ځکه دَ دے واقعے نه مخکښې هم ایمان شرعی وؤ.

فائده :- دا ایت دلیل دے چه په نفس ایمان کښې زیاتے او کمے راځی او امام بخاری رحمه الله دغه شان اته ایات دَ دے مسئلے په اثبات کښې ذکر کړے دی. مثلاً معلومه خبره ده چه په ایمان (یقین) دَ ابو بکر رضی الله عنه او په (زیاتے په بل مخ)

تَجۡرِیۡ مِنۡ تَحۡتِهَا الۡاَنۡهٰرُ خٰلِدِیۡنَ فِیۡهَا وَ یُكَفِّرَ

چه بهیږی لاندې دَ هغې نه ولې همیشه به وی دوی په هغې کښې او لرې به کړی

عَنۡهُمۡ سَیِّاٰتِهِمۡ ؕ وَ كَانَ ذٰلِكَ عِنۡدَ اللّٰهِ فَوۡزًا عَظِیۡمًا ۙ﴿۵﴾

دَ دوی نه بدئ دَ دوی او دا ده په نیز دَ الله تعالیٰ کامیابی لویه ۔

یقین زمونږ کښې ډیر فرق دے۔ او بعض علماؤ دَ دے نه زیادت دَ ایمان په سبب دَ اعمالو کولو سره مراد کړے دے یعنی دَ چا چه عملونه زیات وی نو ایمان ئې زیات وی او دَ چا چه عملونه کم وی نو ایمان ئې کم وی۔ او دوی وائی چه نفسِ ایمان (یقین) کښې زیادت نه راځی نو دا قول ضعیف دے بلکه دواړه زیادتونه ثابت دی او بعض علماء دَ اطلاق دَ لفظ دَ زیادت نه مطلقًا احتراز کوی بلکه دَ زیادت تاویل په پوخ والی یا په ښکاره والی سره کوی او حال دا دے چه دَ دوی سره په عدم زیادت باندے هیڅ دلیل نیشته نو دا قول دَ دوی ډیر کمزورے دے دَ قرآن کریم تحریف معنوی ته نزدے خبره ده۔ هاں مجتهد دَ اجتهاد په خطائې سره گناه گار نه دے لیکن په هغه پسے په دَ خطائې کښې تقلید کول سره دَ ظهور دَ مخالف دلیل نه ظلم دے۔ وَلِلّٰهِ جُنُوۡدُ السَّمٰوٰتِ وَالۡاَرۡضِ دا علتِ حقیقیه دَ انزال السکینه دے یعنی اسباب دَ نصرت کله ملائک دَ اسمانونو دالیرلی دی او کله حیوانات حشرات دَ زمکے او دا ټول دَ الله تعالیٰ په اختیار کښې دی۔ او هر کله چه اسباب دَ نصرت دَ هغه په اختیار کښې دی نو نصرتِ الٰهیه سبب دَ سکون دَ زړونو دے هغه دَ هغه په اختیار کښې دے۔

۵ دا دویمه او دریمه فائده ده مرتب ده په مجموعه انزال السکینه باندے دَ پاره دَ زیادت دَ ایمان یعنی په دے مجموعه باندے دخول دَ جنت او تکفیر دَ سیأتو بنا دے۔

فائده ۱:۔ په قرآن کریم کښې چه کوم ځائې وهم وی دَ اختصاص دَ جنت په نارینه مؤمنانو پورے نو هلته کښې ذکر دَ زنانه مؤمنو هم کوی دَ پاره دَ دفع دَ وهم لکه دلته مسئلۀ قتال او دَ فتح ده چه دغه عمل اکثر دَ نارینو دے نو وهم راغے چه جنت به هم په نارینو پورے خاص وی نو مؤمنات ئې ذکر کړل چه جنت په عمل دَ قتال پورے خاص نه دے دَ هغې نور اسباب هم شته چه په زنانو کښې موجود وی نو دَ جنت حقدارے کیدے شی۔ او کوم ځائے کښې چه دا وهم نه وی نو مؤمنات جدا نه ذکر کوی ځکه چه هغوی تابع دی دَ نارینو۔

وَّيُعَذِّبَ الْمُنٰفِقِيْنَ وَالْمُنٰفِقٰتِ وَالْمُشْرِكِيْنَ وَ

او عذاب به ورکړي منافقانو سړو او زنانه منافقو لره او مشرکانو سړو او

الْمُشْرِكٰتِ الظَّآنِّيْنَ بِاللّٰهِ ظَنَّ السَّوْءِ عَلَيْهِمْ

زنانو مشرکو ته چه ګمانونه کوي په الله تعالی باندے ګمان ناکاره په دوی باندے دي

دَآئِرَةُ السَّوْءِ وَغَضِبَ اللّٰهُ عَلَيْهِمْ وَلَعَنَهُمْ وَاَعَدَّ

مصیبتونه ناکاره او غضب کړیدے الله تعالی په دوی باندے او لعنت ئے کړیدے او تیار کړیدے

لَهُمْ جَهَنَّمَ وَسَآءَتْ مَصِيْرًا ۝ وَلِلّٰهِ جُنُوْدُ

دوی لره جهنم او ناکاره دے ځائے د ورګرځیدلو . او خاص الله تعالی لره دي لښکرے

فائده ۵ :- تکفیر د سیئاتو په اصل کښ د دخول د جنت نه مخکښ دے لیکن روستو ئے د دے وجے نه ذکر کړو چه اول انسان اهل د دخول جنت اوګرځي په حسناتو سره نو بیا تر پته تکفیر د سیئاتو کیدیشی.

۶ دا خلورمه فائده ده یعني سکون او نصرت د مؤمنانو سبب د غمونو او خفګانو نو د دشمنانو دے او دا عذاب د دنیا دے او مراد د عذاب نه دلته عذاب دنیوی دے او هغه ذلیل او مغلوب کیدل د منافقانو او کافرانو دی او دا رنګ تسلط د مؤمنانو په دوی باندے په قتل کولو او قید کولو د دوی سره - او هرکله چه دا قسم عذابونه په منافقانو باندے مخکښ او ډیر راځي ځکه چه دوی مؤمنانو سره نزدے او سیري د دے وجے نه د دوی ذکر ئے مقدم کړو. ظَنَّ السَّوْءِ دوی ګمان کوی چه الله تعالی لره شریکان یا اولاد دی یا الله تعالی بغیر د وسیلو (شرکیو) نه حاجتونه نه پوره کوی یا د الله تعالی صفات نیشته یا صفتونه ئے مشابه دی د مخلوق سره دے ته بد ګمان ویلے کیږی. عَلَيْهِمْ دَآئِرَةُ السَّوْءِ دا سے په سورة توبه ۹۸ کښ هم تیر شویدی او دا جمله خبریه ده اِخبار دے د الله تعالی د طرف نه یا دُعائیه ده په دُعا د شر سره نو تعلیم دے د طرف د الله تعالی نه تیکانو بندګانو ته چه دا سے دُعا لولے او مراد د دائرة السوء نه مصیبتونه د دنیا دی په ذلیل کیدلو او قید کیدلو او مغلوب کیدلو او نور قسم عذابونو باندے - وَغَضِبَ اللّٰهُ عَلَيْهِمْ وَلَعَنَهُمْ دا دواړه چه کله جدا ذکر شی نو په یو معنٰی سره دی او کله چه یو ځائے ذکر شی (پاتے په بل مخ)

السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ ؕ وَكَانَ اللّٰهُ عَزِيْزًا حَكِيْمًا ۝۷ اِنَّآ

دَ اسمانونو او دَ زمکے او دے اللہ تعالیٰ زوراور حکمتونو والا۔ یقیناً مونږ

اَرْسَلْنٰكَ شَاهِدًا وَّمُبَشِّرًا وَّنَذِيْرًا ۝۸ لِّتُؤْمِنُوْا

لیږلے ئے ته حق بیان کوؤنکے او زیرے ورکوؤنکے او ویره ورکوؤنکے دے دَپاره چه ایمان راوړئ تاسو

نو دَدوی په مینځ کښ فرق وی چه په غضب کښ صرف غصه او خفه کیدل دی چه نتیجه دَ هغے بدله اغستل او عذاب ورکول وی او په لعنت کښ دَ دغه نه علاوه سره دَ رحمت خاصه نه محروم کول مراد وی۔

سک دا علت دے دَپاره دَ عذاب دَ منافقانو او مشرکانو یعنی الله تعالیٰ دَدوی په عذاب ورکولو قدرت لری ځکه چه ټول لښکرے دَ هغه په تصرف کښ دی او دَ هغه ملکیت دے دَ هغے په ذریعه دوی له عذابونه ورکولے شی او په سک کښ دَ مؤمنانو دَ نصرت دَپاره دا علت ذکر شوے وو او دَدے وجے نه دَ دے آیت په آخر کښ عَزِيْزًا ئے ذکر کړو او دَ هغے آیت په آخر کښ عليمًا ذکر کړے وو۔ عزیز دَ دُشمن په مقابله کښ او علیم دَ مؤمنانو دَ تسلّیٔ ورکولو دَپاره استعمالیږی۔

سٹ دا اثبات دَ صداقت رسول دے او متعلق دے دَ انا فتحنالک سره نو دا علت دَ فتح ورکولو دے یعنی فتح دَ دے وجے ورکړے شوه چه ته رسول بر حق ئے یا دا فتح مبین دلیل دَ رسالت دَ نبی صلّی الله علیه وسلّم دے. شَاهِدًا شهادت په دنیا کښ مراد دے او شهادت په معنی دَ بیان کولو دَ حق دے په غیر باندے یعنی ته به بیان او تبلیغ کوؤنکے ئے او دَ بیان کولو دوه قسمونه ئے ذکر کړل بشارت او انذار او که مراد دَ شهادت نه شهادت په عملونو مراد شی نو مراد ترینه صرف هغه خلق دی چه دَ نبی صلّی الله علیه وسلّم په زمانه کښ ئے دَ هغه په وړاندے عملونه کول او ځوک چه دَ دے نه ثابته وی چه نبی صلّی الله علیه وسلّم حاضر و ناظر دے نو دا تحریف دَ قران کوی۔

فائده:- شَاهِدًا دَ نبی صلّی الله علیه وسلّم په صفت کښ چه ذکر دے نو په دنیا کښ شهادت مراد دے او شهید چه دَ هغه په صفت کښ ذکر دے نو په آخرت کښ مراد دے۔

بِاللّٰهِ وَرَسُوْلِهٖ وَتُعَزِّرُوْهُ وَتُوَقِّرُوْهُ ؕ وَتُسَبِّحُوْهُ

په الله تعالیٰ او په رسول د هغه او مدد اوکړئ د هغه (د دین) او عزت ئې اوکړئ، او پاکي وائې د هغه

بُكْرَةً وَّاَصِيْلًا ۝٩ اِنَّ الَّذِيْنَ يُبَايِعُوْنَكَ اِنَّمَا

صبائې او بېګائې . یقیناً هغه کسان چه بیعت کوي ستا سره نو یقیناً

يُبَايِعُوْنَ اللّٰهَ ؕ يَدُ اللّٰهِ فَوْقَ اَيْدِيْهِمْ ۚ فَمَنْ

بیعت کوي دوي د الله تعالیٰ سره لاس د الله تعالیٰ د دوي د لاسونو د پاسه دے نو چا چه

سو په دے کښې څلور فائدے د ارسال د رسول ذکر کوي اوله فائده ایمان بالله والرسول دے اشاره ده چه ایمان تفصیلي په اتباع د رسول حاصلیږي دویمه فائده وَتُعَزِّرُوْهُ ضمیر الله تعالیٰ ته راجع دے نو مراد د دے نه نفي کول د ولد او شریک دي د الله تعالیٰ نه او رد کول دي په مشرکانو باندے . یا راجع دے رسول ته نو مراد دا دے چه د هغه د دین او د سنت د مخالفت کولو نه په خلقو لره منع کوئې او د هغوي شبهات به دفع کوئې . دریمه فائده وَتُوَقِّرُوْهُ په دے ضمیر کښې هم دواړه احتمالونه دي او توقیر د الله تعالیٰ د هغه نوم په عزت سره ذکر کول دي د هغه بندګي خاص کول د هغه په صفاتو د کمال باندے ایمان راوړل دي او توقیر د رسول صلی الله علیه وسلم هغه په صرف نوم سره آواز نه کول د هغه د سنت احترام کول د هغه د نوم سره صلوٰة سلام ویل د هغه پوره تابعداري کول دي . څلورمه فائده وَتُسَبِّحُوْهُ دا ضمیر صرف الله تعالیٰ ته راجع دے که تیر شوي ضمیرونه صرف پیغمبر ته راجع کړے شي نو بیا به په توقروه باندے وقف کیدے شي لیکن صحیح دا ده چه ضمیرونه تیر شوي الله تعالیٰ او رسول هر یو ته راجع کیدل احتمال لري په تاویل د کل احد سره او ضمیر د تسبحوه خاص دے په الله تعالیٰ پورے . هاں بعض مفسرینو دا ضمیر هم نبي صلی الله علیه وسلم ته راجع کړے دے او د تسبیح معنیٰ ئې لغوي اخستے ده چه نبي صلی الله علیه وسلم پاک او معصوم دے د ګناهونو نه لیکن دا معنیٰ په عرف او شرع کښې د تسبیح د پاره نه ده استعمال کړے شوے .

بُكْرَةً وَّاَصِيْلًا مراد تریته ورځ او شپه دي ذکر د جزء او مراد تریته کل دے .

نَّكَثَ فَاِنَّمَا يَنْكُثُ عَلٰى نَفْسِهٖ ۚ وَمَنْ اَوْفٰى بِمَا

مات کړو (بیعت) نو یقیناً ماتوی دا بیعت ضرر د ځان خپل او چاچه پوره کړو هغه چه

عٰهَدَ عَلَيْهُ اللّٰهَ فَسَيُؤْتِيْهِ اَجْرًا عَظِيْمًا ⑩ سَيَقُوْلُ

وعده ئې په هغې باندے د الله تعالیٰ سره کړیده نو زر ده چه ورېه کړی هغه ته ثواب لوئے۔ زر او به وائی

ع ۹

سنا روستو د اثبات د رسالت او د ذکر کولو د مقصد د رسالت ته بشارت دے تابعداری کوونکو د هغه ته او تشجیع ده په جهاد باندے اِنَّ الَّذِيْنَ يُبَايِعُوْنَكَ دا واقعه د بیعت الرضوان ته اشاره ده چه په دے سورت کښ د هغې تفصیل به راشی او دا بیعت د صحابه کرامو د نبی صلی الله علیه وسلم سره وو بعض کسانو بیعت کړے وو په مرګ باندے او بعض بیعت کړے وو چه تیختنه به نه کوو او بعضو بیعت کړے وو په جهاد باندے (دا تطبیق دے په مینځ د مختلف روایتونو کښ)۔ اِنَّمَا يُبَايِعُوْنَ اللّٰهَ دا د دے وجے نه چه هر قول او فعل د رسول صلی الله علیه وسلم په حکم د الله تعالیٰ سره دے (وما ينطق عن الهوى) او دا پشان د ومن يطع الرسول فقد اطاع الله (نساء ۸۰) دے۔ او مبایعت د بیع نه اخستلے شوید ے ځکه چه دوی (بیعت کوونکو) خپل نفسونه او مالونه په الله تعالیٰ باندے خرڅ کړیدی په بدله د جنت کښ لکه سورة توبه ۱۱۱ کښ دی۔ يَدُ اللّٰهِ فَوْقَ اَيْدِيْهِمْ په دے کښ اشاره ده چه بیعت کښ د تاریخه د پاره لاس ورکول شرط دی هاں زنانه د پاره لاس ورکول منع دی ځکه چه حدیث د عائشه رضی الله عنها کښ وارد دی (والله ما مست يد النبي صلى الله عليه وسلم يد امرءة قط) قسم دے په الله تعالیٰ باندے چه لاس د نبی صلی الله علیه وسلم د لاس د (پردے) ښځے سره نه دے لګیدلے۔ بلکه بیعت د هغه د زنانو سره صرف په وینا کولو سره وو۔ يَدُ اللّٰهِ د ید معنیٰ ظاهری مراد ده چه لاس دے او دا رنګ د لفظ فوق معنیٰ اوچت والے دے لیکن بغیر د تمثیل او د تشبیه نه د مخلوق سره او کیفیت ئې مجهول دے دا عقیدہ د سلف صالحینو ده او چاچه تاویل کړے دے په نصرت یا په احسان کولو یا په حفاظت کولو یا په قوت وغیره سره دغه تاویلات ټول باطل دی ځکه چه مستلزم کیږی انکار د صفت د الله تعالیٰ لره بیا دا جمله مستلزم ده چه نصرت او امداد د الله تعالیٰ د مؤمنانو د محنت او عمل نه پس دے۔

لَكَ الْمُخَلَّفُوْنَ مِنَ الْاَعْرَابِ شَغَلَتْنَاۤ اَمْوَالُنَا

تاته پاتې کړې شوی د بانډچیانو نه چه مشغول کړي دي موږ لره مالونو زموږ

وَاَهْلُوْنَا فَاسْتَغْفِرْ لَنَا ۚ يَقُوْلُوْنَ بِاَلْسِنَتِهِمْ مَّا لَيْسَ

او بال بچ زموږ نو موږ لره بخښه اوغواړه وائي دوی په خپلو ژبو باندې هغه خبرې چه نیشته

فِيْ قُلُوْبِهِمْ ۚ قُلْ فَمَنْ يَّمْلِكُ لَكُمْ مِّنَ اللّٰهِ شَيْئًا

په زړونو د دوی کښې ته او وایه نو څوک د‌ې اختیار لري ستاسو د پاره د عذاب د الله تعالیٰ نه د بچ کولو

اِنْ اَرَادَ بِكُمْ ضَرًّا اَوْ اَرَادَ بِكُمْ نَفْعًا ۚ بَلْ كَانَ اللّٰهُ

که چرې اوغواړی الله تعالیٰ په تاسو باندې تکلیف یا اوغواړي په تاسو باندې نفع ، بلکه الله تعالیٰ دے

بِمَا تَعْمَلُوْنَ خَبِيْرًا ﴿۱۱﴾ بَلْ ظَنَنْتُمْ اَنْ لَّنْ يَّنْقَلِبَ

ستاسو په عملونو باندې خبردار - بلکه ګمان کوئ تاسو چه چرې به واپس اونه ګرځي

فائده :- بعض خلقو د ید الله نه ید د رسول الله مراد کړے دے او ویلي دي په عقیدهٔ د حلول او اتحاد سره چه لاس د الله تعالیٰ او لاس د رسول الله صلی الله علیه وسلم یو ګرځیدلے دی د هغوی دا قول ډیر کفریا تو لره مستلزم دے او په دے توجیه باندې بقاعی او خطیب شربیني لعنت ویلي دے. فَمَنْ نَّكَثَ دا تخویف دے وَمَنْ اَوْفٰی دا بشارت دے عَلَيْهُ اللّٰهَ په قراءت د حفص کښې په ضمه (پیښ) د ها سره دے د وجې د مقارنت (یوځیکیدلو) د دے نه د نوم د الله تعالیٰ سره چه جلیل او عظیم دے۔

سلا د دے ایت نه تر سلا پورې زجرونه دی منافقانو ته چه د دے سفر نه پاتې شوے وو د وجې د ویرې د قریش نه اګرچه نبی صلی الله علیه وسلم دوی ته قولاً او فعلاً بنکاره کړے وه چه موږ اراده د جنګ نه لرو - فعلاً دا ده چه د ذوالحلیفه نه یې احرام د عمرے او تړلو او هدایا یې د ځان سره رواتے کړلے - بیا په دے ایاتو نو کښې لس قباحتونه د منافقانو ذکر کوی. په دے ایت کښې یې درې قباحتونه د هغوی ذکر کړے دی. سَيَقُوْلُ دا دلیل دے چه دا وحی په حال د سفر کښې نازل شوېوه او دا پیش ګوئي یقینًا رشتیا شوه نو دا اخبار بالغیب دے (پاتې په بل مخ)

الرَّسُوْلُ وَالْمُؤْمِنُوْنَ اِلٰٓى اَهْلِيْهِمْ اَبَدًا وَّزُيِّنَ

رسول او مؤمنان (صحابه) خپل بال بچ ته هیڅرے او ډولی شوے وؤ

ذٰلِكَ فِيْ قُلُوْبِكُمْ وَظَنَنْتُمْ ظَنَّ السَّوْءِ ۚ وَكُنْتُمْ

داګمان په زړونو ستاسو کښې او ګمان وکړو تاسو ګمانونه بد او تاسو وے

قَوْمًا بُوْرًا ﴿۱۲﴾ وَمَنْ لَّمْ يُؤْمِنْ بِاللّٰهِ وَرَسُوْلِهٖ

قوم تباه کیدونکی. او څوک چه ایمان نه راوړی په الله تعالیٰ او په رسول د هغه بانده

دلیل دے په صداقت دَ نبی صلی الله علیه وسلم بانده. اَلْمُخَلَّفُوْنَ په صیغه دَ اسم مفعول سره یئے ذکر کړو اشاره ده چه الله تعالیٰ دوی لره دَ نبی صلّی الله علیه وسلّم دَ ملګرتیا نه روستو پاتے کړل په سبب دَ نفاق دَ زړونو دَ دوی. شَغَلَتْنَآ اَمْوَالُنَا وَاَهْلُوْنَا دا دروغ عذر دے دَ پاره دَ پاتے کیدلو دَ دے عمرے نه یعنی دوی ویل چه دَ مالونو او دَ اهل وعیال حفاظت کول ضروری دی او زمونږ هیڅوک نائبان نیشته چه انتظام اوکړی په دے وجه مونږ مشغول شو. فَاسْتَغْفِرْ لَنَا نو طلب دَ مغفرت هم دَ دوی په طریقه دَ استهزاء سره دے په دلیل دَ روستو جملے سره. مَا لَيْسَ فِيْ قُلُوْبِهِمْ یعنی دَ دوی په زړونو کښ اراده دَ استغفار نیشته ځکه چه دوی ځان ته ګنهګار نه وائی.

قُلْ فَمَنْ يَّمْلِكُ لَكُمْ حاصل دا دے چه ستاسو پاتے کیدل دَ رسول الله صلّی الله علیه وسلّم نه دَ پاره دَ حفاظت دَ مال او اهل تاسو نه هیڅ ضرر نه شی دفع کولے او تاسو ته څه فائده درکولے نشی. ضَرًّا هر قسم ضرر که لوئے وی یا وړوکے په اهل کښ وی یا په مال کښ دارنګ نَفْعًا هم عام دے بَلْ اضراب دے دَ پټولو دَ دوی نه نفاق او حسد لره.

۱۳ دا هم زجر دے په ذکر دَ څلورو قباحتونو دَ هغوی سره دا بَلْ دَ پاره دَ ترقی دے یعنی دَ نفاق او حسد سره دوی په فاسد ګمانونو پسے روان دی. اَنْ لَّنْ يَّنْقَلِبَ الخ مراد دَ دے نه دا دے چه دوی دَ رسول او دَ مؤمنانو شان سپک ګنړی او دَ مشرکانو شان لوئے ګنړی دَ دے وجے نه دا ګمان یئے کوؤ. وَزُيِّنَ ذٰلِكَ الخ اشاره ده چه دا ګمان کول بے اختیاره نه دی بلکه دوی په دے بانده خوشحاله دی چه رسول او مؤمنان ختم شی. ظَنَّ السَّوْءِ مراد دا دے چه الله تعالیٰ دَ دے رسول او مؤمنانو سره هیڅ امداد نه کوی ځکه چه دوی په دین باطل بانده دی.

فَإِنَّآ أَعْتَدْنَا لِلْكَٰفِرِينَ سَعِيرًا ﴿١٣﴾ وَلِلَّهِ مُلْكُ ٱلسَّمَٰوَٰتِ

نو یقیناً تیار کړے دے مونږ کافرانو لره اور تیز بلیدونکے. او خاص الله تعالیٰ لره بادشاهي د اسمانونو

وَٱلْأَرْضِ ۚ يَغْفِرُ لِمَن يَشَآءُ وَيُعَذِّبُ مَن يَشَآءُ ۚ

او د زمکے ده. بخنه کوی چا ته چه او غواړی او عذاب ورکوی چا ته چه او غواړی

وَكَانَ ٱللَّهُ غَفُورًا رَّحِيمًا ﴿١٤﴾ سَيَقُولُ ٱلْمُخَلَّفُونَ

او الله تعالیٰ دے بخنه کوونکے رحم کوونکے. زر دے وائي به پاتے کړے شوی خلق

إِذَا ٱنطَلَقْتُمْ إِلَىٰ مَغَانِمَ لِتَأْخُذُوهَا ذَرُونَا نَتَّبِعْكُمْ ۖ

هر کله چه روان شئ تاسو غنیمتونو ته دے د پاره چه واخلئ هغه پریږدئ مونږ چه لاړ شو تاسو سره

يُرِيدُونَ أَن يُبَدِّلُوا۟ كَلَٰمَ ٱللَّهِ ۚ قُل لَّن تَتَّبِعُونَا

غواړی دوی چه بدل کړی دوی کلام د الله تعالیٰ ته او وایه هیڅ چرے مه ځئ زمونږ سره

كَذَٰلِكُمْ قَالَ ٱللَّهُ مِن قَبْلُ ۖ فَسَيَقُولُونَ بَلْ

دغه شان ویلے دی الله تعالیٰ د دے نه مخکښ نو زر دے دوی به اوائي بلکه

بُوْرًا جمع د بائر ده هغه خیز ته وائي چه خراب شی او هیڅ فائده او خیر پکښ نه وی. او کُنْتُمْ بخپله معنیٰ دے یعنی دوی د دے وخت نه پواندے هم بے کاره او شریان خلق وُ. یا کُنْتُمْ په معنیٰ د صرتم دے یعنی اوس اوګرځیدلے بے کاره او بے خیره.

سـ۱۳ـ دا تخویف اخروی دے او اشاره ده چه د منافقانو ایمان شرعی نیشته نو دوی کافران دی.

سـ۱۴ـ دا ذکر د توحید دے په ذکر د صفتونو د الله تعالیٰ سره او مقصد پکښ ترغیب دے چه د نفاق نه توبه اوکړئ نو الله تعالیٰ به درته بخشش اوکړی او علت هم دے د پاره د ماقبل یعنی الله تعالیٰ بادشاه دے چه چا له عذاب ورکوی نو هیڅوک ئے مقابله نه شی کولے.

تَحْسُدُوْنَنَا ۭ بَلْ كَانُوْا لَا يَفْقَهُوْنَ اِلَّا قَلِيْلًا ⑮

حسد کوئے تاسو زمونږ سره بلکه دوی نه پوهیږی مگر لږ ۔

۱۵ په دے ایت کښ هم زجر دے په ذکر دَ خلورو قباحتونو دَ منافقانو سره۔ اِلٰی مَغَانِمَ لِتَاْخُذُوْهَا مراد دَ دے نه غنیمتونه دَ خیبر دی او په دے تعبیر کښ اشاره ده چه دَ خیبر په غزوه کښ لګ تکلیف وو فتح دَ هغے اسانه او یقینی وه یعنی هر کله چه صحابه کرام دَ صلح دَ حدیبیه نه واپس شول تکلیفونه ورته ډیر اورسیدل او مقصد دَ سفر ئے هم حاصل نه شو نو دَ هغوی زړونو کښ خفګان وو دَ هغے دَ زائل کولو دَ پاره الله تعالیٰ نبی صلی الله علیه وسلّم ته حکم اوکړو چه غزوه دَ خیبر ته هغه صحابه کرام بوځه کوم چه په سفر دَ حدیبیه کښ شریک وو او نورچا ته اذن مه ورکوه۔
ذَرُوْنَا نَتَّبِعْكُمْ نو هر کله چه فتح دَ خیبر اسانه وه او غنیمتونه حاصلیدل هم یقینی وو دَ دے وجے نه منافقینو دا مطالبه اوکړه چه مونږ هم تاسو سره غزوه دَ خیبر ته ځو۔ او دا ښکاره دلیل وو په دے خبره یا ند ے چه دوی ویلے وو شغلتنا اموالنا واهلونا چه دا عذر دَ دوی بلکل دروغ وو که دوی واقعی مشغول وے نو بیا خیبر ته دَ سفر کولو وله مطالبه کوی نو معلومه شوه چه دوی دنیا پرست دی په حدیبیه کښ دَ غنیمت څه طمع نه وه او په خیبر کښ دَ غنیمت یقینی طمع وه نو دَ غنیمت په نیت دوی خیبر ته تلل غواړی۔ كَلٰمَ اللّٰهِ مراد دَ دے روستو دواړه جملو کښ ذکر دے (قل لن تتبعونا كذٰلكم قال الله من قبل) بعض مفسرینو ویلے دی مراد دَ دے نه وعده دَ الله تعالیٰ ده دَ اهل حدیبیه سره چه تاسو له به غنیمتونه دَ خیبر درکوؤم او بعضو مفسرینو ویلے دی چه مراد دَ دے نه امر دَ الله تعالیٰ دے نبی صلی الله علیه وسلّم ته چه خیبر ته د ے نه ځی مگر صرف حدیبیے والا۔ په دے روستنو دواړو اقوالو کښ دا خبره ده چه کلام الله اُویلے شو یعنی احادیث هم دَ الله تعالیٰ کلام دے۔ بعض مفسرینو ویلے دی چه مراد دَ دے نه ایت دَ سورة توبه ۸۳ دے لیکن ابن جریر دَ دے قول رد کړے دے چه غزوه تبوك خو دَ خیبر نه روستو وه او هغه ایت خو دَ غزوه تبوک په سفر کښ نازل شوے دے۔
فَسَيَقُوْلُوْنَ بَلْ تَحْسُدُوْنَنَا حاصل دا چه دوی دغه کلام دَ الله تعالیٰ خو دَ سره منی نه بلکه وائی چه تاسو دَ خیبر سفر یا غنیمتونو کښ چه مونږ له شرکت نه راکوئے نو ستاسو زمونږ سره حسد دے یعنی منافقان نسبت دَ حسد رسول الله صلی الله

قُلْ لِّلْمُخَلَّفِيْنَ مِنَ الْاَعْرَابِ سَتُدْعَوْنَ اِلٰى

ته اوایه یاتې کړے شوے باندو چیانو ته زر دے را او بللے شئ به جنګ دَ

قَوْمٍ اُولِيْ بَاْسٍ شَدِيْدٍ تُقَاتِلُوْنَهُمْ اَوْ يُسْلِمُوْنَ ۚ

داسے قوم ته چه سخت جنګ والا دی قتل به کوئ دَ دوی سره تردے پورے چه اسلام راوړي

فَاِنْ تُطِيْعُوْا يُؤْتِكُمُ اللّٰهُ اَجْرًا حَسَنًا ۚ وَاِنْ تَتَوَلَّوْا

نو که تاسو خبره اومنله در به کړی تاسو ته الله تعالیٰ خائسته ثواب او که چرے تاسو مخ اوګرځوؤ

كَمَا تَوَلَّيْتُمْ مِّنْ قَبْلُ يُعَذِّبْكُمْ عَذَابًا اَلِيْمًا ⑯

لکه چه تاسو مخ ګرځولے دے دَ دے نه مخکښ عذاب به درکړی تاسو ته عذاب درد ناک۔

علیه وسلّم اوصحابه کراموته کوی۔ اوحسد ویلے کیږی تمنّا کول دَ زوال دَ نعمتِ الٰهیه دَبل چاته اودَ هغے زوال دَپاره کوشش کول اوحسد په هره طریقه سره چه وی نو ګناهِ کبیره دے اوحدیث صحیح کښ چه وارِد دی چه (لاحسد الا فی اثنتین) نو مراد دَ حسد نه غبطه ده یعنی سیالی کول دَبل چا دَ نعمت پشان دَځان دَپاره غوښتل دَپاره دَ دے چه هغه سره برابر شی۔ بَلْ كَانُوْا لَا يَفْقَهُوْنَ اِلَّا قَلِيْلًا ۔ بَلْ دَپاره دَ ترقیٔ دے یعنی کلام الله بدلول اونسبت دَ حسد نبی اومؤمنانوته کول خوښه کوے بلکه دوی جاهلان دی دَدین اودَ الله تعالیٰ او دَ رسول الله صلی الله علیه وسلم په خبرو باندے نه پوهیږی اِلَّا قَلِيْلًا مراد دَ دے نه دَ دنیا خبرے دی لکه چه سورة روم کښ دی۔

سلا په دے کښ اشاره ده اظهار دَ منافقت دَ دوی ته چه دوی ویلے وُ ذَرُوْنَا نَتَّبِعْكُمْ نو دَ دے نه روستو دوی کله قتال فے سبیل الله کښ شریک شول نو دا قول به دَ دوی رشتیٔ وی اوکه نه دروغژن به وی۔ مِنَ الْاَعْرَابِ معلومیږی چه دَ حدیبیه نه صرف اعراب پاتے شوے وو دَ دے وجے نه دالفظ ئے مخکښ هم ذکر کړے وُ او په دے ایت کښ هم۔ سَتُدْعَوْنَ اِلٰى قَوْمٍ اُولِيْ بَاْسٍ شَدِيْدٍ مراد دَ دے نه قتال دَ بنو حنیفه اهلِ یمامه دے چه هغوی ته ابوبکر رضی الله عنه دعوت ورکړے وُ اوفارس او روم دے چه هغوی ته عمر رضی الله عنه دعوت ورکړے وُ۔ او بنا په دے تفسیر باندے اشاره شوه چه دَ رسول الله صلی الله (باقی په بل مخ)

لَيْسَ عَلَى الْأَعْمٰى حَرَجٌ وَّلَا عَلَى الْأَعْرَجِ حَرَجٌ وَّ

نیشته په ړوند باندے ګناه او نه په ګوډ باندے ګناه او

لَا عَلَى الْمَرِيْضِ حَرَجٌ ۗ وَمَنْ يُّطِعِ اللّٰهَ وَرَسُوْلَهٗ

نه په ناجوړه باندے ګناه او چاچه تابعداری اوکړه د الله تعالیٰ او د رسول د هغه

يُدْخِلْهُ جَنّٰتٍ تَجْرِيْ مِنْ تَحْتِهَا الْأَنْهٰرُ ۚ وَمَنْ

داخل به کړی دهٔ لره جنتونو ته چه بهیږی په لاندے د هغے نه ویالے او چا چه

يَّتَوَلَّ يُعَذِّبْهُ عَذَابًا أَلِيْمًا ﴿۱۷﴾ لَقَدْ رَضِيَ اللّٰهُ عَنِ

مخ اوګرځوو عذاب به ورکړی دهٔ لره عذاب دردناک . یقینا رضا شوے دے الله تعالیٰ د

علیه وسلّم نه روستو خلافت د ابوبکر او عمر رضی الله عنهما حق دے ځکه چه د هغوی د زمانے په قتال کښ شرکت کول ئې سبب د اجر حسن او شرکت نه اعراض ئې سبب د عذاب ګرځولے دے . اول قول دا دے چه مراد د دے نه قتال د هوازن او ثقیف دے یعنی غزوه د حنین[۱] او طاس او طائف لیکن په دے قول باندے اعتراض دے چه لن تتبعونا او دارنګ سورة توبه کښ لَنْ تُقَاتِلُوْا مَعِيَ عُدُوًّا تیر شویدی د هغے نه معلومیږی چه دوی ته نبی صلی الله علیه وسلم بیا دعوت نه دے ورکړے د قتال کولو؟ جواب دا دے چه آیت د سورة توبه خو د غزوه حنین نه روستو نازل شویدے او په لَنْ تَتَّبِعُوْنَا کښ منع مختص ده په غزوه خیبر پورے . حرف د سین په ستدعون کښ دلالت کوی چه دا دعوت په زمانه د نبی صلی الله علیه وسلّم کښ دے نور روستنی توجیه غوره ده او دغه قول د قتاده او د عکرمه دے . تُقَاتِلُوْنَهُمْ أَوْ يُسْلِمُوْنَ یعنی په دے دواړو کښ  یه یوکار وی قتال یا اسلام لیکن په قرینه د سورة توبه سـ۲۹ـ سره دا حکم د اهلِ کتابو باره کښ نه دے بلکه د هغوی نه جزیه اغستل هم جائز دی . دا رنګ بعض نور کافران چه په دلیل د حدیث صحیح سره د هغوی نه هم جزیه اغستل جایز دی . كَمَا تَوَلَّيْتُمْ مِّنْ قَبْلُ اشاره ده تولّی د ورځ د اُحد او حدیبیه او نورو واقعاتو ته .

---

سـ۱ـ دا حکم معذورینو دے چه مستثنٰی دی د فرضیت د قتال نه . وَمَنْ يُّطِعِ اللّٰهَ وَرَسُوْلَهٗ په دے کښ اشاره ده چه علاوه د قتال نه نور اطاعت په دوی باندے د دوی

الْمُؤْمِنِينَ إِذْ يُبَايِعُونَكَ تَحْتَ الشَّجَرَةِ فَعَلِمَ مَا

مؤمنانو (صحابو) نه کوم وخت چه بیعت کوؤ دوی تا سره لاندے د اونې نه نو خبروؤ الله تعالیٰ د

فِي قُلُوبِهِمْ فَأَنْزَلَ السَّكِينَةَ عَلَيْهِمْ وَأَثَابَهُمْ

هغه څیزنه چه په زړونو د دوی کښ وؤ نو راولیږله الله تعالیٰ تسلی په دوی باندے او بدله ئے ورکړه دوی له

فَتْحًا قَرِيبًا ﴿۱۸﴾ وَمَغَانِمَ كَثِيرَةً يَأْخُذُونَهَا وَكَانَ اللَّهُ

فتح نزدے او غنیمتونه ډیر چه اخلی دوی هغه او الله تعالیٰ دے

د استطاعت موافق فرض دے لکه دعوت تبلیغ وغیره.

فائده ۱:- اعمیٰ ئے ځکښ ذکر کړو ځکه چه قتال کښ اول د نظر کولو ډیر ضرورت وی او روند والے داسے عذر دے چه نه ځائله کیږی بیا ورپسے اعرج ذکر کړو ځکه چه روستو د صلاحیت د نظر نه د خپو د سلامتیا ضرورت دے او دا عذر هم زر نه ځائله کیږی او مریض کله چه عرج (ړدیو خپے ګډ والے) عذر دے نو په دواړو خپو شل کیدل خو ضرور عذر دے.

فائده ۲:- د حدیبیه نه کوم مسلمانان چه پاتے شویوؤ نو د هغوی دغه دریے عذرونه وو د دے وجے دا ئے خاص کړه په ذکر سره که نه د دے نه علاوه نور عذرونه هم شته چه په سورة توبه س۱۹ س۹۲ کښ ذکر شوی دی یا په احادیث صحیحه کښ ذکر دی.

س۱۸ د دے ایت نه تر اخر د سورت پورے دویم باب دے په دے کښ اته حالات د صحابه کرامو ذکر کوی کوم چه حدیبیه کښ حاضر وو او دوی لره دنیوی او اخروی بشارتونه ذکر کوی او د دوی په مقابله کښ زجرونه دی منافقانو او مشرکانو ته بیا جواب د یو شبهے د منافقانو دے په اخر کښ عظمت شان د نبی صلی الله علیه وسلم دے او د عام صحابه کرامو لس صفات ذکر کوی.

تفسیر:- په دے ایت س۱۸ کښ د صحابه کرامو دوه حالتونه او درے بشارتونه ذکر کوی. لَقَدْ رَضِيَ په دے کښ اول بشارت دے په ډیر تاکید سره او سورة توبه س۱۰۰ کښ داسے بشارت ټولو صحابو ته ذکر شوے دے او د دے لفظ د وجے نه بیعت د حدیبیے ته بیعت الرضوان وئیلے کیږی. إِذْ يُبَايِعُونَكَ او د دے سبب په اختصار سره دا دے چه نبی صلی الله علیه وسلم حدیبیه مقام ته په اراده (پاتے په بل مخ)

دَ عمرے تقریباً دَ پنځلس سوه صحابه کرامو نه اورسیدلو نو اول قاصد یې مکے والو ته جواس بن امیه خزاعی رضی الله عنه اولیږلو لیکن دَ هغه څخه ته دیر مشرکان حائل شول او مکے ته یې دَ تللو اجازت ورنه کړو بیا یې عثمان رضی الله عنه اولیږلو هغوی عثمان رضی الله عنه ته اجازت ورکړو چه ته عمره اوکړه لیکن نبی صلی الله علیه وسلم او نورو صحابو ته اجازت نیشته نو عثمان رضی الله عنه اوفرمائیل چه زه طواف نه کوؤم ترڅو پورے چه نبی صلی الله علیه وسلم نه وی کړے په دے خبرو اترو سره عثمان رضی الله عنه مکه کښ دیر ایسار کړے شو۔ او خبر خور کړے شو چه هغه قتل کړے شوے دے نو دغه وخت نبی صلی الله علیه وسلم صحابه کرامو ته دعوت ورکړو چه را شئ ما سره بیعت اوکړئ چه قتال به کوو او تیښته به نه کوو او نبی صلی الله علیه وسلم دغه وخت دَ کیکر دَ اونے په سوری کښ ناست وؤ نو ټولو صحابو بیعت اوکړو او نبی صلی الله علیه وسلم خپل ځے لاس په خپل گس لاس کښ کیخودلو چه دا بیعت دَ پاره دَ عثمان رضی الله عنه دے او دا واقعه دَ عثمان رضی الله عنه دَ رفعت شان دَ پاره لوئے دلیل دے او پوحدیث کښ وارد دی چه نبی صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل چه اور دَ جهنم ته به نه داخلیږی هیڅوک دَ هغه چا نه چه دَ دے اونے دَ لاندے یې دَ نبی صلی الله علیه وسلم سره بیعت کړے دے۔ او سعید بن المسیب دَ خپل پلار نه روایت کوی چه زه هم په دغه بیعت کوؤنکو کښ شامل وؤم نو هر کله چه راتلونکے کال مونږ په دغه لاره راغلو نو هغه اونه زمونږ نه بلکل هیره کړے شوه او عام تار یخونو کښ لیکلی دی چه دَ عمر رضی الله عنه په دور خلافت کښے بعض خلق به راتلل او دَ یوے اونے دَ لاندے به یې مونځونه کول په دے عقیدے سره چه دا متبرک مقام دے (دا او نه دوی په خپل خیال سره مقرر کړے وه) نو عمر رضی الله عنه حکم اوکړو دَ هغے اونے په پریکولو سره او هغه لاره یې بنده کړله۔ او کتاب الاعتصام شاطبی ویلی دی چه دا کار عمر رضی الله عنه دَ دے دَ پاره اوکړو چه په داسے تبرکاتو سره دَ شرک دروازه پرانستے نه شی لیکن افسوس په دے امت روستنی دا دے چه دوی دَ دیرو پیدا لو دَ ځیز ونو ته او مکانونو دَ ناستے نه په داسے طریقے سره حصول دَ تبرکاتو شورو کړے دے چه هر قسم شرک په هغے کښ کوی هغے ته سجدے کوی دَ هغے نه قائدے اغستل او مرضونه دفع کولو عقیده لری دَ هغے دَ پاره نذر و نیاز هم پیش کوی دَ هغے په خوا کښ عرسونه هم کوی۔ فَانِّيْ بُؤْ فَكُوْنَ۔ فَعَلِمَ مَا فِي قُلُوْبِهِمْ مراد دَ ما فی قلوبهم نه صدق او اخلاص دے

عَزِيْزًا حَكِيْمًا ﴿١٩﴾ وَعَدَكُمُ اللّٰهُ مَغَانِمَ كَثِيْرَةً

زور اور حکمتونو والا . وعده کړے دے الله تعالیٰ تاسو سره د ډیرو غنیمتونو

تَأْخُذُوْنَهَا فَعَجَّلَ لَكُمْ هٰذِهٖ وَكَفَّ اَيْدِيَ النَّاسِ

چه اخلے به تاسو هغه نو زر ئے درکړو تاسو ته دا او بند ئے کړو لاسونه د خلقو

عَنْكُمْ ۚ وَلِتَكُوْنَ اٰيَةً لِّلْمُؤْمِنِيْنَ وَيَهْدِيَكُمْ

ستاسو نه او د دے د پاره چه شی نخښه د پاره د مؤمنانو او کلک کړی تاسو له

صِرَاطًا مُّسْتَقِيْمًا ﴿٢٠﴾ وَّاُخْرٰى لَمْ تَقْدِرُوْا عَلَيْهَا

په لار نیغه باندے او نور غنیمتونه چه ستاسو وس نه ئے بر شوے په هغے باندے

یعنی د بیعت کولو نه مخکښ د دوی اخلاص الله تعالیٰ ته معلوم وو او فاء د علت د پاره ده یعنی الله تعالیٰ په وخت د بیعت کښ د دوی نه په دے وجه رضا شو چه الله تعالیٰ ته د مخکښ نه د دوی اخلاص معلوم وو. فَاَنْزَلَ السَّكِيْنَةَ عَلَيْهِمْ دا عطف دے په رَضِيَ باندے یعنی رضا د الله تعالیٰ سبب اوګرځیدلو د دوی د اطمینان او د شجاعت د قتال د پاره سره د لګ عدد نه . وَاَثَابَهُمْ فَتْحًا قَرِيْبًا مراد د دے نه فتح د خیبر ده چه په واقعه د حدیبیه پسے متصل اوشوه او دا الله تعالیٰ عوض اوګرځوو د پاره د اخلاص د بیعت کولو .

سـ۱۹ـ دا عطف دے په فتحًا باندے او مراد تړینه غنیمتونه د خیبر دی چه هغه زمکے باغات نقود او نور مالونه وو.

سـ۲۰ـ دا هم بشارت دنیویه دے او مراد د دے مغانم نه روستو د خیبر نه تر وفات د نبی صلی الله علیه وسلم پورے ټول غنیمتونه دی. هٰذِهٖ . غنیمتونو د خیبر ته اشاره ده . وَكَفَّ اَيْدِيَ النَّاسِ عَنْكُمْ دا بل معجزانه انعام دے چه هرکله نبی صلی الله علیه وسلم اراده د سفر د عمرے اوکړه نو یهودیانو قصد اوکړو چه مدینه باندے حمله کووُ دا رنګ هرکله چه اراده د غزوه د خیبر ئے اوکړه نو قبائیلو د اسد او غطفان قصد اوکړو چه په مدینه باندے حمله اوکړی لیکن د دے ټولو په زړونو کښ الله تعالیٰ رعب واچوو او د خپلو ارادو نه واپس شول . وَلِتَكُوْنَ اٰيَةً لِّلْمُؤْمِنِيْنَ دا عطف دے په مقدار (پټ) باندے یعنی تشکروه ولتکون او ضمیر په تکون (پاتے په بل مخ)

قَدْ اَحَاطَ اللّٰهُ بِهَا ۗ وَكَانَ اللّٰهُ عَلٰى كُلِّ شَیْءٍ

یقیناً راګیر کړیدی الله تعالیٰ هغې لره په علم خپل کښې او دے الله تعالیٰ په هر څیز باندے

قَدِیْرًا ﴿۲۱﴾ وَلَوْ قٰتَلَكُمُ الَّذِیْنَ كَفَرُوْا لَوَلَّوُا الْاَدْبَارَ

قدرت لرونکے. او که چرے جنګ اوکړی تاسو سره کافران نو او به ګرځوی شاګانے

ثُمَّ لَا یَجِدُوْنَ وَلِیًّا وَّلَا نَصِیْرًا ﴿۲۲﴾ سُنَّةَ اللّٰهِ

بیا به نه موّمی دوی هیڅ دوست او نه مددګار. پشان دَ طریقې دَ الله تعالیٰ

الَّتِیْ قَدْ خَلَتْ مِنْ قَبْلُ ۚۖ وَلَنْ تَجِدَ لِسُنَّةِ اللّٰهِ

هغه چه تیره شویده مخکښې او هیڅ چرے او به نه مومے ته طریقې دَ الله تعالیٰ لره

تَبْدِیْلًا ﴿۲۳﴾ وَهُوَ الَّذِیْ كَفَّ اَیْدِیَهُمْ عَنْكُمْ وَاَیْدِیَكُمْ

بدلیدل. او خاص الله تعالیٰ هغه ذات دے چه بند ئے کړل لاسونه دَ دوی ستاسو نه او لاسو نه ستاسو

کښې راجح دے عجلت دَ غنیمتونو دَ خیبر او دَ دشمنانو لاسونه دفع کولو ته په تاویل دَ مذکور سره. اودَ مؤمنانو دَ پاره ایت (دلیل) شو چه الله تعالیٰ دَ دوی حفاظت کوی که دوی په کورونو کښې حاضر وی او که غائب وی یا دلیل شو په صدق دَ نبی صلّی الله علیه وسلّم باندے. وَیَهْدِیَكُمْ اه یعنی دغه معجزاته کارونه سبب دے دَ تثبت او دَ زیادت دَ ایمان دَ پاره.

سلا۲۱ داهم داخل دے بشارت دنیویه کښې. وَاُخْرٰی فعل پټ دے یعنی وعدکم مغانم اخریٰ. او ابن عباس رضی الله عنهما نه روایت دے چه مراد دَ دے نه هغه فتوح دی چه روستو مسلمانانو ته ورکړے شوے وو لکه فارس او روم ګر چه په اول وخت کښې په هغې باندے قدرت نه وُ. قَدْ اَحَاطَ اللّٰهُ بِهَا یعنی په علم دَ الله تعالیٰ کښې راګیر وو یا داچه الله تعالیٰ ستاسو دَ پاره محبوس او محفوظ ساتلے وو.

سلا۲۲ سلا۲۳ داهم په بشارت کښې داخل دے یعنی کافران تاسو سره قتال نه شی کولے دَ دے وجې نه چه الله تعالیٰ ستاسو سره مدد کوی. اَلَّذِیْنَ كَفَرُوْا مراد دَ دے نه مکے والا دی په واقعه دَ حدیبیه کښې یا مراد ترینه ټول کافران دی. سُنَّةَ اللّٰهِ فعل ئې پټ دے یعنی سَنَّ اللّٰهُ سنةً یا کاف تشبیهی پټ دے یعنی کسنّة

عَنْهُمْ بِبَطْنِ مَكَّةَ مِنْ بَعْدِ اَنْ اَظْفَرَكُمْ عَلَيْهِمْ ؕ

دَ هغوی نه په مینځ دَ مکه کښې روستو دَ دے نه چه وس ئے برکړو ستاسو په هغوی باندے

وَكَانَ اللّٰهُ بِمَا تَعْمَلُوْنَ بَصِيْرًا ﴿۲۴﴾ هُمُ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا

او الله تعالیٰ دے ستاسو عملونو لره لیدونکے ۔ دا هغه خلق دی چه کفر ئے کړیدے

وَصَدُّوْكُمْ عَنِ الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ وَالْهَدْیَ مَعْكُوْفًا

او منع کړے ئے تاسو دَ مسجد حرام نه او هدیو لره چه بندے کړے شوی وی

اَنْ يَّبْلُغَ مَحِلَّهٗ ؕ وَلَوْلَا رِجَالٌ مُّؤْمِنُوْنَ وَنِسَآءٌ

دَ رسیدلو نه ځائے دَ حلالے ته او که چرے نه وے سړی مؤمنان او زنانه

الله تعالیٰ او مراد نزے نه امداد دَ الله تعالیٰ دے دَ تیر شوے انبیاء علیهم السّلام سره په مقابله دَ کافرانو کښې چه الله تعالیٰ هغوی سره امداد کړے وو او کافران ئے مغلوب کړی او تباه کړے وو۔

۲۴ دا هم ذکر دَ انعام دَ الله تعالیٰ دے په مؤمنانو باندے او دا رنګ تائید دے دَ مخکښې ایت یعنی دَ قتال په وخت کښې به دوی شا ګرځوی دَ وجے دَ امداد دَ الله تعالیٰ ته تاسو سره لکه چه په دے واقعه خاصه کښې الله تعالیٰ ستاسو مدد کړے دے۔

وَهُوَ الَّذِیْ كَفَّ اَيْدِيَهُمْ عَنْكُمْ دَ ترمذی په روایت کښې راغلی دی چه اتیا کسان دَ کافرانو نه دَ جبل تنعیم دَ طرف نه دَ صبا دَ مانځه په وخت کښې راکوز شول او قصد ئے کړے وو چه نبی صلی الله علیه وسلم لره قتل کړی نو صحابه کرامو دوی لره اونیول لیکن رسول الله صلّی الله علیه وسلم بیا دوی آزاد کړل۔ دَ دے واقعے بنا مراد دَ بطن مکه نه حدیبیه ده دَ دے وجے نه چه دَ حدیبیے څه حصّه په مکه کښې یعنی (حرم) کښې داخل ده او بعض مفسرینو ویلی دی مراد دَ دے نه صلح دَ حدیبیه ده چه الله تعالیٰ تاسو په مکه کښې دَ جنګ کولو نه بچ کړئ اګر چه تاسوله ئے غلبه او قدرت درکړے وُو نو بنا په دے تفسیر باندے دَ بطن مکه نه نفس مکه مراد ده۔

مُؤْمِنٰتٌ لَّمْ تَعْلَمُوْهُمْ اَنْ تَطَـُٔوْهُمْ فَتُصِيْبَكُمْ مِّنْهُمْ

مؤمنې چه تاسو هغوی نه پیژنې چه دَ خپو دَلاندې به یې کړې نو او به رسیږی تاسو ته دَ دوی دَ وجې نه

مَّعَرَّةٌۢ بِغَيْرِ عِلْمٍ ۚ لِيُدْخِلَ اللّٰهُ فِىْ رَحْمَتِهٖ مَنْ

نقصان په بغیر دَ پوهې نه دَ دې دَ پاره چه داخل کړی الله تعالیٰ په رحمت خپل کښې هغه چا لره

يَّشَآءُ ۚ لَوْ تَزَيَّلُوْا لَعَذَّبْنَا الَّذِيْنَ كَفَرُوْا مِنْهُمْ عَذَابًا

چه او غواړی، که چرې دوی لرې شول نو عذاب به ورکړو مونږ کافرانو ته دَ دوی نه عذاب

اَلِيْمًا ﴿۲۵﴾ اِذْ جَعَلَ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا فِىْ قُلُوْبِهِمُ الْحَمِيَّةَ

دردناک۔ کله چه واچوؤ کافرانو په خپلو زړونو کښې غیرت

۲۵ په دې ایت کښې حال دَ اهل مکه کافرانو بالخصوص ذکر کوی او دفع دَ دهم کوی که څوک اُوائی چه صلح حدیبیه ولې اوکړې شوه بلکه الله تعالیٰ به امداد کړې وې دَ مؤمنانو سره او په مکې والو باندې به یې حمله کړې وې او قتال به شوې وې؟ حاصل دَ جواب دا دې چه هاں سبب دَ قتال خو موجود وو هغه کفر دَ دوی او دَ مسجد حرام نه منع کول دَ مؤمنانو او منع کول دَ هدایا چه دا روستنی دواړه دَ دې مشرکانو په دین کښې هم ناروا وو. لیکن دَ قتال نه مانع موجود وو هغه وجود دَ کمزورو مؤمنانو دې په مکه کښې او وجود دَ هغه کسانو چه الله تعالیٰ دَ هغوی دَ پاره ایمان راوړل مقرر کړې وو یعنی که چرې په مکه کښې په دغه وخت قتال کړې شوې وې نو دغه مؤمنان به یکښې په غلطۍ او خطا یې سره قتل کړې شوې وو۔ وَالْهَدْیَ دا عطف دې په ضمٓ وکم باندې مَعْكُوْفًا دا حال دې او په معنیٰ دَ محبوسًا دې (ترلې شوې او بند کړې شوې) اَنْ يَّبْلُغَ مَحِلَّهٗ دا بدل اشتمال دې دَ الهدیَ نه یا مفعول له دې۔ قرطبی وئیلې دی چه محل په زیر دَ حا سره غایة او منتهیٰ ته وئیلې کیږی او مَحَل په زور دَ حا سره ځائے دَ نزول او دَ دیره کیدلو ته وئیلې کیږی. دلته مراد دَ محل نه مکان دَ نحر او دَ ذبح کولو دَ هدایه دې او هغه حرم شریف دې۔ وَلَوْلَا رِجَالٌ اه دا ذکر دَ مانع دَ قتال دې او مراد دَ دې کسانو نه هغه مؤمنان دی چه دَ هجرت کولو نه په سبب دَ عذر سره یا دَ کافرانو په جبر سره پاتې شوې وو. لَمْ تَعْلَمُوْهُمْ یعنی تاسو ته علم دَ هغوی دَ ایمان نیشته یا تاسو هغوی شخصی طور سره نه پیژنئ۔ اَنْ تَطَـُٔوْهُمْ دا بدل اشتمال دې

حَمِيَّةَ الْجَاهِلِيَّةِ فَأَنْزَلَ اللّٰهُ سَكِينَتَهُ عَلٰى رَسُولِهٖ

غیرت د جاهلیت نو را اولیږله الله تعالیٰ تسلی خپله په رسول خپل باندې

وَعَلَى الْمُؤْمِنِينَ وَأَلْزَمَهُمْ كَلِمَةَ التَّقْوٰى وَ

او په مؤمنانو (صحابو) باندې او کلکه ئې کړه په دوی باندې کلمه د توحید او

كَانُوٓا أَحَقَّ بِهَا وَأَهْلَهَا ۚ وَكَانَ اللّٰهُ بِكُلِّ شَيْءٍ

وو دوی ډیر حقدار د هغې او لائق د هغې او الله تعالیٰ دے په هر څیز باندې

دَرِجَالٌ او نِسَآءٌ نه او مراد دَ دے نه پامال کول دَ هغوی دی په وخت دَ قتال کښې په قتل کولو زخمی کولو او وهلو سره . فَتُصِيبَكُمْ، فَا سببیه ده یعنی پامال کول ستاسو هغوی لره سبب دَ مصیبت ستاسو دے مَعَرَّةٌ لسان العرب کښې ویلے دی چه معرّة ځائے دَ خارج ته وائي او دارنګ ګناه او سختئ اذي (مصیبت) او جنایت او تاوان ته هم ویلے کیږی . نو دلته معنیٰ دا شوه که چرے تاسو مؤمنانو لره په بے علمئ سره وژلے وے نو لازم شوے به وے په تاسو پورے بد نامے لګول دَ کافرانو او دیتونه دَ قتیلانو ځکه چه یو مؤمن په دارحرب کښې وی او هجرت ئې نه وی کړے او دَ هغه دَ ایمان علم قاتل ته نه وی او قتل کړے شی نو په دے سره کفاره لازمیږی لکه چه سورة نساء سټ کښې تیر شویدی . بِغَيْرِ عِلْمٍ اشاره ده عذر دَ مؤمنانو مجاهدینو ته ځکه چه کامل مؤمن یل مؤمن لره قصدًا نه قتل کوی . او دَ لَوْلَا جواب پټ دے لَاَذِنَ اللّٰهُ لَكُمْ فِي دُخُولِ مَكَّةَ أَوْ لَسَلَّطَكُمْ عَلَيْهِمْ . لِيُدْخِلَ اللّٰهُ فِي رَحْمَتِهٖ مَنْ يَّشَآءُ دا علت دے دَ محذوف دَ پاره یعنی تاسو ئې مسلط نه کړئ په اهل مکه باندے دَ پاره دَ دے چه بعض کسانو لره توفیق دَ ایمان ورکړی او دغسے اوشوه ځکه چه روستو دَ صلح حدیبیه نه ډیر کسان مسلمانان شول . لَوْ تَزَيَّلُوا یعنی که چرته دا مؤمنان دَ کافرانو نه جدا شی نو بیا به په دے کافرانو باندے ضرور عذاب راځی دَ قتاده نه روایت دے چه دا ایت دلیل دے چه دَ مؤمنانو په وجه الله تعالیٰ دَ کافرانو نه عذاب دفع کوی او دَ دے قسم ډیر مسائل مفسر قرطبی دلته ذکر کړے دی هغه اوګورئ .

عَلِيْمًا ﴿۲۶﴾ لَقَدْ صَدَقَ اللّٰهُ رَسُوْلَهُ الرُّءْيَا بِالْحَقِّ

علم والا ۔ یقیناً رشتنی کړے دے الله تعالیٰ دَ رسول خپل سره خوب په حقه سره

سـ۲۶ دا هم ذکر دَ سبب دَ قتال او ذکر دَ مانع دَ قتال دے. یعنی مشرکانو دَ قتال دَ پاره سبب جوړ کړے وو چه هغه حمیّت دَ جاهلیت وو او په دے کښې ډیر قباحت دَ مشرکانو ذکر کوی هغه دا دے چه دَ مسجدِ حرام او دَ عمرے نه منع کول خو دَ دوی په دین کښې هم جائز نه وو لیکن سره دَ دے نه دوی مؤمنانو لره منع کړل دا خالص جاهلیت دے او دَ جاهلیت غیرت دا وو چه په خط دَ صلح کښې الرَّحْمٰنِ الرَّحِیْمِ او محمد رسول الله لیکل ئې نه منل او دا رنګ دَ خپل معبودانِ باطله دَ پاره ئې حمیّت او عصبیّت کوؤ ۔ صرف حمیته (غیرت کول) په حق باندے جائز دے لیکن په باطل باندے غیرت کول حرام دی دَ دے وجے دَ الحمیة نه روستو حمیة الجاهلیة ئې ذکر کړو۔ فَاَنْزَلَ اللّٰهُ سَكِیْنَتَهٗ مراد دَ دے نه توفیق دَ صبر او استقامت دے په مقابله دَ حمیة الجاهلیة کښې او دیته رسول هم محتاج دے دَ دے وجے نه علیٰ رسوله ئې ذکر کړو او دَ سورت په سـ۴ او سـ۱۸ کښې مراد تسلیم وو دَ صلح حدیبیه شرطو ته چه نبی صلی الله علیه وسلّم مقرر کړے وو لیکن دَ صحابه کرامو په زړونو کښې دَ هغے نه خفگان وو نو هغه خفګان الله تعالیٰ ختم کړو دَ دے وجے په هغه ایت کښې صرف په مؤمنانو کښې انزال السکینه ذکر کړے دے۔ وَاَلْزَمَهُمْ كَلِمَةَ التَّقْوٰى هغه کلمه چه په هغے سره دَ شرک نه بچاؤ کیږی او هغه کلمه دَ توحید ده او دا تفسیر قرطبی کښې په حدیث مرفوع او په اقوالو دَ صحابه کرامو سره هم ذکر کړے ده ۔ او مراد دا دے چه مشرکان په شرک باندے ټینګ وو نو الله تعالیٰ مؤمنانو لره په توحید باندے ټینګ کړل یا مراد دا دے چه لازم ئې کړو په دوی باندے رعایت او لحاظ کول دَ کلمے دَ توحید یعنی داسے طریقه اختیار کړئ چه په هغے سره کلمه دَ توحید او چتیږی ۔ وَكَانُوْٓا اَحَقَّ بِهَا وَاَهْلَهَا په دے کښې اشاره ده چه دا الزام په دوی باندے جبرًا کرهًا او دَ دوی دَ اهانت دَ پاره نه وو بلکه دا خو حقدار نه دَ هغه حق ورکول وو ۔ او اَحَقَّ اسم تفضیل کښې اشاره ده چه کوم خلق دَ دوی نه روستو مسلمانان شوی دی نو هغوی حقدار دَ دے کلمے دی لیکن اصحاب دَ حدیبیے دِ ټولو نه زیات حقدار وو ۔ وَاَهْلَهَا په دیکښې اشاره ده چه حقدار ئې دَ دوی عارضی نه وه بلکه دوی په علم دَ الله تعالیٰ کښې دَ دے کلمے اهل وو او په دیکښې اشاره ده هغه حدیث ته چه اِخْتَارَهُمُ اللّٰهُ (الصَّحَابَةَ) لِصُحْبَةِ نَبِيِّهٖ ـ

لَتَدْخُلُنَّ الْمَسْجِدَ الْحَرَامَ اِنْ شَآءَ اللّٰهُ اٰمِنِيْنَ

ضرور داخلیږئ به په مسجد حرام ته چه الله تعالیٰ اوغواړی امن والا

مُحَلِّقِيْنَ رُءُوْسَكُمْ وَمُقَصِّرِيْنَ لَا تَخَافُوْنَ

خریونکی دَ سرونو خپلو او لنډوونکی دَ ویښتو نه به ویریږئ دَ دُشمن نه

فَعَلِمَ مَا لَمْ تَعْلَمُوْا فَجَعَلَ مِنْ دُوْنِ ذٰلِكَ فَتْحًا

نو خبر وو الله تعالیٰ دَ هغه (حکمتونو) نه چه تاسو نه وئ خبر نو درکړه الله تعالیٰ د دے نه مخکښ فتح

قَرِيْبًا ﴿۲۷﴾ هُوَ الَّذِيْٓ اَرْسَلَ رَسُوْلَهٗ بِالْهُدٰى وَدِيْنِ

نژدے - خاص الله تعالیٰ هغه ذات دے چه رالیږلو ئے رسول خپل په هدایت سره او په دین

۲۷ دا تسلی ده رسول الله صلی الله علیه وسلّم او صحابه کرامو ته او متعلق دے دَ فانزل الله سکینته سره او جواب دَ سوال دَ منافقینو دے چه هغوی وئیل چه رسول الله صلّی الله علیه وسلّم ویلے وو چه ما خوب لیدلے دے چه مونږ مسجد حرام ته داخل شو او عمره مو کړے ده او حال دا چه دے خو واپس دَ حدیبیے نه راغے او عمره ئے اونکړه نو په دے ایت کښ جواب دے حاصل ئے دا دے چه په خوب کښ دا سے نه وو ویلے شوی چه په دے کال کښ به وی نو دا تلونکی کال به دا خوب ضرور رشتنی شی - الرُّؤْيَا دلته حرف دَ فِیْ پټ دے یعنی په خوب کښ ورته رشتیا ویلے وو - یا صدق په معنی دَ مضارع دے معنیٰ دا چه رشتنی به اوکړځوی خوب له نو الرُّءْيَا مفعول به شو - بِالْحَقِّ دَ پاره دَ ښکاره کولو دَ حق او دَ حکمتونو - تو په یکښ دَ دے خوب فائدو او حکمتونو ته اشاره ده - اِنْ شَآءَ اللّٰهُ (سوال) دا کلمه دَ شک په مقام کښ استعمالیږی نو دا دَ الله تعالیٰ دَ شان سره مناسب نه ده؟ (جواب) په دیرو طریقو سره! اول دا چه ابوعبیده ویلے دی اِنْ په معنی دَ اذ سره دے غوره دا چه په معنیٰ دَ اذا سره وی - دویم دا کلمه دَ پاره دَ تعلیم دَ بندګانو خپلو ده - دریم دا چه اِنْ په معنیٰ دَ کما سره دے - څلورم دا کلمه دَ تبرک دَ پاره ده لیکن بیا هم دَ تعلیم دَ بندګانو دَ پاره ده ځکه چه الله تعالیٰ تبرک ته محتاج نه دے - مُحَلِّقِيْنَ رُءُوْسَكُمْ وَمُقَصِّرِيْنَ دا اشاره ده پوره کولو دَ عمرے ته په تحلیل سره روستو دَ طواف او سعی نه او حلق (دویخته خریئل) په تحلیل دَ احرام کښ غوره دے دَ قصر نه (راپاتے په بل مخ)

الْحَقِّ لِيُظْهِرَهُ عَلَى الدِّينِ كُلِّهِ ۚ وَكَفَىٰ بِاللَّهِ

حق سره دَ دے دَپاره چه غالب کړی دهٔ لره په ټولو دینونو باندے او پوره دے الله تعالیٰ

شَهِيدًا ﴿۲۸﴾ مُحَمَّدٌ رَسُولُ اللَّهِ ۚ وَالَّذِينَ مَعَهُ

ګواهی ورکوونکے ۔ محمد صلی الله علیه وسلم رسول دَ الله تعالیٰ دے، او هغه کسان چه دَ دهٔ تابعدار دی (صحابه)

دَ دے وجے نه محلقین ئے مخکښ ذکر کړو هاں عام حالات کښ قصر غوره دے دَ حلق نه په دلیل دَ دے سره چه دَ نبی صلی الله علیه وسلّم نه حلق بغیر دَ تحلیل دَ حج او عمرے نه ثابت نه دے او هغه حدیث چه په هغے کښ محلقینو ته درے کرته دُعا کړے ده هغه هم خاص دے په حالت دَ تحلیل بعد الاحرام پورے۔

سوال :۔ محلقین حال دَ لَتَدْخُلُنَّ نه صحیح نه دے ځکه چه په حال دَ دخول کښ حلق نه دے جائز بلکه روستو دَ دخول او دَ طواف او سعی نه دے ؟

جواب :۔ لفظ دَ اٰمِنِيْنَ کښ اشاره ده قدرت او تمکن موندل په پوره کولو دَ حج باندے صرف امن دَ دشمن نه مراد نه دے۔ لَا تَخَافُوْنَ دا هم حال دے۔

سوال :۔ امنین دلالت کوی په عدم خوف باندے نو دا لفظ ئے بیا ولے ذکر کړو؟

جواب :۔ دا دَ اثبات دَ دوام امن دَپاره دے روستو دَ عمرے کولو نه یعنی په حال دَ عمرے کښ به هم امن وی او روستو دَ هغے نه به هم خوف نه وی۔ فَعَلِمَ مَا لَمْ تَعْلَمُوْا دا علت دے دَ مقدر (ربه) دَپاره یعنی عمره کول ستاسو یو کال روستو کړے شوه نو فا په معنیٰ دَ علت سره ده۔ مَا لَمْ تَعْلَمُوْا اشاره ده هغه حکمتونو ته چه په صلح دَ حدیبیه کښ وو لیکن مؤمنانو ته دَ مخکښ نه علم دَ هغے حاصل نه وو۔

فَجَعَلَ مِنْ دُوْنِ ذٰلِكَ فَتْحًا قَرِيْبًا ۔ ذٰلِكَ اشاره ده خوب ته او دَ فَتْحًا قَرِيْبًا نه مراد صلح ده یا ذٰلك اشاره ده صلح ته او دَ فتح قریب نه مراد فتح دَ خیبر ده۔

س ۲۸ دا علت دے دَ لقد صدق الله اه دَپاره او ذکر دَ صداقت دَ رسول صلی الله علیه وسلّم دے دَپاره دَ ردکولو په هغه مشرکانو باندے چه صلحنامه دَ حدیبیه کښ محمد رسول الله لیکلو نه ئے انکار کوو او ویل ئے چه موږ ستا رسالت نه منو او دَ هغے په ځائے ئے محمد بن عبد الله اولیکلو۔ بِالْهُدٰی وَدِیْنِ الْحَقِّ مراد دَ هدیٰ نه قرآن دے او دین الحق دَ هغے تشریح ده په سنت سره یا مراد دَ هدیٰ نه عقیده ده او دین الحق نور احکام دی یا مراد دَ هدیٰ نه دلیلو نه

أَشِدَّاءُ عَلَى الْكُفَّارِ رُحَمَاءُ بَيْنَهُمْ تَرَاهُمْ رُكَّعًا

سخت دی په مقابله دَ کافرانو کښې رحم کوونکے دی په مینځ خپل کښې وینې ته دوی رکوع کوونکی

سُجَّدًا يَبْتَغُونَ فَضْلًا مِّنَ اللَّهِ وَرِضْوَانًا سِيمَاهُمْ

سجده کوونکی لټوی فضل دَ الله تعالیٰ نه او رضا دَ هغه ، نخښې دَ دوی

فِي وُجُوهِهِم مِّنْ أَثَرِ السُّجُودِ ذَٰلِكَ مَثَلُهُمْ فِي

په مخونو دَ دوی کښې دی دَ وجې دَ نخښو دَ سجده کولو نه، دا دَ دوی حال دے په

التَّوْرَاةِ وَمَثَلُهُمْ فِي الْإِنجِيلِ كَزَرْعٍ أَخْرَجَ

تورات کښې او حال دَ دوی په انجیل کښې پشان دَ کروندے چه راوباسی

شَطْأَهُ فَآزَرَهُ فَاسْتَغْلَظَ فَاسْتَوَىٰ عَلَىٰ سُوقِهِ

تیغ خپل نو کلک کړی هغه نو غټ شی بیا برابر او دریږی په پنډئے خپلے باندے

يُعْجِبُ الزُّرَّاعَ لِيَغِيظَ بِهِمُ الْكُفَّارَ وَعَدَ اللَّهُ الَّذِينَ

خوشحالوی زمیندارانو له (عاقبت دا) چه غصه شی په سبب دَ دے سره کافران، وعده کړیده الله تعالیٰ دَ هغه کسانو سره

او مواعظ دَ قران او دَ حدیث دی او مراد دَ دین حق نه مسائل او احکام دَ دواړو دی۔
لِيُظْهِرَهُ عَلَى الدِّينِ كُلِّهِ ضمیر اول راجع دے دین حق ته
یا راجع دے رسول ته او اظهار نه مراد غالب گرځول دی او الدِّينِ مفرد په معنیٰ
دَ جمع سره دے۔ یا ضمیر راجع دے رسول ته او اظهار نه مراد اخبار او اعلام دَ
او الدِّينِ نه مراد ټول دینِ اسلام دے۔ وَكَفَىٰ بِاللَّهِ شَهِيدًا مراد تری نه شهادت دَ
الله تعالیٰ دے په حقانیت دَ رسول الله صلی الله علیه وسلم باندے اگرچه مشرکان
شهادت نه کوی په رسالت دَ هغه باندے۔ او دا سے ایت په سورة توبه ۳۳ کښې او
سورة صف ۹ کښې هم دے لیکن په هغه سورتونو کښې رد په مشرکینو اهلِ
کتابو باندے مقصد وو نو ذکر کړے وو ولو كره المشركون او په دے سورت کښې
په صلح کوونکو مشرکانو باندے رد دے چه هغوی صلحنامه کښې په رسالت باندے
شهادت نه کوو۔

آمَنُوْا وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ مِنْهُمْ مَّغْفِرَةً وَّ

چه ایمان یې راوړے دے او عملونه یې کړیدی د سنت برابر د دوی ته بخښنه او

أَجْرًا عَظِيمًا ﴿۲۹﴾ ع

ثواب لوئے .

ف۲۹ روستو د اثبات د رسالت او مقصد د رسالت نه اوس اوصاف د رسول او د صحابه کرامو ذکر کوی او دا لس صفتونه د صحابه کرامو په عام حالاتو کښ دی او تیر شوی اته احوال دو صرف په حالت د بیعت الرضوان کښ . مُحَمَّدٌ رَّسُوْلُ اللّٰهِ دا شهادت د الله تعالیٰ دے په رسالت د محمد صلی الله علیه وسلم باندے لکه چه تیر شوی آیت په آخر کښ د هغے ذکر کړے شوے وؤ . وَالَّذِيْنَ مَعَهٗ دا عطف دے په ما قبل باندے کله چه محمد موصوف وی او رسول الله صفت ئې نو په دے مینځ کښ وقف نشی کیدلے او روستو صفات د رسول الله سره د صحابه کرامو دی . یا مُحَمَّدٌ رَّسُوْلُ اللّٰهِ مبتدا او خبر دی او الَّذِيْنَ مَعَهٗ مبتداء ده او مابعد یې خبر دے نو دا صفتونه صرف د صحابه کرامو دی او دا قول غوره دے . مَعَهٗ مراد د دے نه معیت د صحبت دے تر مرګه پورے او صرف صحابه ترینه مراد دی یا مراد ترینه معیت د تابعداری دے نو ټول مؤمنان ترینه مراد دی .
اَشِدَّآءُ عَلَى الْكُفَّارِ دا اول صفت دے او دا شدت د وجے د نفرت د کفر او د شرک نه دے . طبعی نه دے او د حسن بصری نه روایت دے چه په شدت کښ صحابه دا سے حالت ته رسیدلی وو چه ځیلے جامے به یې هم د کافرانو نه بچ ساتلے او بدنونه به یې هم د هغوی د بدنونو نه ساتل د عبد الله بن عباس رضی الله عنهما نه روایت دے چه چا مشرک سره مصافحه او کړه نو لاس د او نینځی . دا هم د قبیلے د شدت نه دے .
او مراد د شدت نه د مداهنت نه ځان ساتل دی او په دین حق باندے مضبوط پاتے کیدل دی شدت په طریقه د ټکځل کولو بد رد ویلو سره مراد نه دے د پاره د دے چه د قوله تولا لینا (طه) سره منافات را نشی . رُحَمَآءُ بَيْنَهُمْ دا دویم صفت دے مراد د رحم نه په یو بل باندے ترس کول او مینه . محبت کول او مدد کول او معاف کول دی دا سے په سورة مائده ۵۴ کښ هم ذکر دی . خطیب شربینی ویلی دی چه حق په مسلمانانو باندے په هره زمانه کښ دا دے چه د دے اخلاقو لحاظ دِ اوکړی سختی دِ کوی په هغه چا باندے چه دین اسلام والا نه دی او مؤمنانو سره دِ بنه نرونه تیر دی په احسان او صله رحمی

اومدد کولو او اذیت دفع کولو او صبر کولو کې دوی دَ غلطۍ نه. تَرٰىهُمْ دا اشاره ده چه دا صفتونه په دوی کښې یقینی دی. رُكَّعًا سُجَّدًا دا دوه صفتونه دی او دا اشاره ده اهمیت دَ صلوٰة او کثرت دَ هغې ته دَ دوی په عملونو کښې.

فائده:- قیام ئې ذکر نه کړو ځکه چه په حال دَ قیام کښې پوره نه معلومیږی چه دا انسان مونځ کوی او که نه او هرچه حالت دَ رکوع او سجود دے نو ښکاره نښه ده دَ مونځ کولو. يَبْتَغُونَ فَضْلًا الخ دا پنځم صفت دے دَ دے نه مراد اخلاص کول دی په ټولو عملونو کښې فَضْلًا مراد تریته ثوابونه او جنت دے او رِضْوَانًا نو دا تخصیص دے روستو دَ تعمیم نه یعنی فضل عام دے او رضا خاص ده. او فضل ئې مخکښې کړو په رضا باندے اشاره ده چه حق دَ بنده (دَ احتیاج دَ وجے نه) مخکښې دے په حق دَ الله تعالیٰ باندے یعنی فضل خو حق دَ بنده دے دَ طرف دَ الله تعالیٰ نه او رضا خو صرف حق دَ الله تعالیٰ دے او دا مراد دے دَ قول دَ فقهاؤ چه حق دَ عبد مقدم دے په حق دَ الله تعالیٰ باندے یعنی هغه حق چه الله تعالیٰ بنده له ورکړے دے هغه مخکښې دے په هغه حق چه خالص صفت دَ الله تعالیٰ دے. سِيمَاهُمْ فِي وُجُوهِهِمْ مِنْ أَثَرِ السُّجُودِ دا شپږم صفت دے په دے کښې اشاره ده ډیرو مونځونو کولو ته او خصوصاً مونځ دَ تهجد ته. بیا په دے نښه کښې دَ مفسرینو دوه اقوال دی یو دا چه دا به په آخرت کښې وی ځکه چه حدیث صحیح کښې راغلے دی مضمون ئې دا دے چه په ورځ دَ قیامت به الله تعالیٰ ملائکو ته حکم اوکړی چه دَ جهنم نه مؤحدین را اوباسئ نو ملائک به ئې پیژنی په آثارو دَ سجدے ځکه چه کوم اندامونو باندے سجده کیږی نو اور دَ جهنم به هغه نه خوری. دا رنګ حسن بصری نه روایت دے چه مراد دَ دے نه سپین والے دَ مخونو دَ دوی دے په ورځ دَ قیامت، په دلیل دَ (يَوْمَ تَبْيَضُّ وُجُوهٌ وَتَسْوَدُّ وُجُوهٌ) سره. دریم قول دا دے چه دا په دُنیا کښې دے یعنی علامات دَ تهجد کولو دَ شپې او دَ بیدارئ چه هغه خشوع او تواضع ده دا مجاهد ویلے دی او زیړوالے دَ مخونو دَ دوی دا ضحاک ویلے دی او دا نورانیت دے چه په مخونو دَ تهجد کوونکو متبعینو دَ سنت کښې معلومیږی او راجح دا ده چه دا جمله دواړه قولونو ته شامل ده یعنی په دُنیا او په آخرت دواړو کښې به دا سے نښے وی. او داخل دی په آیت کښې هر هغه څوک چه په ټولو مونځونو باندے محافظت کوی. او مفسر بقاعی ویلے دی چه دا ګمان مه کوئے چه مراد دَ دے نه هغه توره غوټه (نښه) ده چه په تندی دَ بعض کسانو کښې جوړه شوے وی دا خوارج دی او په نهایه دَ ابن اثیر کښې دی چه ابوالدرداء یو سړے اولیدلو چه دَ سترګو په مینځ کښې (یا تے یه بل مخ)

داسے نبنه ده نو هغه اوفرمائيل که دا نه وے نوخه به وے۔ او دَ بعض متقدمينو علماؤ نه نقل دے چه مونږ مونځ کوؤ ليکن زمونږ دَ سترګو په مينځ کښې څه خيز نه ښکاري او اوس خو خلق مونځ کوي نو دَ سترګو په مينځ کښې دَ اوښ دَ زنګون پشان نښه ښکاري نو مونږ نه پوهيږو چه سرونه دَ دوي درانه شوے دي او که زمکه زګله شوې ده۔ او ابن کثير دَ مجاهد نه نقل کړے دي چه کله کله دا نښه دَ دواړو سترګو په مينځ کښې دَ هغه چا وي چه زړه ئې دَ فرعون نه هم سخت وي. ليکن مراد دَ دے نه هغه کسان دي چه داسے نښه دَ ريا دَ پاره جوړه وي يا مشرک يا بدعتي وي او ډير مونځونه کوي او دا نښه ئې په تندي کښې جوړه شي نو دَ داسے کسانو دغه نښه دَ تندي دغه علماؤ بده ګڼړلے ده.

ذٰلِكَ مَثَلُهُمْ فِي التَّوْرٰىةِ دا اوم صفت دے دَ صحابه کرامو دَ مفسرينو نه دلته دوه قولونه نقل دي اول دا چه په دے ځائے بانداے وقف کول دي يعني دا مخکښې چه کوم صفات دَ صحابه کرامو ذکر شول نو داسے په تورات کښې ذکر دي او مَثَلُهُمْ فِي الْاِنْجِيْلِ نه نوے کلام (جمله) شوروکيږي. دويم قول دا دے چه وقف به په فِي الْاِنْجِيْلِ باندے وي او دَ كَزَرْعٍ نه نوے جمله شورو ده. ليکن غور په کښې اوله توجيه ده او قرينه دا ده چه فى الانجيل سره لفظ دَ مثلهم مستقل ذکر کړے دے په ما قبل عطف دے نو فصيح کلام به داسے وے چه دويم مثلهم به ئې نه ذکر کولے او بله وجه دا ده چه دارمي او مشکوٰة باب فضائل سيد المرسلين کښې دَ کعب الاحبار نه په صفت دَ رسول الله صلی الله عليه وسلّم او دَ صحابه کرامو کښې عبارت دَ تورات نقل کړيدے دا رنګ بقاعي په نظم الدرر کښې دَ دے ايت په تشريح کښې عبارت دَ تورات په وصف دَ صحابو کښې نقل کړيدے۔ وَمَثَلُهُمْ فِي الْاِنْجِيْلِ كَزَرْعٍ دا اتم صفت دے دَ صحابه کرامو په طريقه دَ مثال سره او حاصل دَ دے مثال دا دے چه نبي صلی الله عليه وسلّم اول دعوت شورو کړو نو کمزورے حالت وو اجابت به يو يو سړي کوؤ او ځان به ئې پټ ساتلو ځکه چه دشمنانو نه ويره وه لکه دَ فصل چه اول تيغ ښکاره شي نو کمزورے وي او مرغو دَ خوړلو ويره هم وي بيا الله تعالٰی دعوت قوي کړو په مکه مکرمه کښې دَ عمر رضي الله عنه او دَ ډير صحابو دَ ملګرتيا په وجه سره دين ښکاره شو لکه تيغ دَ فصل قوي شي نو ښکاره شي دَ مرغو وغيره دَ خوړلو خطره ورباندے کمه شي بيا دَ صحابه کرامو په مکه کښې او دَ مکے نه بهر په ګردونواح او په حبش کښې پوره جماعت جوړ شو لکه فصل چه غټ شي او کلک شي نو بيا په مدينه منوره کښې خپل مستقل حکومت قائم شو لکه فصل چه پوخ شي او فائدے ئې علمے شي. دَ قتاده نه روايت دے چه مثال

دَ اصحابو دَ محمّد صلّی الله علیه وسلّم په انجیل کښې لیکلے شوے دے چه راؤوځي په یو قوم زرغون کیږي به په شان دَ زرغون کیدلو دَ فصل، امر بالمعروف او نهی عن المنکر به کوي. اَخۡرَجَ شَطۡـَٔهٗ شطأ نجی ته وئیلے کیږي مراد ترینه تیغ دَ غنمو، وربشو، جوارو وغیره دے او اخراج کښې اسناد (نسبت) زرع ته مجازي دے یا ضمیر دَ فاعل الله تعالیٰ دے. فَاٰزَرَهٗ دَ آزر نه ماخوذ دے قوت ته او دَ انسان ملا ته وئیلے کیږي لکه اشدد به ازري. فَاسۡتَغۡلَظَ مراد دَ غلظت نه دا دے چه دا تیغ دَ فصل غټ شي دنګ والے او پلن والے ئې ډیر شي.

فَاسۡتَوٰی عَلٰی سُوۡقِهٖ سوق نه مراد تنه دَ هغه بوټي ده چه روستو دَ غټ والي نه په خپل ځائې برابر ولاړ وي هوا کانے ئې کګوله نشي او که کوک شي نو دَ ویخ نه ئې نه شي ویستلے. یُعۡجِبُ الزُّرَّاعَ یعنی کروندګرو کوڼکے دَ خپل محنت نتیجه اُویني چه فصل پوره شو پوخ شو نو هغه ډیر خوشحاله شي نو دا رنګ نبي صلّی الله علیه وسلّم دَ صحابه کرامو په ترقیٔ او په غټ جماعت او دَ دین په استقامت باندے خوشحاله شو او په دے جمله کښې اشاره ده دَ صحابه کرامو تهم صفت ته. تفسیر سراج المنیر کښې وئیلي چه شَطۡـَٔهٗ کښې اشاره ده ابوبکر رضي الله عنه ته فَاٰزَرَهٗ کښې اشاره ده عمر رضي الله عنه ته او فَاسۡتَغۡلَظَ کښې اشاره ده عثمان رضي الله عنه ته. فَاسۡتَوٰی کښې اشاره ده علي رضي الله عنه ته.

لِیَغِیۡظَ بِهِمُ الۡکُفَّارَ په دے کښې اشاره ده لسم صفت دَ صحابه کرامو ته. او متعلق دَ دے لام حاصل دَ مخکښې عبارت دے یعني دا صفتونه او دا ترقي چه په دواړه مثالونو کښې ذکر شوه الله تعالیٰ صحابه کرامو ته دَ دے وجے نه ورکړے ده چه کافران په دوي باندے غصه شي او خفه شي.

ابن کثیر په تفسیر کښې لیکلي دي چه امام مالک رحمة الله دَ دے ایت نه استنباط کړے دے دَ کفر دَ روافضو چه بدګوري صحابه کرامو ته او یو ډلے دَ علماؤ دَ هغه سره موافقت کړے دے په دے مسئله کښې او قرطبي دَ امام مالک رحمة الله قول ذکر کړے دے چه هغه وئیلي دي چه څوک سحر راپاسي او دَ هغه په زړه کښې په یو صحابي باندے بُغض او غیظ وي نو هغه ته دا ایت اورسیدلو یعنی دَ دے په حکم کښې داخل شو. بیا قرطبي په باره دَ عظمت شان دَ صحابه کرامو او دَ هغوي دَ اختلافاتو په باره کښې ډیر خائسته تفصیل راوړے دے هغه دې اوکتلے شي.

وَعَدَ اللّٰهُ دا بشارت دے او صفت دَ ایمان او عمل صالح ئې (باتے په بل مخ)

ذکر کړو اشاره ده چه صرف صحبت دَ نبی صلّی الله علیه وسلّم سبب دَ جنت نه دے بلکه اصل سبب ایمان او عمل صالح دے مِنْهُمْ دَا مِنْ دَپاره دَ جنس دے دَ تبعیض دَپاره نه دے دَدے وجے نه چه صحابه کرام ټول ایمان او عمل صالح والا او جنتیان دی لیکن مِنْ راوړلو کښې تاکید دے او اشاره ده چه هر یو صحابی مستقل دَ دے بشارت حقدار دے۔

فائده :۔ شربینی ویلی دی چه په دے ایت کښې ټول حروف معجم راجمع دی نو په دے کښې باریکه اشاره ده اتمام او اکمال دَ دین دَ رسول الله صلّی الله علیه وسلّم نه په ملګرتیا دَ صحابه کرامو سره۔ الله تعالیٰ نه دُعا ده چه مونږ هم دَ دے وعدے حقدار اوګرځوی او دَ رسول الله صلّی الله علیه وسلّم او دَ هغه دَ صحابو سره زمونږ پوره محبت پیدا کړی او دَ هغوی دَ اتباع کولو مونږ له توفیق راکړی اللّٰهم امین۔

ختم شو تفسیر دَ سورة فتح په توفیق دَ الله تعالیٰ سره۔

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

## سورة الحجرات .

ربط دَ دے سورت دَ سورة فتح سره په څو وجوهو سره دے اوله وجه دا ده هرکله چه مخکښې سورت کښې شان دَ صحابه کرامو او دَ هغوی دَ ترقئ کولو په طریقه دَ مثال سره ذکر شو نو اوس په دے سورت کښې آداب ذکر کوی دَ پاره دَ دفع دَ اختلاف او تفرق په مینځ دَ هغوی کښې او دَ ټولو مسلمانانو کښې. دویمه وجه مخکښې سورت کښې صداقت دَ رسول صلی الله علیه وسلّم ذکر کړو نو په دے سورت کښې دَ هغه دَ احترام کولو دَ پاره اصول ذکر کوی. دریمه وجه دا ده چه په هغه سورت کښې یو نوعه صفات اتلس دَ صحابو ذکر شول نو په دے سورت کښې نور اوصاف او احوال شپاړس ذکر کوی.

دعوىٰ دَ سورت ذکر دَ اصولو او آدابو دَ پاره دَ دفع دَ اختلاف او تفرق او دَ پاره دَ بقا دَ اتحاد او اتفاق چه هغه په طریقه دَ لس اوامرو او اته نواهی سره دی.

خلاصه دَ سورت دا ده چه په دیکښې اوه آداب ذکر کوی دَ پاره دَ دفع کولو دَ تفرق او بیا زجرونه دی منافقانو ته چه هغوی دَ دے آدابو لحاظ نه کوی او اوصاف دَ مؤمنانو دَ پاره دَ تمیز په مینځ دَ دوه ډلو کښې. او زجر دے په منافقانو باندے په دعوىٰ کولو دَ ایمان سره چه دا دعوىٰ دَ پاره دَ دے ده چه الله تعالیٰ له خبر ورکوی یا دَ پاره دَ دے چه په رسول باندے احسان ښکاره کوی او دا دواړه ردی اخلاق دی او په آخر کښې رد دے په شرك فی العلم باندے.

تفصیل دَ آدابو دا دے. اول ادب دا دے چه دَ قرآن او سنت په مقابله کښې دَ هیچا رائے او خپله رائے مه پیش کوئے په دے سره تفرق راځی. او رعایت کول دَ قرآن او سنت په ټولو امورو کښې او دَ هغې په مقرره اوقاتو کښې سلکښې او دویم ځان. بچ کول دَ توهین دَ صاحب دَ شرع او دَ احکامو شرعیو نه او رعایت دَ کیفیاتو او صفاتو دَ احکامو شرعیو کول په ۲ کښې بیا بشارت دے ادب کوونکو له په ۳ کښې او زجر دے پریخودونکو دَ ر پاتے په بل مخ )

وَرَسُوۡلِهٖ وَاتَّقُوا اللّٰهَ ؕ اِنَّ اللّٰهَ سَمِيۡعٌ عَلِيۡمٌ ﴿۱﴾ يٰۤاَيُّهَا

او د رسول د هغه نه او ويره کوئ د الله تعالىٰ نه يقيناً الله تعالىٰ هرڅه اوري او په هرڅه پوهيږي. ۱ ے

ادب لره په ۲ـ ۳ـ کښ. دريم ادب ځان ساتل د قبلولو د خبر د فاسق نه د پاره د دے چه اختلاف راشي او تحقيق کول د خبر د هغه او ترغيب دے اطاعت د رسول الله صلى الله عليه وسلم ته او عمل کولو ته په مقتضىٰ د ايمان پاندے په ۷ـ ۸ـ کښ. څلورم ادب امر کول په مصالحت کولو سره په مينځ د مؤمنانو کښ د پاره د دفع کولو د اختلاف او جګړے کولو په ۹ـ ۱۰ـ کښ.
پنځم ادب ځان بچ کول د تذليل او تحقير د اهل ايمان نه په درے طريقو سره او دا پيدا کيږي د تکبر کولو نه يعنى تکبر مه کوئ دا په ۱۱ـ کښ. شپږم ادب ځان بچ کول د هغه کارونو نه چه اسباب د پيدائش د اختلاف او تفرق دي او دا پيدا کيږي د حسد کولو نه يعنى بغض او حسد مه کوئ دا په ۱۲ـ کښ. اووم ادب ځان بچ کول د فخر او تعصب نسبى نه دا هم سبب د تفرق دے او دا پيدا کيږي د خوئ د جاهليت نه يعنى د جاهليت د اخلاقو نه ځان بچ کړئ او اکرام کول په سبب د تقوىٰ سره نه په نسب سره په ۱۳ـ کښ. بيا د دے نه روستو بحث د اهل نفاق دے.
تفسير ۱ـ دا اول ادب دے د پاره د اتحاد او اتفاق پيدا کيدلو او د بچ کيدلو د تفرق او اختلاف نه مفسر قرطبي ذکر کړيدي چه ايت عام دے ډيرو واقعاتو ته شامل دے شايد چه دا ايت بغير د سبب خاصه نه نازل شوے دے. يعنى خاص سبب نزول ذکر کولو ته ضرورت نيشته. يٰۤاَيُّهَا الَّذِيۡنَ اٰمَنُوۡا په ټولو ادابو کښ دا ندا د پاره د دے ده چه دا د ايمان مقتضا کانے دي يعنى چه ايمان لرے نو د دے ادابو رعايت به کوے. لَا تُقَدِّمُوۡا فعل متعدى دے د مفعول ئے پټ دے يعنى لا تقدموا اٰرٰئکم واقوالکم وافعالکم خپلے رائے او وينا کانے او عملونه مه مخکښ کوئ يا په معنىٰ د لا تتقدموا (لازمى) دے يعنى مه مخکښ کيږئ يعنى مخالفت د قرآن او سنت مه کوئ. بَيۡنَ يَدَيِ اللّٰهِ وَرَسُوۡلِهٖ مراد د دے نه قرآن او حديث او حکم د الله تعالىٰ او د رسول الله صلى الله عليه وسلم دے او لفظ د بين يدى په معنىٰ د مخامخ حاضريدلو او د لاسونو سره او نزدے کيناستلو دے ليکن په طور د مثال او د کنايه سره مراد د دے نه نفس حضور دے يعنى حکم د الله تعالىٰ او د رسول حاضر دے نو د ځان نه قول او عمل او رائے او قات او طريقے مه جوړوئ. تفسير ابن کثير کښ ويلے دي چه تلوار مه کوئ په هيڅ څيز کښ مخکښ د قرآن او سنت نه بلکه تابع شئ په ټولو کارونو کښ د کتاب او سنت نزدے چه خپل قياس او اجتهاد هم په قرآن او سنت باندے مه مخکښ کوئ او په دے باندے ئے حديث د معاذ رضى الله عنه په دليل کښ پيش کړيدے

الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لَا تَرْفَعُوْٓا اَصْوَاتَكُمْ فَوْقَ صَوْتِ

ایمان والو مه اوچتوئ اوازونه خپل پورته دَ اواز

النَّبِيِّ وَلَا تَجْهَرُوْا لَهٗ بِالْقَوْلِ كَجَهْرِ بَعْضِكُمْ

دَ نبی صلی الله علیه وسلم نه او په زوره ویناَ مه کوئ هغه ته پشان دَ زوره وینا ستاسو بعضو دَ

لِبَعْضٍ اَنْ تَحْبَطَ اَعْمَالُكُمْ وَاَنْتُمْ لَا تَشْعُرُوْنَ ﴿۲﴾

بعضو ته (ویره ده) چه برباد به شی عملونه ستاسو او تاسو به نه پوهیږئ۔

چه هغه خپل اجتهاد باندے عمل کول دَ قران او سنت نه روستو ذکر کړے وؤ او نبی صلی الله علیه وسلم په هغے باندے ډیر خوشحاله شو۔

فائده :- په دے ایت کښ رد دے په هر هغه حاکم چه قانون دَ قران او سنت نه مخالف چلوی دا رنګ رد دے په هر مبتدع او بدعت باندے که په عقیده کښ وی او که په اعمالو کښ وی۔ ځکه چه دوی خپل حکم او خپل جوړ کړے شوے بے دلیله خبرے او کارونه دَ قران او سنت نه وړاندے کوی بلکه هغے ته خلق رابلی۔ دا رنګ معلومه شوه چه په قیاس دَ مجتهد باندے هغه وخت عمل نشی کیدے کله چه په مخالفت دَ قران او دَ سنت کښ وی دا رنګ رد دے په هغه چا باندے چه تحلیل او تحریم دَ ځان نه جوړوی او رد دے په هغه چا باندے چه هغه اوقات چه په دلیل شرعی سره دَ پاره دَ عباداتو مقرر وی او هغه بدلوی یا عام وی او دوی ئے خاص کوی یا خاص وی او دوی ئے عام کوی لکه چه قربانی دَ اختر دَ موقع نه وړاندے کوی څوک بعض عبادتونه دَ جمعے په شپه یا ورځ پورے خاص کوی چا تخصیص دَ روژے په خلویښتمه یا په کال پورے کړے وی، چا قضا دَ موقع په اخره جمعه دَ رمضان پورے خاص کړے وی۔ وَاتَّقُوا اللّٰهَ معلومه شوه چه دَ دے حکم دَ پابندئ کولو دَ پاره علاج تقوىٰ ده۔ اِنَّ اللّٰهَ سَمِيْعٌ عَلِيْمٌ هر کله چه تقدم یا په اقوالو کښ وی نو دَ هغے دَ پاره ئے سمیع راوړو یا په اعمالو او عقیدو کښ وی نو دَ هغے دَ پاره ئے علیم ذکر کړو۔

س۲ دا دویم ادب دے په دیکښ مقصد احترام او توقیر دَ صاحب دَ شرع او دَ کلام دَ هغه دے او په دے کښ اشاره ده رعایت دَ سنت ته په کیفیاتو او صفاتو کښ۔ يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا دا نداء ئے بار بار مقرر کړه دَ پاره دَ ډیرو فائدو اوله فائده زیاته توجه کول دَ مخاطبینو ده دویمه فائده چه دا وهم رانشی چه اول مخاطب او دویم ربا تے په بل مخ)

إِنَّ الَّذِينَ يَغُضُّونَ أَصْوَاتَهُمْ عِندَ رَسُولِ

یقیناً هغه کسان چه خکته کوی آوازونه خپل دَ رسول الله صلّی الله علیه وسلّم په

اللّٰهِ أُولٰٓئِكَ الَّذِينَ امْتَحَنَ اللّٰهُ قُلُوبَهُمْ لِلتَّقْوٰى ط

خوا کښ دا هغه کسان دی چه ازمائلے دی الله تعالیٰ زړونه دَهغوی دَ تقوی دَ پاره

مطلب جُدا جُدا دی دریمه فایده چه معلومه شی چه هر یو کلام جُدا جُدا مقصود دے۔
لَا تَرْفَعُوْٓا اَصْوَاتَكُمْ فَوْقَ صَوْتِ النَّبِیِّ آواز اوچتول څلور قسمه دے اول طبعی طور سره لکه واقعه دَ ثابت بن قیس بن شماس رضی الله عنه ده دا جائز دے دویم قسم په بے پرواهئ سره آواز اوچتول چه هغه مناسب نه وی دَ مجلس دَ لویو خلقو سره او دَ توقیر دَ مشرانو سره دریم قسم په طور دَ سپکوالی او دَ توهین سره آواز پورته کول دا دواړه قسمونه منع دی او دا په دے آیت کښ مراد دی یعنی دویم قسم حرام دے ځکه چه دا عادت تیول سپکوالی ته رسوونکے دے او دریم قسم کفر دے ځکه چه توهین دَ نبی صلّی الله علیه وسلّم کفر دے او دا قسمونه په ژوند دَ رسول الله صلّی الله علیه وسلّم کښ دی او دا رنګ علماؤ لیکلی دی چه دا آداب په مسجد نبوی کښ روستو دَ مرګ دَ رسول الله صلّی الله علیه وسلّم نه هم ضروری دی۔ څلورم قسم دا دے چه دَ کلام دَ الله تعالیٰ او دَ رسول الله صلّی الله علیه وسلّم په وړاندے خپل آوازونه اوچتول دا هم حرام دی او دا شامل دے دیته چه په کوم ذکر بانده دَ رسول الله صلّی الله علیه وسلّم نه اوچتوالے دَ آواز او جهر کول ثابت نه دی نو په هغے بانده رفع صوت او جهر کول خلاف سنت دے۔
وَلَا تَجْهَرُوْا لَهٗ بِالْقَوْلِ دَ اول جملے او دَ دے په مینځ کښ یو فرق دا دے چه په هغے کښ مراد دا دے چه خپل کلام او آواز دَ کلام دَ نبی صلّی الله علیه وسلّم او دَ آواز نه اعلیٰ مه ګرځوئے او دَ دے جملے مطلب دا دے چه دَ نورو خلقو سره ئے مساوی او برابر هم مه ګرځوئے دویم فرق دا دے چه رفع الصوت عام دے که په وخت دَ خطاب کولو کښ وی او که بغیر دَ خطاب کولو نه وی او جهر کول په وخت دَ مخاطبه کښ دے او په دے جهر کولو کښ دریے طریقے دی اوله طریقه کلمه دَ ادب ویل دی لکه یا رسول الله لیکن په جهر طبعی سره هغه جائز دے دویمه طریقه دغه کلمه ویل په بے پرواهئ سره دریمه طریقه په طور دَ سپکوالی سره آواز کول دَ دے حکم هم مخکښ بیان شو څلورمه طریقه یا محمد ویل لکه چه سورة نور ۶۳ کښ هم

لَهُمْ مَّغْفِرَةٌ وَّاَجْرٌ عَظِيْمٌ ۝۳ اِنَّ الَّذِيْنَ يُنَادُوْنَكَ

دَ دوی دَپاره بخښنه او ثواب لوئے دے۔ یقیناً هغه کسان چه اوزونه کوی تا ته

تیر شویدی لکه تفسیر قرطبی وغیره کښ ویلے دی چه خطاب مه کوئے نبی صلّی الله علیه وسلّم ته په یا محمد اویا احمد سره او دا سے اوازکول حرام دی. اَنْ تَحْبَطَ اَعْمَالُكُمْ یعنی بےادبی دَ نبی صلّی الله علیه وسلّم اگرچه په بے پروائی سره وی لیکن هرکله چه عادت اوگرځی نو سبب شی دَپاره دَ اهانت دَ نبی صلّی الله علیه وسلّم او اِهانت دَ هغه سبب دَ کفر دے او کفر سبب دَ بربادئے دَ نیکو اعمالو دے۔

فائده:۔ په سورة محمد ۹ او ۲۸ کښ حبط دَ عمل ئے په فاء سببیه سره ذکر کړے دے او دلته ئے په اَنْ سره ذکر کړے دے چه دا صریح نه دے په سببیت کښ۔ وجه دا ده چه هلته ئے کوم گناهونه دَ فا نه مخکښ ذکر کړے دی هغه اسباب بالذات (بغیر دَ واسطے) نه دی دَپاره دَ حبط او دلته چه کوم گناهونه ذکر کړے دی هغه اسباب دی په واسطو سره لکه مخکښ ذکر شول (چه رفع صوت او جهر دے) اول قسم گناه نه دے او دوېم قسم گناه دے لیکن کفر نه دے دا هله کفر گرځی چه سبب شی دَپاره دَ توهین دَ نبی صلّی الله علیه وسلّم او توهین بیا سبب دے دَپاره دَ حبط دَ اعمالو او دَ دے فرق په بِنا باندے هلته وَاَنْتُمْ لَا تَشْعُرُوْنَ ئے نه دے ذکر کړے او دلته ئے ذکر کړو۔ ځکه چه مراد دَ عدم شعور نه دا دے چه عمل دَ کفر کوی او کلمه دَ کفر وائی قصداً لیکن په دے نه پوهیږی چه دا سبب دَ حبط دَ عمل دے او دا عذر نه دے دَ دے نه دا نه معلومیږی چه عدم اراده دَ کفر هم کفر دے ځکه لزوم دَ کفر کفر نه دے بلکه التزام دَ کفر کفر دے۔

۳ دا بشارت دے هغه اهلِ ایمان ته چه دَ مخکښ ذکر کړے شوی ادب التزام کوی او دا څلور صفات او احوال دی دَ صحابه کرامو دَپاره. يَغُضُّوْنَ اَصْوَاتَهُمْ په حدیث دَ بخاری کښ ذکر دی چه روستو دَ نزول دَ دے ایت نه عمر رضی الله عنه په دا سے ادب سره په غلی (خکته) اواز سره په مجلس دَ نبی صلّی الله علیه وسلّم کښ خبرے کولے چه کله به نبی کریم صلّی الله علیه وسلّم وا نۀ ریدلے نو دَ دۀ نه به ئے دوباره تپوس اوکړو چه تا څه اُویل او دغه شان روایت دَ ابوبکر رضی الله عنه په باره کښ هم راغلے دے۔

اِمْتَحَنَ اللّٰهُ قُلُوْبَهُمْ دا ماخوذ دے دَ امتحان الذهب والفضه نه (یعنی صفا کول دَ سرو زرو او سپینو زرو دَ خیرو نه) یا ماخوذ دے دَ امتحان الادیم (یعنی دَ څرمنے دَپاره دَ دے چه فراخه شی) یعنی دَ دوی زړونه الله تعالیٰ پاک کړی (یا ئے په بل مخ )

مِنْ وَّرَآءِ الْحُجُرٰتِ اَكْثَرُهُمْ لَا يَعْقِلُوْنَ ﴿۴﴾ وَ

روستو د دیوالونو نه ډیر د دوی نه نه پوهیږی . او

لَوْ اَنَّهُمْ صَبَرُوْا حَتّٰى تَخْرُجَ اِلَيْهِمْ لَكَانَ خَيْرًا

که چرے دوی صبر کړے وے تر هغے پورے چه ته بهر راوګلے وے دوی ته ضرور ښه خبره

لَّهُمْ وَاللّٰهُ غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ ﴿۵﴾ يٰۤاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْۤا اِنْ

ده دوی لره او الله تعالیٰ دے بخښنه کوونکے رحم کوونکے . اے ایمان والو که

جَآءَكُمْ فَاسِقٌۢ بِنَبَاٍ فَتَبَيَّنُوْۤا اَنْ تُصِيْبُوْا قَوْمًۢا

راوړی تاسو ته ګنهګار یو خبر نو تحقیق ئے اوکړئ (هسے نه) چه اورسوئے (تکلیف) یو قوم ته

بِجَهَالَةٍ فَتُصْبِحُوْا عَلٰى مَا فَعَلْتُمْ نٰدِمِيْنَ ﴿۶﴾ وَاعْلَمُوْۤا

په ناخبرئ سره نو شئ به په خپلو کړو باندے پښیمانه . او پوهه شئ

دَهر قبیح فکر او عقیده نه او فراخ کړی دی دَپاره دَ قبلولو دَ تقویٰ. یا دَپاره دَ ښکاره کولو دَ تقویٰ.

سک دا زجر دے هغه چا ته چه دَ مخکښ ذکر شوی ادب لحاظ نه کوی. اَلْحُجُرٰتِ جمع دَ حجر دے او هغه جمع دَ حجرت ده یا حجرات جمع دَ حجرت ده هغه زمکے ته ویلے کیږی چه دیوال ترینه چاپیره وی لیکن اکثر مستعملیږی دَپاره دَ کور چه په هغے کښ کوټۀ دَ اوسیدلو او صحن وی چه راګیر وی په دیوالونو کښ او دلته مراد دیوالونه دَ کورونو دی. اَكْثَرُهُمْ یعنی دوی دَ دا سے قوم نه دی چه اکثر دَ دوی جاهلان دی یا اَلْكَثْرَۃُ دَ دے وجے نه اویل چه دَ بعضے کسانو اواز و نه بے اختیاره اوچت وُو او شر یعنی ویلے دی چه اکثر په معنیٰ دَ کل سره دے.

سه دا بیان دَ ادب دے دَپاره دَ ناپوهو خلقو او دَ صبر نه مراد انتظار کول دی. لَكَانَ خَيْرًا لَّهُمْ اشاره ده چه ادب دَ مشرانو (ادب شرعی) سبب دَ خیر او برکت او سبب دَ مغفرت او رحمت دے.

سک په دیکښ دریم ادب دے یعنی په تیر شوی ادابو سره اتحاد جوړیږی لیکن بعضے خلق دا اتحاد خرابوی چه هغه فاسق دروغژن چغلخور وی نو هغه دَ بے تحقیقه خبرے منلو نه

وَاعْلَمُوْٓا اَنَّ فِيْكُمْ رَسُوْلَ اللّٰهِ ۭ لَوْ يُطِيْعُكُمْ فِيْ كَثِيْرٍ مِّنَ الْاَمْرِ

یقیناً په تاسو کښې رسول دَ الله تعالیٰ شته دے که چرے ستاسو تابع شی په ډیرو کارونو کښې

لَعَنِتُّمْ وَلٰكِنَّ اللّٰهَ حَبَّبَ اِلَيْكُمُ الْاِيْمَانَ وَزَيَّنَهٗ

نو په تکلیف کښې به پریوځئ او لیکن الله تعالیٰ محبوب کړے دے تاسو ته ایمان او ډولی کړے یئے هغه

ځان بچ کول ضروری دی. فَاسِقٌ مراد دَ دے نه هغه څوك دے چه ارتکاب دَ ګناهِ کبیره ئې کړے وی او صحیح توبه ئې نه وی کړے او مسلمان وی. دروغ ویل چغلی کول، دَ مؤمنانو په مینځ کښې فساد پیدا کول دا ټول پکښې داخل دی. مفسر خازن وئیلی دی چه دا آیت عام دے نازل کړے شوے دے دَ پاره دَ بیان دَ تثبّت او دَ اعتماد نه کولو په خبر دَ فاسق باندے او خطیب شربینی هم وئیلی دی چه نزول دَ آیت په باره دَ ولید رضی الله عنه کښې دے. خو هغه ته فاسق ویل دا کمزورے قول دے په څو وجوهو سره اول دا چه الله تعالیٰ او دَ هغه رسول دا نه دی فرمائیلی چه دا آیت په باره دَ ولید رض کښې نازل شوید ے او دَ صحابه کرامو لوئے شان او عدالت چه په یقینی نصوصو سره ثابت دے نو هغه په دے قول دَ مفسرینو باندے پریښودل نه دی جائز. دویمه وجه دا ده چه په دغه روایت چه ابن کثیر او نور مفسرینو په سند سره نقل کړے دے لیکن سند ئې متصل نه دے او په البدایه کښې وئیلی دی چه الله تعالیٰ دَ دے په صحت باندے پوهه دے ص۲۹۴ جلد ۸ - ابن عربی په العواصم والقواصم او دَ هغې په تعلیق کښې په دے باندے رد کړے دے. دریمه وجه دا ده چه ولید رض ته فاسق ویل بے دلیله خبره ده ځکه چه هغه واقعه که چرے ثابته شی نو دَ ولید رض اجتهادی خطا ئې باندے دلالت کوی او په اجتهادی خطا ئې سره ګناه نه ثابتیږی نو څه رنګ هغه ته فاسق وئیلے کیږی. فَتَبَيَّنُوْٓا اشاره ده چه خبر دَ فاسق قبلولے شی روستو دَ تحقیق او تبیین نه معلومه شوه چه خبر دَ عادل څو هر وخت قبول دے. اَنْ تُصِيْبُوْا قَوْمًا دا نقصان ذکر کوی دَ قبلولو دَ خبر دَ فاسق بغیر دَ تبیین نه یعنی که چرے دے فاسق دَ یو سړی یا دَ یو قوم په باره کښې ناکاره خبر در کړے وی مثلاً وئیلی دی چه فلانی تا ته کنځل کړے دی ستا بد ئې وئیلی دی یا په تا باندے بهتان لګولے دے یا ئې وئیلی دی چه فلانی دَ اسلام نه انکار کړے دے یا زکوٰة ورکولو نه وغیره او مخاطب په دے خبره باندے عمل اوکړی یعنی دَ هغه کس یا قوم نه انتقام واخلی دَ هغه بے عزتی اوکړی دَ هغوی سره جنګ اوکړی نو دا لوئے جرم دے او سبب دَ پښیمانتیا دے. ( پاتے په بل مخ )

فِيْ قُلُوْبِكُمْ وَكَرَّهَ اِلَيْكُمُ الْكُفْرَ وَالْفُسُوْقَ وَالْعِصْيَانَ ۭ

په زړونو ستاسو کښې او بد يې ښکاره کړي دي تاسو ته کفر او ګناهونه کول او نافرماني کول

اُولٰۗىِٕكَ هُمُ الرّٰشِدُوْنَ ۝ فَضْلًا مِّنَ اللّٰهِ وَنِعْمَةً ۭ

داسې کسان خاص دوی کامیاب دی د وجې د فضل د طرف د الله تعالیٰ نه او د وجې د نعمت نه

بِجَهَالَةٍ: مراد د دې نه بې خبري ده د حقيقتِ حال نه يا اشاره ده چه په دې خبر د فاسق باندې بې تحقيقه عمل کول جهالت دے۔ نٰدِمِيْنَ: ندامت وېلې کيږي افسوس او خفګان کولو ته په يو کار کولو باندې روستو د کولو د هغې نه په داسې حال کښې چه دا افسوس کول بيا فائده نه ورکوي۔

سک په دې کښې اشاره ده طريقې د تحقيق د خبر د فاسق ته او دا رنګ تحذير دے فاسق ته د دروغ خبر ويلو نه يعني خبر د فاسق به رسول الله صلّی الله عليه وسلّم ته پېش کيږي په ژوند د هغه کښې او د هغه سنت ته به پېش کيږي روستو د وفات د هغه نه نو په دې طريقې سره به د هغه فاسق دروغ او رشتيا معلوميږي او دا حکم عام دے هره مسئله او فيصله که د يو عالم وي يا حاکم وي نو هغه به تللې کيږي په سنت د رسول الله صلّی الله عليه وسلّم باندې۔ فِيْكُمْ رَسُوْلَ اللّٰهِ وصف يې ذکر کړو نوم (محمد) يې نه دے ذکر کړے اشاره ده چه د هغه ذات خو حاضر ناظر نه دے نه په ژوند د هغه کښې او نه روستو د مرګ د هغه نه ليکن صفت د رسالت (چه قرآن او سنت دے) هغه په تاسو کښې باقي دے۔ لَوْ يُطِيْعُكُمْ الخ حاصل دا دے چه څوک دروغ خبر يا دروغ مسئلې او بدعات په خلقو کښې خوروي د هغه مطلب دا وي چه رسول الله صلّی الله عليه وسلّم (په حالت د ژوند کښې) زما تائيد اوکړي يا سنت د رسول الله دِ زما تابع شي يعني حديث صحيح تحمل خواهش او د خپلې رائې تابع کړخوي لکه چه جامد مقلدين او مبتدعين دا کار کوي نو دا به سبب د ډير مشقت او تکليف او ګرځي ځکه چه په سنت د رسول الله صلّی الله عليه وسلّم کښې حرج او تنګول نيشته او په خلاف د سنت کار د تو کښې او بدعاتو کښې خو ډير حرج دے۔ فِيْ كَثِيْرٍ مِّنَ الْاَمْرِ کثير يې د دې وجې نه اوئيل چه په بعض خلاف سنت کارکښې اسانتيا وي ليکن هغه د شرعې د مصلحت سره موافق نه وي۔ وَلٰكِنَّ اللّٰهَ حَبَّبَ اِلَيْكُمُ الْاِيْمَانَ د ماقبل نه وهم پيدا شو چه ايا صحابه کرامو دا اراده کړې ده چه دروغ اوائي او پيغمبر په ځان پسې په هغې کښې تابع اوګرځوي نو دا وهم لرې کوي

وَاللّٰهُ عَلِيْمٌ حَكِيْمٌ ۝۸ وَاِنْ طَآئِفَتٰنِ مِنَ الْمُؤْمِنِيْنَ

او الله تعالیٰ پوهه حکمتونو والا دے. او که چرے دوه ډلے د مؤمنانو نه

چه د صحابه کرامو شان د دے نه اوچت دے او لفظ دَ لَوْ يُطِيعُكُمْ په دے باندې دليل دے ځکه چه لَوْ د پاره دَ انتفاء او دَ منع راځي يعنې دا سے نه دی شوی. فرق دَ تحبيب او تزيين په مينځ کښې دا دے چه تحبيب کښې معنیٰ دَ طلب ده په رضا سره بيا د کله چه طلب او محبوبيت کله کله دَ قبيح څيزونو دَ وجے دَ مجبورۍ نه وی تزيين ئے ذکر کړو تزيين دا دے چه ايمان دوی ته قبيح نه ښکارى بلکه دَ خاپست دَ ايمان دَ وجے نه هغه سره محبت کوی. بل فرق دا دے چه محبت امر باطنى دے نو مراد دَ ايمان نه عقيده صحيحه دَ توحيد ده او تزيين امر ظاهرى دے نو مراد دَ ضمير دَ زَيَّنَهٗ نه اعمال دَ ايمان دى. وَكَرَّهَ اِلَيْكُمُ الْكُفْرَ دا اشاره ده چه محبت دَ دوی دَ ايمان سره دومره زيات دے چه دَ هغے مقابل ورته بد ښکاره کيږی الکفر مقابل دَ ايمان دے. او اَلْفُسُوْقَ وَالْعِصْيَانَ دا مقابل دے دَ زَيَّنَهٗ سره ځکه چه په هغے کښې اعمالو صالحه ته اشاره ده. او دَ دے دريو واړو فرق دا دے چه کفر خو انکار کول دى دَ طاعت دَ الله تعالیٰ او دَ رسول صلّی الله عليه وسلّم ته او الفسوق ګناه کبيره دے او العصيان ګناهونه صغيره دی دويم فرق دا دے چه کفر انکار دے په زړه کښې او فسوق دَ طاعت نه وتل دى اګرچه انکار نه کوی په زړه کښې خو په ظاهر کښې بغاوت او کړی دَ حکم نه او عصيان مخالفت کول دی دَ امر نه يعنې انکار هم نه کوی او وائی چه زه تابعدارى کوؤم ليکن سره دَ دے نه دَ بعض او امرو نه مخالفت کوی او دَ حديث دَ بخارى او مسلم چه دَ انس رضی الله عنه نه روايت دے مضمون دا دے چه درے خصلتونه په چا کښې جمع شی نو دَ ايمان خوږوالے ئے نصيب شی دريم خصلت پکښې دا دے چه کفر ته واپس کيدل (يا قبلول) دا سے مکروه او بد ګڼړی لکه چه اور ته غورځيدل بد ګڼړی. نو دا صفت په صحابه کرامو کښې موجود دے.

فائده :- په لفظ دَ حَبَّبَ او كَرَّهَ کښې چه ضمير فاعل ئے الله تعالیٰ ته راجع دے اشاره ده چه نوی کارونه دَ خير او شر الله تعالیٰ پيدا کړيدی او دا رد دے په قدريه معتزله باندے. اُولٰٓئِكَ هُمُ الرّٰشِدُوْنَ مبتدا او خبر ئے معرفه راوړل او په مينځ کښې ضمير فصل دلالت کوی په حصر او په کمال باندے او رشد نه مراد هدايت موندل دی سره دَ کاميابۍ او دَ ښو خوالی او دَ عقلمندئے نه.

سه په دے کښې اشاره ده چه دغه تير شوی اوصاف دَ الله تعالیٰ دَ ر پاتے په بل مخ)

اقْتَتَلُوْا فَاَصْلِحُوْا بَيْنَهُمَا ۚ فَاِنْۢ بَغَتْ اِحْدٰىهُمَا عَلَى

جنګ اوکړی نو روغه اوکړئ د دوی په مینځ کښې نو که چرے زیاتے اوکړی یوه د دوه په

الْاُخْرٰى فَقَاتِلُوا الَّتِىْ تَبْغِىْ حَتّٰى تَفِىْٓءَ اِلٰٓى

بله باندے نو جنګ اوکړئ د هغے ډلے سره چه زیاتے ئے کړے دے تر دے پورے چه را اوګرځی

اَمْرِ اللّٰهِ ۚ فَاِنْ فَآءَتْ فَاَصْلِحُوْا بَيْنَهُمَا بِالْعَدْلِ

فیصلے د الله تعالیٰ ته نو که چرے را وګرځی نو روغه اوکړئ د دوی په مینځ کښې په انصاف سره

وَاَقْسِطُوْا ؕ اِنَّ اللّٰهَ يُحِبُّ الْمُقْسِطِيْنَ ⑨ اِنَّمَا

او انصاف کوئ یقیناً الله تعالیٰ مینه کوی د انصاف کوونکو سره - یقیناً

طرف ته احسان دے هغه مجبور نه دے په هغه باندے حق واجبه نیشته دے. فَضْلًا کښې اشاره ده چه د مؤمنانو په مینځ کښې په دغه صفتونو کښې تفاضل شته دے او نِعْمَةً کښې اشاره ده چه دغه محبت او کراهت باطنی نعمتونه دی چه د هغے شکر کول واجب دی۔

۹ په دے کښې شلورم ادب ذکر کوی یعنی کوم وخت چه د فاسق خبر او منلے شی بغیر د تحقیق نه او د هغے په سبب سره د مؤمنانو په مینځ کښې اختلاف او دشمنی او قتل وقتال پیدا شی نو په نورو مؤمنانو باندے فرض دی چه د هغوی په مینځ کښې د مصالحت کوشش اوکړی او طرف داری دِ نه کوی د پاره د دے چه اتحاد او اتفاق د مؤمنانو ته نقصان او نه رسیږی. طَآئِفَتَانِ قرطبی د ابن عباس رضی الله عنهما نه نقل کړے دی چه طائفه یو نفر او زیاتو ته هم ویلے کیږی د دے وجے نه د جمع ضمیر ورته هم راجع کیږی. فَاَصْلِحُوْا بَيْنَهُمَا یعنی ئے په نصیحت کولو او فیصلے د قرآن او سنت ته په رابللو سره او دا سے په سورة نسآء ۳۵ او ۱۲۸ کښې هم ذکر کړے شوے دی۔ فَاِنْۢ بَغَتْ اِحْدٰىهُمَا مراد د بغی نه دا دے چه یو طائفه فیصلے د قرآن او سنت ته غاړه کیښږدی بلکه د فساد کولو اراده کوی حَتّٰى تَفِىْٓءَ اِلٰٓى اَمْرِ اللّٰهِ فئ په اصل کښې سوری ته ویلے کیږی یعنی قتال کول ګرمی ده او حکم د قرآن او سنت کښې سورے او راحت دے۔ اَمْرِ اللّٰهِ مراد د دے نه کتاب الله او سنت رسول الله صلّی الله علیه وسلّم دے بِالْعَدْلِ دا تاکید ئے د دے وجے نه ذکر کړے دے چه قتال د دوی سبب د حسد او د کینے او نه ګرځی چه د هغے د وجے نه عدل نه شی کیدلے. قرطبی ویلے دی چه دلته په عدل کښې دا خبره داخل ده چه دے باغیانو د تاویل په وجے سره

الْمُؤْمِنُوْنَ اِخْوَةٌ فَاَصْلِحُوْا بَيْنَ اَخَوَيْكُمْ وَاتَّقُوا

مؤمنان رونړه رونړه دي نو روغه کوئ په مینځ د رونړو ستاسو کښې او یره کوئ

اللّٰهَ لَعَلَّكُمْ تُرْحَمُوْنَ ﴿۱۰﴾ يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لَا يَسْخَرْ

د الله تعالیٰ نه د دے د پاره چه رحم اوکړشي په تاسو باندے. اے ایمان والو مسخرے دِ نه کوی

کوم مالونه او نفسونه تلف (هلاک) کړے وی نو د هغې مطالبه تری نه نشی کیدے. وَاَقْسِطُوْا تفسیر سراج المنیر کښې لیکلے دی چه قسط په زور د قاف سره ظلم ته ویلے کیږی او په زیر د قاف سره عدل ته ویلے شی نو معنیٰ دا چه زائل کړئ ظلم په کولو د عدل سره. تنبیه: روستو د حکم د عدل نه امر په اقساط سره د دے وجې نه دے چه مراد د دے نه حصه او حق ورکول دی په داسے حالاتو کښې اکثر د انسانانو حقوقو ته نقصان اورسیږی نو د دے وجې نه د اقسطوا حکم مستقل ذکر شو لکه سورة ممتحنه ۸ او مائده ۴۲ کښې ذکر دی.

فوائد:- په دے ایت کښې یو فائده دا ده چه مؤمن په اقتتال سره کافر نه گرځی ځکه چه سره د صفت د ایمان نه ئې اقتتال ذکر کړے دے. دویمه فائده دا ده چه هغه مسلمانان چه د یو عادل امیر المؤمنین د بیعت یا د یو حکم شرعی نه بغاوت اوکړی (یعنی ډله بازی او فساد جوړوی تفرق په مینځ د مسلمانانو کښې جوړوی) نو د هغوی سره قتال کول هم فرض کفائی دے د پاره د دے چه د نورو مسلمانانو جماعت او اتحاد خراب نشی. دریمه فائده دا ده چه څوک یو گناه په تاویل سره جائز کوی لیکن هغه سبب د فساد وی نو هغه تاویل سبب د منع د قتال نشی کیدے ځکه چه باغی ضرور ځان د پاره تاویلات کوی لیکن هغې ته اعتبار نشی ورکیدے. د دے وجې نه قرطبی د لسان الامة نه نقل کړے دی چه په جنگونو د صحابه کرامو کښې (په کورنئ کښې) یو حکمت د الله تعالیٰ دا دے چه احکام د قتال د اهل تاویل معلوم نشی. او بیا مفسر قرطبی د دے ایت په تفسیر کښې د صحابه کرامو د جنگونو په باره کښې ویلے دی چه دا تول اجتهادی اختلاف وو او موتږ له جائز نه دی چه په دے کښې یو طرف ته یا یو صحابی ته د یقینی خطا ئې نسبت اوکړو هغوی تول زمونږ امامان دی مونږ به د هغوی د جنگونو د ذکر کولو نه خپلے ژبے محفوظ ساتو لکه چه زمونږ توره (سیوف) د هغوی د وینو نه الله تعالیٰ محفوظ ساتلے دی، او دا به وایو چه تِلْكَ اُمَّةٌ قَدْ خَلَتْ لَهَا مَا كَسَبَتْ.

۱ دا علت دے د پاره د امر د اصلاح کولو او په لفظ د الْمُؤْمِنُوْنَ کښې (رپاتے په بل مخ)

قَوْمٌ مِّنْ قَوْمٍ عَسٰٓى اَنْ يَّكُوْنُوْا خَيْرًا مِّنْهُمْ وَ

هیڅ نارینه په نورو نارینو پورې کیږې شي چه هغوی به وی غوره د دوی نه او

لَا نِسَآءٌ مِّنْ نِّسَآءٍ عَسٰٓى اَنْ يَّكُنَّ خَيْرًا مِّنْهُنَّ ۚ

نه زنانه په نورو زنانو پورې کیږېشي چه هغوی به غوره وی د دوی نه

وَلَا تَلْمِزُوْٓا اَنْفُسَكُمْ وَلَا تَنَابَزُوْا بِالْاَلْقَابِ ۭ بِئْسَ

او طعنونه مه کوئ په خپلو ځانونو باندې او مه یادوئ یو بل په ناکاره نومونو سره ، بد

الِاسْمُ الْفُسُوْقُ بَعْدَ الْاِيْمَانِ ۚ وَمَنْ لَّمْ يَتُبْ

نوم فسق والا روستو د ایمان نه او چاچه توبه اونکړه

فَاُولٰٓئِكَ هُمُ الظّٰلِمُوْنَ ⑪ يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوا

نو هغه کسان دوی ظالمان دی. اے ایمان والو

اشاره ده چه اختلاف دَنسب ته اعتبار نیشته بلکه ایمان صِرف سبب دَ اخوّت او ورورولی دَپاره دے او دَابوعثمان حیری نه خطیب شربینی نقل کړے دی چه اخوّت دَدین کلک دے دَ اخوّت دَنسب نه ځکه چه اخوّت دَنسب قطع کیږی په مخالفت دینی سره او اخوت دینی نه قطع کیږی په مخالفت دَنسب سره. اَخَوَيْكُمْ تثنیه ئې دَدے وجې نه ذکر کړه چه ادنیٰ عدد دَ هغه چاچه مخالفت ئې په مینځ کښ پیدا کیږی هغه دوه کسان دی نو حکم زیاتو ته هم شامل دے. لَعَلَّكُمْ تُرْحَمُوْنَ هرکله چه صلح کول دَمسلمانانو رحم کول دی په هغوی باندے نو په تقاضا دَ الرَّاحِمُوْنَ يَرْحَمُهُمْ مَنْ فِى السَّمَآءِ سره دلته هم په جزاء کښ وعده دَ رحم ذکر کړے شوله.

سلا دا پنځم ادب دے هرکله چه دَ دوه طائفو جګړه تیره شی نو په هغې کښ دَیو بل نقصانونه او عیبونه معلوم شی لیکن روستو دَ مصلحت نه دَهغه نقصانونو په وجه سره دَ هغې سپک والے جائز نه دے هسے نه چه بیا فساد او اختلاف پیدا شی نو په دے ادب کښ دَدرے څیزونو نه منع کړے شوے ده چه هغه سبب دَ توهین دَمسلمان دے او بیا سبب دَ فساد دے. اول څیز مسخرے کول یعنی دَ بعض نقصان په وجې سره یا به غیر دَ نقصان نه چا ته سپک کتل او په هغه پورے پزمونې کول اګرچه عیب ئې بیکاره نه

اجْتَنِبُوا كَثِيرًا مِّنَ الظَّنِّ إِنَّ بَعْضَ الظَّنِّ

| څان بچ کوئے دَ ډیرو | گمانونو نه | یقیناً | بعض | گمانونه |
|---|---|---|---|---|

ذکرکوی۔ تفسیر سراج المنیرکښ ذکردی چه سخریه دیته ویلے کیږی چه یوانسان بل انسان ته دَ عزت په نظر سره نه ګوری بلکه دَ درجے نه ئے ښکته ګنړی۔ او سخرے کول په بل پورے مستلزم ده تکبرکولو لره او داخوئ دَ مشرکانو کافرانو دے چه حق پرستو پورے مسخرے کوی لکه سورة هود ۳۸ توبه ۷۹ انعام ۱۰ بقره ۲۱۲ صافات ۱۲ کښ ذکرشوی دی۔

قَوْمٌ مِّنْ قَوْمٍ قوم ته قوم دَ دے وجے نه ویلے کیږی چه خلك یوتن دَ قوم له سختئ ته دعوت ورکړی نو دوی ورسره اودریږی او دا صفات اکثر دَ ناربنو وی دَ دے وجے نه دَ قوم اطلاق حقیقةً په ناربنو باندے کیږی او زنانه پکښ کله کله مجازًا داخلیږی۔ وَلَا نِسَآءٌ دلته دَ زنانه ذکر ئے جُدا اوکړو یو دَ دے وجے نه چه په زنانوکښ مسخرے کول په یو بل پسے ډیرے وی بل دَ دے وجے نه چه اکثر ناربنه په زنانه پورے یا زنانه په ناربنه پورے مسخرے نه کوی بلکه هر یو جنس په خپل هم جنس پورے مسخرے کوی۔

عَسَىٰ أَنْ يَكُونُوا خَيْرًا مِّنْهُمْ دَ دے دوه مقصدونه دی یو دا چه په ظاهرکښ هغه سړے (چه مسخرے ورپورے کیږی) سپک ښکاری لیکن حقیقت کښ هغه الله تعالیٰ ته مقرّب اونزدے وی لکه چه حدیث صحیح کښ دی رُبَّ أَشْعَثَ أَغْبَرَ لَوْ أَقْسَمَ عَلَى اللهِ لَأَبَرَّهُ (ډیرکرته یو ببر سرے دوړژن وی خوچه قسم اوکړی دَ الله تعالیٰ په باره کښ نو الله تعالیٰ ورله هغه قسم پوره کوی)

تنبیه دَ دے دا مراد نه دے چه یو سړے بے دینه دے شرک او بدعات کوی بیلمازه وی لکه بعض ملنګان دَ دے زمانے او هغه دِهم دَ احترام او دَ عزت حقدار وی پدے ګمان سره چه دے په باطن کښ دَ الله تعالیٰ ولی او بزرګ وی دا غلطه ده ځکه چه ولی الله مخالفت دَ شرع نه کوی۔ دویم مقصد دا دے کیدیشی چه په راتلونکی وخت کښ چه دا مسخره کوونکے انسان ذلیل مسکین عیبژن شی او بل عزت مند شی نو معامله به په عکس سره شی۔ قرطبی او نورو مفسرینو دَ عبد الله بن مسعود رضی الله عنهٗ روایت ذکرکړے دے "که زه په یو سپی پورے خندنے اوکړم نو ویریږم چه زه به سپے اوګرځم" او دَ قشیری نه نقل دے "چه چا بل مسلمان سپک ګنړلے دے نو الله تعالیٰ هغه مسلمان په دهٔ باندے مسلّط کړځولے دے"۔ او دویم څیز چه دَ هغے نه منع کړے شوے ده او دَ کورنئ فساد پیدا کوی په دے قول کښ دے وَلَا تَلْمِزُوا أَنْفُسَكُمْ (یا نے په بل مخ)

إِثْمٌ وَّلَا تَجَسَّسُوْا وَلَا يَغْتَبْ بَّعْضُكُمْ بَعْضًا ؕ

گناه دے او عیبونه د یو بل مه لټوئ او غیبت د نه کوی بعض ستاسو د بعضو

لمز مخامخ عیب او بدو ویلو ته ویلے کیږی او په اصل کښ اشارے کول په سترګو او په سر او په شونډو سره سرهٔ د پټو خبرو کولو ته او همز صرف پشی شا عیب ویلو ته ویلے کیږی نو لمز ډیر ناکاره دے په نسبت د همز سره او د همز ذکر روستو ایت کښ په ضمن د غیبت کښ ذکر کوی۔ او اَنْفُسَكُمْ په معنیٰ د هم جنس دے لکه سوره بقره ۸۴ سوره آل عمران ۱۶۴ کښ تیر شویدی۔ او هر کله چه د بل چا عیب وئیل سبب د عیب ویلو د خپل ځان دی د دے وجے نه انفسکم ئے ویلے دے او د بل چا عیبونه وئیل دلیل دے د تکبر کولو او ځان معصوم ګڼړلو او چه مخامخ عیب وائی نو په دیکښ توهین د مسلمان هم دے۔ قرطبی نقل کړیدی چه د انسان د نیک بختۍ نښه دا ده چه په خپلو عیبونو سره مشغول شی د نورو خلقو د عیبونو نه او د بکر بن عبد الله مزنی نه ئے نقل کړے دی "که چرے ته غواړے چه د عیبونو مجموعه اُوینے نو عیّاب (چه عیبونه وائی) ته اوګوره یعنی په دهٔ کښ به په خپله دغه عیبونه موجود وی"۔ او دریم خبره چه سبب د فساد او تحقیر د مسلمان دے او د هغے نه منع کړے شوے ده په دے قول کښ۔ وَلَا تَنَابَزُوْا بِالْاَلْقَابِ او مهٔ یادوئ یو بل په ناکاره نومونو سره۔ دا هم دلیل دے په تکبر کولو د تنابز کوونکی او په تحقیر د هغه بل مسلمان باندے۔ تَنَابُز لقب ذکر کولو ته ویلے کیږی او اکثر په ناکاره لقب کښ استعمالیږی او لقب د خپل نوم نه علاوه بل وصفی نوم دے چه په هغے کښ د انسان اوچت والے یا تذلیل مقصود وی۔ نو مراد د دے جملے دا دے چه یو مسلمان په داسے ناکاره لقب سره مه رابلئ چه په هغے لفظ سره هغه خفه کیږی او د بلنه کوونکی مقصد هم د هغه سپک والے وی۔ لکه چه اُویلے شی اے فاسقه اے منافقه، اے کافره او اے یهودی، اے نصرانی او اے خرهٔ اے خنزیره یا د چا نوم کښ ترخیم اوکړی د هغه د سپک والی د پاره یا اووائی اے کونټره یا اے ړونده په طریقه د سپک والی۔ او د ابن عباس رضی الله عنهما نه روایت دے چه هر کله یو سړی بدکاری کړے وی او د هغے نه ئے تکاره توبه اوباسی نو بیا په هغه ګناهونو سره د دهٔ یادول دا هم تنابز بالالقاب دے هاں که یو سړے په یو لقب سره مشهور وی او په هغے نه خفه کیږی او د آواز کوونکی مقصد د هغه سپک والے نه وی نو بیا جائز دے لکه چه امام بخاری رحمة الله علیه باب ذکر کړے دے په کتاب الادب کښ چه چا ته اوګډ یا لنډ اوویلے شی او د هغه عیب کول مقصد نه وی نو

أَيُحِبُّ أَحَدُكُمْ أَنْ يَأْكُلَ لَحْمَ أَخِيهِ مَيْتًا

ایا خوخوی یو تن ستاسو چه اوخوری غوښې دَ رور خپل چه مړ وی

فَكَرِهْتُمُوهُ ۚ وَاتَّقُوا اللَّهَ ۚ إِنَّ اللَّهَ تَوَّابٌ رَحِيمٌ ﴿۱۲﴾

نو تاسو خو بد ګنړئ او ویره کوئ دَ الله تعالیٰ نه یقیناً الله تعالیٰ توبه قبلوونکے رحم کوونکے دے.

نو دا جائز دے. بِئْسَ الِاسْمُ الْفُسُوقُ بَعْدَ الْإِيمَانِ الاسم نه مراد لقب دے الفسوق بدل دے دَ الاسم نه په تقدیر ذو سره یعنی هغه نوم چه په هغې کښې صفت دَ فاسق کیدلو دے یا دَ اسم معنیٰ مصدری ده التسمیة (نوم ذکر کول) ته او مراد ترینه مسخره او لمز او تنابز دے واړه دی. الْفُسُوقُ یو مقصد دا دے چه هغه نوم چه دلالت کوی په فسق باندے یعنی فاسق منافق یهودی نصرانی ویل. بَعْدَ الْإِيمَانَ یعنی روستو دَ ایمان راوړلو نه دا نومونه مؤمن ته ویل ډیر بد کار دے. دویم مقصد دَ الفسوق دا دے چه دا نومونه مؤمن ته ذکر کول سبب دَ فسق او دَ ګناهګارئ دی. او په حدیث صحیح کښې نقل دی چا چه یو رور ته اُوویل اے کافره نو په دے سره یو دَ دے دواړو نه اخته شو که هغه سړی کښې کفر وی نو درست ده او که نه وی نو دا خبره په ویونکی باندے واپس راګرځی. وَمَنْ لَمْ يَتُبْ فَأُولَٰئِكَ هُمُ الظَّالِمُونَ مراد دَ توبے نه شرعی توبه ده په هغې کښې یو شرط دا دے چه دَ چا بے عزتی ئې کړے ده دَ هغه نه به معافی هم غواړی او دا جمله دلیل دے چه دَ یو مسلمان بے عزتی او سپک والے ظلم او ګناهِ کبیره دے.

سلا دا شپږم ادب ذکر کوی او په دے کښې نور درے قسمه څیزونو نه منع کوی چه هغه هم سبب دَ فساد او دَ اختلاف پیدا کیدلو دی او دَ یو مسلمان توهین او سپک والے دے او بل په تکبر باندے دلالت کوی او دا ټول ګنده خصلتونه دی چه دَ مسلمان دَ شان سره نه ښائیږی. مخکښې ایت کښې هغه څیزونه ذکر وو چه مخامخ دَ مسلمان دَ سپک والی اسباب وو او په دے کښې دا سے څیزونه ذکر کوی چه پټ شا دَ هغه دَ سپک والی اسباب دی او دا درے هم په خائسته ترتیب سره دی اول بدګمانی کول دی چه کیدے شی چه پیدا انسان کښې به نقصانونه وی نو بیا دَ هغه نقصانونو تجسس او لټول شورو کړی نو بیا دَ هغې پټ شا ذکر کوی چه هغه غیبت کول دی. اجتنبوا په دے کښې اشاره ده چه دا روستو خصلت پلیت او ګنده دے دَ هغې نه دا سے اجتناب پکار دے لکه اجتناب کول دَ نجاست نه كَثِيرًا مِّنَ الظَّنِّ یو هم شه چه انسان کښې دا سے حال (پاتے په بل مخ)

يَا أَيُّهَا النَّاسُ إِنَّا خَلَقْنَاكُم مِّن ذَكَرٍ وَأُنثَىٰ وَ

اے خلقو ! یقیناً موږ پیدا کړی يُ تاسو د يو نارينه او د يو زنانه نه او

پیدا شی چه د یو خیز په باره کښ نه د خیر حکم کولے شی او نه د شر او دا رنګ هیڅ حکم په هغه باندے کولے نشی دواړه طرفو ته ورته یو شان وی نو دے حالت ته شک ویلے کیږی په هغه باندے په هیڅ صورت کښ عمل کول جائز نه دی بلکه حدیث صحیح کښ وارد دی چه د شبهاتو او مشتبهاتو نه ځان بچ کړے او کله په انسان کښ دا سے حال پیدا شی چه یو طرف ته د حکم کولو ترجیح ورکوی لیکن بل طرف ته یُ هم مرجوح خیال وی نو راجح طرف ته ظنّ (ګمان) ویلے کیږی او مرجوح طرف ته وهم ویلے کیږی۔ وهم خو د وسوسے په شان وی هغے ته خو هیڅ اعتبار نیشته او د ظن په باره کښ روستو تفصیل راځی او کله چه دا سے حال وی چه یو طرف باندے دا سے حکم کولے شی چه د بل طرف ورته هیڅ وهم او خیال هم نه راځی نو هغے ته یقین ویلے کیږی هغه خو درجه د ایمان ده په شرعیاتو کښ۔ بیا پوهه شه چه ظنّ په قرآن کښ په مختلفو صیغو سره نهه شپیته کرته ذکر کړے شوے دے او د هغے مختلف معنے او حکمونه دی۔ اوله معنیٰ ظن په معنیٰ د یقین سره دے لکه په سورة بقره ۴۶ او سورة الحاقه ۲۰ چه د ظن نه روستو اَنّ په شد سره ذکر وی نو په معنیٰ د یقین سره وی او دا قاعده اکثری ده۔ دویمه معنیٰ ظن په معنیٰ د ګمان کولو دے چه معنیٰ مشهوره ده لکه په سورة بقره ۲۳۰ جن ۵ کښ۔ دریمه معنیٰ خیال غیر اختیاری لکه په لکه په سورة انبیاء ۸۷ او سورة یوسف ۴۲ کښ او دا ټنا دے په یو تفسیر باندے په دے دواړه آیاتونو کښ۔ او څلورمه معنیٰ ظن په معنیٰ د دروغ ویلو سره دے دا هر کله چه په مقابله د حق کښ وی لکه چه قرطبی ویلے دی په تفسیر د سورة بقره ۷۸ کښ او د ابن الانباری نه یُ نقل کړیدی "چه عرب لفظ د ظن په معنیٰ د یقین او د شک او د کذب کښ استعمالوی"۔ پنځمه معنیٰ ظن په معنیٰ د اجتهاد کولو دے لکه سورة ص ۲۴ کښ۔ او شپږمه معنیٰ ظن په معنیٰ د تهمت لګولو دے لکه په دے ایت کښ قرطبی په دے کښ معنیٰ د تهمت لیکلے ده۔ او دا رنګ ظن قرآن کریم دوه قسمه ذکر کړے یو ظن محمود لکه سورة نور ۱۲ کښ سورة ص ۲۴ او نور آیاتونو کښ هم دی او دویم ظن مذموم دے لکه سورة انشقاق ۱۴ (ظن د بعث بعد الموت) او سورة فصلت ۲۲ (ظن د علم د الله تعالیٰ) او سورة جن ۷ (ظن د بعث د نبی ته) او سورة فتح ۱۲ (ظن سوء او انکار د غلبے د رسول او صحابه ته) او سورة احزاب ۱۰ (ظن د اهل نفاق) او سورة

جَعَلْنٰكُمْ شُعُوْبًا وَّقَبَآئِلَ لِتَعَارَفُوْا ؕ اِنَّ

(او جوړ کړی یئ موږ تاسو خاندانونه او قبیلې دَ دے دَپاره چه یو بل او پیژنئ یقیناً)

جاثیه ۳۲ (ظن انکار دَ قیامت) او سورة اعراف ۲۷ (پیغمبر ته کاذب ویل) او سورة حج ۱۵ (نصرت نه کول دَ الله تعالیٰ دَ رسول سره) او سورة بقره ۷۸ (ظن په مقابل دَ حق کښې) او سورة العمران ۱۵۴ (ظن دَ جاهلیت) او سورة نساء ۱۵۷ (ظن دَ قتل دَ عیسٰی علیه السلام) او سورة ص ۲۷ (ظن دَ باطل په خلق دَ اسمانونو او زمکے باندے) او په سورة انعام ۱۱۶ (اتباع د ظن په شرکیاتو کښې). هرکله چه ظن مذموم دَ منافقانو او دَ کافرانو مشرکانو کار دے او هغوی ډیر دی او دا رنګ بغیر دَ دلیل نه په چا باندے تهمت لګول دا هم ډیر موجود دی نو دَ دے وجے نه کَثِیْرًا یئ او فرمائیل او دَ کافرانو منافقانو دَ تشبیه نه یئ منع او کړله.

اِنَّ بَعْضَ الظَّنِّ اِثْمٌ سوال:- مخکښې یئ کَثِیْرًا لفظ سره ذکر کړو او امر دَ اجتناب یئ ذکر کړو هغه دلیل وو چه ډیر ګمانونه ګناه دے او په دے جمله کښې یئ بَعْضَ لفظ ذکر کړو چه دلالت کوی په کموالی باندے؟

جواب په څو وجوهو سره دے اوله وجه دا ده چه بَعْضَ مطلق نکړے ته ویلے کیږی که لګه وی او که ډیره وی هاں په دے لفظ کښې اشاره ده چه بعض ظن محمود دے لکه چه مخکښې ذکر کړے شو. دویمه وجه دا ده چه اکثر ګمانونه بے اختیاره په زړه کښې پیدا کیږی بیا روستو څوک دَ هغے مطابق عقیده او عمل او کړی او څوک یئ پریږدی نو په اِجْتَنِبُوْا کښې احتیاط کولو ته اشاره وه چه احتیاط کوئ چه بے اختیاره ګمانونه مُتَمّو ستاسو زړونو کښې رانشی او هرکله چه عقیده او عمل په هغے باندے بعضے خلق کوی او بعضے نه کوی او بعضے باندے عمل کول خیر وی او بعضے باندے عمل کول ګناه او شر وی نو روستو جمله کښې بَعْضَ لفظ ذکر کړو. او نیشا پوری په تفسیر کښې ویلے دی چه دَ ظن څلور قسمونه دی. ۱ واجب لکه ښه ګمان کول په الله تعالیٰ باندے او په مؤمنانو باندے ۲ حرام لکه بد ګمان کول په الله تعالیٰ باندے او په نیکانو مؤمنانو باندے چه ښکاره علامت دَ بدئ پکښې نه وی او په دے ایت کښې هم دا قسم مراد دے ۳ مستحب لکه مؤمن فاسق باندے ښه ګمان کول ۴ مباح لکه ظن کول په مسائل اجتهادیه کښې. او تفسیر روح المعانی کښې ذکر دی چه ظن دوه قسمه دے ۱ اختیاری هغه منع دے ۲ غیر اختیاری نو مراد دَ منعے نه عمل کول په مقتضا دَ ګمان باندے دی یا کوشش کول دَ زائل کولو چه ظن غیر اختیاری دے سر پاتے په بل مخ)

وَلَا تَجَسَّسُوْا هرکله چه دَ بدګمان او دَ تهمت لګولو ته رد سترګو دا انسان کوشش کوی چه په دغه بل انسان کښې عیبونه او لټوی نو دَ هغې نه منع کوی او په حدیث صحیح کښې راغلی دی "ولا تجسّسوا ولا تحسّسوا". دا دَ اخفش نه نقل دے چه په دے دواړو کښې زیات فرق نیشته او نورو اهل لغت پکښې فرق په څو وجوهو سره کړے دے. اوله وجه چه تجسُّس عیبونو لټولو ته ویلے کیږی او تحسُّس په حواسو سره معلومولو ته ویلے کیږی. دویمه وجه تجسُّس دَ بل چا دَپاره جاسوسی کول دی او تحسُّس دَ خپل ځان دَپاره دَ چا عیبونه معلومول دریمه وجه تجسُّس همیشه په شر کښې استعمالیږی او تحسُّس کله په خیر کښې او کله په شر کښې استعمالیږی. په خیر کښې استعمال لکه سورة یوسف ۸۷ کښې او په شر کښې استعمال لکه په دے مذکوره حدیث کښې دے او امام اوزاعی ویلی دی چه تجسُّس لټول دَ یو خیز ته ویلے کیږی او تحسُّس دَ چا غوږ ساتلو ته کول دی چه هغوی وریاندے خفه کیږی او دَ دے جملے په تفسیر کښې قرطبی ډیر واقعات لیکلی دی کتل یې فائده مند دی.

وَلَا يَغْتَبْ بَّعْضُكُمْ بَعْضًا هرکله چه بعض انسان دَ چا عیب معلوم کړی نو بیا دغه عیب دَ هغه پسې شا ذکر کوی دَ هغه دَ بے عزته کولو دَپاره نو په دے جمله کښې دَ هغې نه منع کوی. دَ حدیث صحیح مضمون دے چه "غیبت دا دے چه په یو سړی کښې څه نقصان موجود وی او بل انسان یې دَ هغه په غائب والی کښې ذکر کوی او هغه سړے پرے خفه کیږی او که عیب پکښې نه وی او ذکر کوی په عیب سره نو دا خو بهتان دے".

هغه هم ګناه کبیره دے. دَ حسن بصری نه نقل دے چه دَ غیبت درے طریقے دی او په کتاب الله کښې دَ هغې نه منع ذکر ده اول غیبت چه دَ یو رور په باره کښې هغه نقصان ذکر کوے چه په هغه کښې موجود وی. دویمه طریقه دا ده چه دَ یو عیب په باره کښې درته خبر درا ورسیږی او هغه ذکر کوے او دیته "افک" هم وائی لکه ۳ بهتان دے چه ذکر کوے هغه نقصان چه په هغه کښې نه وی لکه په دے قول دَ الله تعالیٰ کښې ولا تقف ما لیس لك به علم (اسراء) او دا صیغه دَ نهی ده. او نور تاکیدات چه وړسته ذکر کیږی او دا رنګ احادیث صحیحه چه دَ غیبت په منعه کښې وارد دی دا ټول دلالت کوی چه غیبت کول ګناهِ کبیره دے.

فائده:- دَ غیبت په معنیٰ کښې دا ذکر شوه چه "هغه سړے پرے خفه کیږی" نو معلوم شوه که یو سړے خپل یو عیب عیب نه ګڼړی او دَ هغې په ذکر کولو نه خفه کیږی نو هغه ذکر کول او په هغې باندے دَ حدودِ شرعیه دَ لاندے رد کول غیبت نه دے او دا مراد دے دَ قول دَ حسن بصری چه دَ بدعتی غیبت کول جائز دی. او دا رنګ هغه فاسق چه خپل فسق ښکاره کوی. او دا رنګ مدعی لره جائز دی چه دَ مدعیٰ علیه

هغه نقصان (دَ قاضي په مخکښ) ذکر کړي چه دَ کوم په باره کښ دعویٰ کوي ځکه چه مقصد دَ مدعي (صادق) دَ هغه سړي خفه کول نه دي بلکه خپل حق ثابتول ئې مقصد اصلي دے اودا رنګ په علم دَ اسماء رجال کښ دَ یو راوي عیبونه ذکر کول دا غیبت نه دے ځکه چه په هغې کښ مقصد دَ هغه سړي خفه کول نه دي مراد بلکه دَ دین حفاظت دے او دا رنګ دَ ظالم بادشاه دَ ظلم ذکر کول په دے مقصد چه دَ هغه دَ ظلم نه خلق بچ شي دا هم غیبت نه دے په دے ټولو کښ قصد کول دَ خیر زیات دي دَ هغه سړي دَ خفه کولو نه.

يَعْضُكُمْ بَعْضًا په دے لفظ کښ اشاره ده چه غیبت په اکثرو مجلسونو کښ موجود وي اودا رنګ هغه یو سړے چه غیبت کوي نو هغه بل چه خبر شي نو هغه هم دَ ده غیبت کوي دَ دے وجے نه دا لفظ ئې ذکر کړو - اَيُحِبُّ اَحَدُكُمْ اَنْ يَّاْكُلَ لَحْمَ اَخِيْهِ مَيْتًا دا منع ده دَ غیبت کولو نه په طریقه دَ مثال او دَ تشبیه سره یعنې عفت دَ انسان ئې مشابه کړے دے دَ غوښے دَ بدن دَ هغه سره. ځکه چه کله دَ یو انسان عزت پریکیږي نو دَ هغه زړه ته دا سے درد رسیږي هغه ته دَ هغه دَ تن نه په غوښه پریکولو سره بیا حالت دَ غائب کیدلو ئې مشابهه کړے دے دَ حالت دَ مرګ سره لکه چه مړے دَ انسانانو دَ خبرو ته خبر نه دے اونه اوري نو دا رنګ غائب انسان هم نه څه اوري او نه خبر دے، او په لفظ دَ مَيْتًا راوړلو کښ دفع دَ یو اعتراض ده که اوویلے شي چه انسان ته خو په بے عزتۍ سره هله درد رسیږي چه دَ هغه مخ بے عزتي اوکړے شي لیکن چه پټې شا بے عزتي کول وي او هغه خبر نه وي نو دَ هغه زړه ته خو درد نه رسیږي ؟ نو جواب ئې اوکړو لکه چه دَ مړي دَ بدن نه غوښه پریکیږي او هغه ته خو درد نه رسیږي لیکن سره دَ دے نه دا دَ هغه بے عزتي ګڼړلے کیږي - او په دَ دے لفظ کښ بله فائده دا ده چه دَ مُردارے خوراک صرف په حالت دَ مجبورئے کښ حلال دے او چه دَ هغې نه ادنیٰ څیز ملاویږي نو دَ مُردارے نه ځان بچ کول ضروري دي لکه چه مُرداره بیږه او غوا دي او مړ انسان وي نو دَ بیږے یا دَ غوا نه به خوراک کوي لیکن دَ انسان دَ بدن نه به خوراک نه کوي دا رنګ که چرے دَ یو ضرورت او حاجت دفع کولو بله طریقه موجود وي نو غیبت به نه کوي. فَكَرِهْتُمُوْهُ په دے ضمیر کښ څلور احتمالونه دي اول دا چه دا ضمیر خوراک (اكل) ته راجع دے او دویم دا چه غوښے (لحم) ته راجع دے دریم دا چه مړي (میت) ته راجع دے یعنې مړے چه وجود ئې متغیر او بدبویه شي نو ستاسو ترینه ضرور کرکه کیږي نو په دے کښ ډیره مبالغه ده. څلورم دا چه غیبت کولو ته راجع دے (چه دَ لا یغتب په ضمن کښ دے) یعنې که ستا څوک غیبت اوکړي نو بد ئې ګڼړے نو دَ دے وجے نه دَ بل چا غیبت هم بد اوګڼړه - او ابن کثیر په باره دَ قباحت دَ ربا کے په بل مخ )

أَكْرَمَكُمْ عِندَ اللَّهِ أَتْقَاكُمْ ۚ إِنَّ اللَّهَ عَلِيمٌ

ډیر عزتمند ستاسو نه دَ الله تعالیٰ په نیز ډیر تقویٰ دار دے یقیناً الله تعالیٰ علم والا دے

خَبِيرٌ ﴿١٣﴾ قَالَتِ الْأَعْرَابُ آمَنَّا ۖ قُل لَّمْ تُؤْمِنُوا

خبر لرونکے دے۔ وائی بانډچیان ایمان راوړے دے مونږ ته اوایه ایمان نه دے راوړے تاسو

غیبت کولو کښې ډیر احادیث او واقعات ذکر کړے دی هغه اوګورئ۔ او دَ غیبت کولو نه توبه کول دا دی چه آئنده دَپاره غیبت کول پریګدی او که امکان لری نو دَ هغه سړی نه دِ معافی اوغواړی او که معافی نشی غوختلے نو په کوم مجلسونو کښې چه دَ هغه بد ئې ویلے وی نو په هغې کښې دِ دَ هغه صفت اوکړی او چه څوک دَ هغه غیبت کوی نو هغه دِ منع کړی۔ اِنَّ اللّٰهَ تَوَّابٌ رَّحِیْمٌ دَ تیر شوی آیت په اول کښې صیغه دَ نهی وه (لا یسخر) نو دَ هغې په ارتکاب سره انسان ظالم کیږی نو دَ هغه آیت په آخر کښې الظالمون ذکر کړو او دَ دے آیت په اول کښې صیغه دَ امر (اجتنبوا) ده او دَ امر په امتثال سره (په عمل کولو) دَ الله تعالیٰ دَ طرف نه رحمتونه راځئ دَ دے وجے نه ئې په تواب رحیم سره ختم کړو۔

سلا په دے آیت کښې اووم ادب ذکر کوی چه سبب دَ اتحاد او اتفاق دے او دَ تفرق او دَ فساد نه دَ بچ کیدلو خائسته طریقه ده حاصل دا دے (سره دَ ربط دَ ماقبل نه) چه یو انسان دَ بل انسان سپک والے او بخیله تکبر دَ دے وجے نه کوی چه زما جنس جُدا دے نو دا غلطه ده ځکه چه ټول دَ یو مور او پلار نه پیدا دی او یا به تکبر دَ نسب دَ وجے نه کوی نو نسب بغیر دَ تقویٰ نه هیڅ سبب دَ عزت نه دے بلکه صرف دَ تعارف او دَ پیژندګلو دَپاره دے هاں عزت صرف په تقویٰ سره دے او متقی سړے دَ بل چا سپک والے او بخیله تکبر نه کوی بلکه دَ تقویٰ دَ وجے دَ تیرشوی ناکاره خصلتونو نه ځان بچ کوی۔

یَآ اَیُّهَا النَّاسُ په دے ادب کښې عام خطاب ئې ذکر کړو ځکه چه هم جنس کیدل او تفاوت دَ نسبونو په مؤمنانو پورے خاص نه دے کافران هم ټول دَ آدم او حواء علیهما السّلام اولاد دی او مختلف نسبونه پکښې شته دے۔ مِنْ ذَكَرٍ وَّأُنْثٰى مراد دَ دے نه آدم او حواء علیهما السلام دی یا هر مور او پلار دی لیکن اول قول اصح دے او دا دلیل دے چه دَ بچی پیدائش دَ اوبو دَ پلار او مور دواړو نه دے لکه سورة طارق ۷ کښې تصریح دَه او په کوم آیاتونو کښې چه ماء مفرد ذکر دے لکه سورة مرسلات ۲۰ او قیامه ۳۷ نو مراد دَ مفرد نه تثنیه ده یعنی دوه او به دَ مذکر او مؤنث لکه تفسیر قرطبی کښې ذکر دی۔

**وَلٰكِنْ قُوْلُوْٓا اَسْلَمْنَا وَلَمَّا يَدْخُلِ الْاِيْمَانُ فِيْ**

او لیکن وایئ چه مونږ اسلام قبول کړیدے او تراوسه نه دے داخل شوے ایمان په

وَجَعَلْنٰكُمْ شُعُوْبًا وَّقَبَآئِلَ اول ئې خَلَق ذکرکړو او دلته ئې جعل ذکرکړو ځکه چه اصولو کښې اکثر خَلَق ذکر کیږی او په اوصافو او فروعو کښې جعل ذکر کیږی لکه سورة انعام سـ۱ کښې هم داسے دی. شُعُوْبًا جمع دَ شعب ده لرے نیکو ته ویلے کیږی لکه چه په عربو کښې ربیعه، مضر، اوس، خزرج دَ او شعب دَ اضداد ده دے جمع او تفرق دواړو ته ویلے کیږی ځکه چه دوی په یو اصل کښې متفرق نسلونه جمع شوے وی. وَقَبَآئِلَ جمع دَ قبیلة ده دَ شعب نه لاندے نیکونو ته منسوب وی لکه چه کنانه یو قبیله ده او داسے اُوه طبقات اهلِ علمو لیکلے دی اول شعب بیا قبیله بیا عماره بیا بطن بیا فخذ بیا فصیلة (دا په سورة معارج سـ۱۳ کښې ذکر ده) بیا عشیره (لکه سورة توبه سـ۲۴ کښې ذکر ده). چا دَ شعوب او قبائل نور فرقونه هم ذکر کړے دی. او دا دوه قسمونه ئې خاص کړل په ذکر سره ځکه چه اول تعارف دَ دے نه شورو کیږی بله وجه دا ده چه فخر په نسبونو کښې په دے دووُ سره وی په لاندے خاندانو سره فخر نه کیږی لکه په دے ملک کښې ویلے کیږی دَ فخر په طور سره چه زه پښتون یم یا سیّد یم لاندے خاندان نه ذکر کوی او دا جمله دلیل دے چه تقسیم دَ نسبونو دَ الله تعالیٰ اختیار کښې دے دَ دے وجے نه په حدیث صحیح کښې په هغه چا باندے لعنت ویلے دے چه څوک خپل نسب بدلوی او دَ خپل اَبْ نه سیوا بل اَبْ ته نسبت کوی. لِتَعَارَفُوْا دا حکمت دے دَ پاره دَ تقسیم دَ نسبونو چه خپل نسبونه او پیژنئ او دَ هغے دَ وجے نه صله رحمی اوکړئ. حدیث دَ ترمذی کښې راغلے دی "چه رسول الله صلّی الله علیه وسلّم فرما ئیلے دی چه دَ خپلو نسبونو نه دومره ایزده کړئ چه صله رحمی پرے کوئ". دا ښکاره دلیل دے چه نسبونه دَ پاره دَ فخر او تکبّر او دَ پاره دَ عزت او شرافت نه دی نو فخر کول په نسب باندے دا خوئ دَ جاهلیت والو دے او حدیث دَ مسند بزار کښې (چه ابن کثیر هم ذکر کړے دے) راغلے دی "چه رسول الله صلّی الله علیه وسلّم فرمائیلے دی چه تاسو ټول دَ خاورو نه پیدا شوی یئ او ضرور منع دِ شی هغه کسان چه فخر کوی په پلارانو (نسبونو) باندے یا به دوی ډیر سپک شی په نیز دَ الله تعالیٰ دَ گونګټانو نه".

اِنَّ اَكْرَمَكُمْ عِنْدَ اللّٰهِ اَتْقٰكُمْ دا علت دَ مقدّر (ربط) کلام دے یعنی نه دے نسب دَ پاره دَ فخر او عزت ځکه چه ان اکرمکم الخ یعنی دَ الله تعالیٰ په نیز سبب دَ اوچت والی دَ مرتبے او دَ کرامت صرف تقوىٰ ده. او قرطبی ویلی دی چه تقوىٰ دَ الله تعالیٰ (پلټے په بل مخ)

قُلُوْبِكُمْ ۖ وَاِنْ تُطِيْعُوا اللّٰهَ وَرَسُوْلَهٗ لَا يَلِتْكُمْ مِّنْ

زړونو ستاسو کښ او که چرے تابعداري کوئے تاسو د الله تعالیٰ او د رسول دهغه نو نیمگړے به نکړي ستاسو د

اَعْمَالِكُمْ شَيْـًٔا ؕ اِنَّ اللّٰهَ غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ ﴿۱۴﴾ اِنَّمَا الْمُؤْمِنُوْنَ

عملونو نه هیڅ یقینًا الله تعالیٰ بخښونکے رحم کوونکے دے ۔ یقینًا مؤمنان

د حدودو په امر او نهي کښ لحاظ کول دي او ځان موصوف کول په هغې چه الله تعالیٰ د هغې امر کړے دے او ځان بچ ساتل د هغې نه چه الله تعالیٰ د هغې نه نهي (منع) کړے ده۔ اَكْرَمَ صیغه د اسم تفضیل ئے د دے وجے نه ذکر کړے ده چه په نفس کرامت (عزت) کښ ټول انسانان شریک دي لکه په سورۃ اسراء ۷۰ کښ ذکر شوے دي او لفظ د عِنْدَ اللّٰهِ کښ اشاره ده چه د خلقو په نیز عزتمند کیدلو ته اعتبار نیشته د الله تعالیٰ په نیز عزت حاصلول لوئے مقصد دے او په عِنْدَ کښ معنیٰ د قربت ده۔ او اَتْقٰىكُمْ اسم تفضیل کښ اشاره ده چه د تقویٰ هم مختلف مرتبے دي نو کرامت عند الله هم په تفاوت سره دے۔

سوال :۔ علم سبب د شرافت او د لوئې مرتبے دے په دلیل د نورو نصوصو سره او دلته ئے تقویٰ ذکر کړه د دے څه تطبیق دے ؟

جواب :۔ اول دا چه تقویٰ په اصل کښ عمل کول دي په علم باندے نو اشاره ده چه صرف علم (بے عمله) سبب د کرامت نه دے بلکه د علم سره عمل ضروري دے۔ دوېم دا چه علم سبب د تقویٰ دے لکه په سورۃ فاطر ۲۸ کښ دي او تقوی سبب د کرامت دے نو دلته ئے سبب قریبه ذکر کړو چه هغه مقصدي دے۔ او دا ایت دلالت کوي چه په نکاح کښ کفاءت د دین په لحاظ سره مقدم دے او حدیث صحیح کښ هم ذکر دي "چه د ښځے سره د (یو) د څلورو وجو نه نکاح کیدے شي د مال وجے نه، د جمال د وجے نه د نسب د وجے نه او د دین د وجے نه نو ته ځان کامیاب کړه په دین والا باندے او روسنو د دیندارئے نه کفاءت د نسب په نیز د بعضے علماؤ معتبر دے چه په خپل محل کښ د دے د پاره دلیلونه ذکر کیږي۔

سکله ربط د دے د مخکښ مضمون سره دا دے چه په دے ایاتو ذکر کړے شوے باندے خوک عمل کوي صرف ظاهري عملونه (مونځ او دس وغیره) کوي او دعویٰ د ایمان کوي نو هغه منافق دے په هغه باندے اعتبار مه کوئے او ربط د مخکښ ایات سره دا دے

# اَلَّذِيْنَ اٰمَنُوْا بِاللّٰهِ وَرَسُوْلِهٖ ثُمَّ لَمْ يَرْتَابُوْا وَ

هغه کسان دي چه ايمان ئي راوړے دے په الله تعالیٰ او رسول دَ هغه باندې بيا ئي هيڅ شک نه دے کړے او

چه منافقانو ويل چه زمونږ نسب هم اوچت دے او ايمان والا هم يو او تقوىٰ خو په ايمان سره دَه نو مونږ رَدَ صحابه کرام و نه) غوره يو نو په دے ايت کښ دَ هغوي ردکوي او زجر دے په مجرّد دعوىٰ دَ ايمان سره چه په حقيقت کښ ايمان نه وي صرف عمل وي نو هغے ته اعتبار نيشته۔

قَالَتِ الْاَعْرَابُ اٰمَنَّا دا قول دَ بعض بانډچيانو دے چه هغه په سورة توبه ۹۷ ۹۸ کښ ذکر دي او مقصد په دے کښ تحذير دے ټول امت ته دَ دوي دَ طريقے نه او دعوىٰ په اٰمَنَّا سره ئي دَ پاره دَ دنيوي اغراضو کوله او اشاره ئي کوله چه مونږ تقوىٰ والا يو نو اکرم يو۔ قُلْ لَّمْ تُؤْمِنُوْا دا نفي داسے ده لکه په سورة بقره ۸ کښ تيره شويده او دليل دَ عدم ايمان دَ دوي مخالفت کول دي دَ دوي دَ ادابو دَ دے سورت نه، خصوصاً اول او دويم ادب ځکه چه دَ هغه دواړو مخالفت کول مستلزم وو (حبطِ عمل) او کفر لره۔ وَلٰكِنْ قُوْلُوْٓا اَسْلَمْنَا مراد دَ دے ظاهري انقياد او بعض عملونه کول دي دَ پاره دَ حفاظت دَ ځانونو او مالونو خپلو او دَ پاره دَ حصول دَ غنيمتونو او زکوٰة۔ او دا دليل دے چه اسلام دوه قسمه دے اول صرف استسلام او ظاهري انقياد دے بغير دَ تصديق دَ زړه نه او دويم قسم انقياد په ژبه او زړه او اندامونو سره دے لکه په قول دَ ابراهيم عليه السّلام کښ اسلمت لرب العالمين بقره ۱۳۱ او ان الدين عند الله الاسلام العمران ۱۹ او داسے تقسيم امام بخاري په ترجمة الباب کښ ذکر کړے دے (بَابٌ اِذَا لَمْ يَكُنِ الْاِسْلَامُ عَلَى الْحَقِيْقَةِ وَكَانَ عَلَى الْاِسْتِسْلَامِ اَوِالْخَوْفِ مِنَ الْقَتْلِ لِقَوْلِهٖ تعالىٰ (قَالَتِ الْاَعْرَابُ اٰمَنَّا قُلْ لَّمْ تُؤْمِنُوْا وَلٰكِنْ قُوْلُوْٓا اَسْلَمْنَا) فَاِذَا كَانَ عَلَى الْحَقِيْقَةِ فَهُوَ عَلٰى قَوْلِهٖ تَعَالٰى (اِنَّ الدِّيْنَ عِنْدَ اللّٰهِ الْاِسْلَامُ (کتاب الايمان) او دا ايت ښکاره دلالت کوي چه په صرف عمل کولو بغير دَ يقين او تصديق قلبي نه انسان مؤمن نه جوړيږي۔ وَلَمَّا يَدْخُلِ الْاِيْمَانُ فِيْ قُلُوْبِكُمْ دا علت دے دَ دے قول چه لَمْ تُؤْمِنُوْا او مراد دَ ايمان نه تصديق او يقين دے او محل دَ هغے قلب دے او دا دليل دے چه صرف اقرار په اٰمنّا او په کلمه دَ توحيد سره بغير دَ تصديق قلبي نه ايمان، ايمانِ شرعي نه دے۔ خطيب شربيني نقل کړيدي چه عام خلق غفلت والا په نن زمانه کښ په داسے حالت کښ دي۔ وَاِنْ تُطِيْعُوا اللّٰهَ وَرَسُوْلَهٗ دا جمله دليل دے چه اطاعت دَ الله تعالیٰ او دَ رسول الله صلی الله عليه وسلم علامت دَ صحيح ايمان دے۔ لَا يَلِتْكُمْ مِّنْ اَعْمَالِكُمْ شَيْئًا اشاره ده چه اطاعت دَ الله تعالیٰ او دَ رسول صلی الله عليه وسلم سبب دَ قبوليت دَ عملونو دے او مخالفت کول (پاتے په بل مخ)

جٰهَدُوْا بِاَمْوَالِهِمْ وَاَنْفُسِهِمْ فِىْ سَبِيْلِ اللّٰهِ ؕ

او جهاد ئې کړے دے په مالونو خپلو او نفسونو خپلو سره په لار د الله تعالیٰ کښ

اُولٰٓئِكَ هُمُ الصّٰدِقُوْنَ ۝۱۵ قُلْ اَتُعَلِّمُوْنَ اللّٰهَ بِدِيْنِكُمْ ؕ

دغه کسان دوی رشتني دي ۔ ته اووايه آيا خبروركوئ تاسو الله تعالیٰ ته په دين خپل سره

وَاللّٰهُ يَعْلَمُ مَا فِى السَّمٰوٰتِ وَمَا فِى الْاَرْضِ ؕ وَاللّٰهُ

او الله تعالیٰ عالم دے په هغه څه چه په آسمانونو او هغه څه چه په زمکه کښ دی او الله تعالیٰ

بِكُلِّ شَىْءٍ عَلِيْمٌ ۝۱۶ يَمُنُّوْنَ عَلَيْكَ اَنْ اَسْلَمُوْا ؕ

په هر څيز باندے پوهه دے ۔ زباد نه کوی دوی په تا باندے چه دوی اسلام راوړے دے

د دوی سبب د نقصان یا د برباد ئې د ثواب دے ۔ او هر کله چه اطاعت د الله تعالیٰ او د رسول الله صلی الله علیه وسلم یو شے دے د دے وجے نه لَا يَلِتْكُمْ ئې مفرد صيغه ذکر کړے ده اِنَّ اللّٰهَ غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ اشاره ده چه اطاعت د الله تعالیٰ او د رسول الله صلی الله علیه وسلم سبب د مغفرت او د رحمت دے ۔

سـ۱۵ـ په دے آيت کښ ذکر د حقيقت د ايمان شرعی دے په رد د منافقانو کښ چه هغوی دعوئ د ايمان کوی ليکن دروغژن دی په دے دعوئ کښ ۔ ثُمَّ لَمْ يَرْتَابُوْا مراد د ارتياب (شک) نه داسے علونه کول دی چه علامت د کفر او د شرک وی چه بعضے د هغے نه مخالفت کول د اداپو د دے سورت دی ۔ وَجٰهَدُوْا بِاَمْوَالِهِمْ الخ مراد د دے هر هغه محنت او کوشش کول دی چه د ايمان په تقاضا سره وی او مال یا نفس پکښ خرچ کيږی او مالونه ئې دلته مخکښ ذکر کړل اشاره ده چه منافق سړے عمل په بدن سره کله کله کوی د ريا وغيره د پاره ليکن خرچ د مال فی سبيل الله کښ ډير بخيل وی ۔ اُولٰٓئِكَ هُمُ الصّٰدِقُوْنَ په ديکښ تعريض دے په هغه چا باندے چه دا شرطونه د ايمان په چا کښ موجود نه وی نو هغه په دعوئ د ايمان کښ دروغژن دے ۔

سـ۱۶ـ دا زجر دے منافقانو ته يعنی هر کله چه دعوئ د دوی په اٰمَنَّا سره د دروغو ده نو په اٰمَنَّا ويلو کښ د دوی دوه مقصدونه دی اول دا چه الله تعالیٰ خبر ورکوی په خپل ايمان سره دويم دا چه په رسول صلی الله علیه وسلم باندے احسان او زباد نه کوی نو په دے آيت کښ په اول مقصد د دوی باندے زور نه ورکوی ۔ وَاللّٰهُ يَعْلَمُ الخ په دے جمله او درو ستنئ

قُلْ لَّا تَمُنُّوْا عَلَيَّ اِسْلَامَكُمْ ۚ بَلِ اللّٰهُ يَمُنُّ عَلَيْكُمْ

ته اوايه زيادته مه كوئ په ما باندے دَ اسلام ستاسو بلكه الله تعالىٰ زيادته كوى په تاسو باندے

اَنْ هَدٰىكُمْ لِلْاِيْمَانِ اِنْ كُنْتُمْ صٰدِقِيْنَ ﴿۱۷﴾

دَ دے خبرے چه تاسو ته هدايت دَ ايمان كړے دے كه چرے تاسو رشتني يئ .

جمله كښ رد دَ شرك في العلم دے اوحرف دَ ما دلته دَ تعميم دَپاره دے. يعنى الله تعالىٰ چه په هرځيز باندے عالم دے نو هغه ته دَ دروغو دَ ايمان خبرولے وركوئ هغه خو ستاسو په دروغو باندے هم عالم دے.

فائده :- كه پيغمبر په هرځيز باندے عالم وے نو پكار وو چه په دے ايت كښ دَهغه ذكر هم الله تعالىٰ دَ ځان سره يوځائے كړے وے ليكن هغه په هرځيز عالم نه دے او عالم الغيب هم نه دے.

سلا دا يل زجر دے دَ منافقانو په دويم مقصد باندے چه په رسول صلى الله عليه وسلم باندے زيادته كول دى. اَنْ اَسْلَمُوْا (سوال) دوى خو دعوىٰ دَ امنّا كړے ده دَ اسلام ئے خو نه ده كړے ؟(جواب) دعوىٰ دَ ايمان متضمن ده دعوے دَ اسلام لره ځكه چه ايمان شرعى انقياد باطنى او ظاهرى دواړو ته شامل دے ليكن دلته ئے دَ اَسْلَمُوْا ذكر دَدے وجے نه اوكړو چه دوى په بعض عملونو كښ دَ نبى صلى الله عليه وسلم او صحابه كرامو سره ظاهرى شركت كوؤ لكه مونځ كول، جهاد كول وغيره او بيا به ئے په نبى صلى الله عليه وسلم احسان خيژوؤ چه مونږ ستا ملګرتيا كوؤ. لكه اوس هم بعض ناپوهان په سنت طريقے يو كار اوكړى نو بيا په خپل مشر يا استاذ باندے احسانونه خيژوى. بَلِ اللّٰهُ يَمُنُّ عَلَيْكُمْ اَنْ هَدٰىكُمْ لِلْاِيْمَانِ (سوال) په دوى كښ ايمان په حقيقت كښ موجود نه وو نو څه رنګ ئے دا اوفرمائيل ؟(اول جواب) دلته ئے حصول دَ ايمان دَ دوى نه دے ذكر كړے بلكه هدايت ايمان ته په راليږلو دَ رسول الله صلى الله عليه وسلم سره لكه چه سورة العمران سلا۱۶۴ كښ ذكر شوے دى.

(دويم جواب) مراد دَ لِلْاِيْمَانِ دا دے چه تاسو دَكوم ايمان دعوىٰ كوئے ( اګر چه په دروغه سره ده) نو دَ دے ايمان خود نه خو الله تعالىٰ كړے ده نو دَ هغه احسان منل پكار دى او دا ايت دليل دے چه دَ داعى الى الحق احسان دَ هغه په خلقو باندے دے.

فائده :- مَنّ اظهار دَ نعمت دے په بل چا باندے دَپاره دَ طلب دَ شكر كولو او دا دَ مخلوق دَپاره حرام دے لكه سورة بقره سلا۲۶۴ كښ ذكر دے ځكه چه دوى دَ رياتے په بل منځ)

إِنَّ اللَّهَ يَعْلَمُ غَيْبَ السَّمٰوٰتِ وَالْأَرْضِ ۚ وَاللَّهُ

یقینًا الله تعالیٰ پوهه دے په پټو څیزونو دَ اسمانونو او دَ زمکے او الله تعالیٰ

بَصِيرٌ بِمَا تَعْمَلُونَ ﴿١٨﴾ ع

لیدونکے دَ هغه کارونو دے چه تاسو ئے کوئے -



مخلوق ته دَ شکرکولو مطالبه اونیت اوکړی نو دَ الله تعالیٰ دَ طرف نه جزاء ته ملاویږی او الله تعالیٰ خو یِد لے اغستلوته محتاج نه دے صرف دَ بندګانو شکرکول دَ هغوی دَ فائدے دَپاره غواړی نو الله تعالیٰ له دَ مَنّ کولو حق شته دے -

خطیب شربینی ویلے دی "احسان زیادل چه دَ مخلوق دَ طرفه دی نو نعمت خړ کړی او چه دَ الله تعالیٰ دَ طرف نه وی نو نعمت مزیدارشی" او دا آیت دلیل دے چه انسان ته په هره درجه کښ هدایت یا نعمت ملاؤشی نو دَ الله تعالیٰ دَ طرف نه دِ اوګنړی او په هغے باندے دِ لوئی نه کوی - إِنْ كُنْتُمْ صَادِقِيْنَ اشاره ده چه رشتنے ایمان نعمت دَ الله تعالیٰ دے -

سـ۱۸ په دے کښ اشاره ده ردکولوته په منافقانو باندے یعنی اے منافقانو تاسو په دعویٰ دَ ایمان کښ صادق نه یئ ځکه چه الله تعالیٰ په غیبو باندے عالم دے نو ستاسو په زړونو باندے هم عالم دے او په دے آیت کښ رد دے په شرك فی العلم باندے په دوه طریقو سره اول داچه هرڅه چه پټ دی دَ مخلوق نه په اسمانونو او زمکو کښ نو الله تعالیٰ په هغے باندے عالم دے - دویم داچه مخلوق څه عملونه کوی ښکاره او پټ نو الله تعالیٰ په هغے باندے عالم او بصیر دے او دا دواړه صفتونه په هیڅ مخلوق کښ نشی موجود کیدلے یو صفت دَ علم غیب او دویم صفت دَ علم بِكُلِّ شَيْءٍ دا الله تعالیٰ پورے خاص دی -

ختم شو تفسیر دَ سورة الحجرات په فضل دَ الله تعالیٰ سره

الحمدلله -

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

## سُوْرَةُ قٓ

دَ دے سورت نه خلورم باب دے دَپاره دَ اثبات دَ قیامت او په دے کښ خلور سورتونه دی قٓ ، ذاریات، طور، نجم۔

**ربط** دَ دے سورت دَ مخکښ سورت سره په څو طریقو دے اوّله دا چه هرکله اداب دَ اتحاد دَ مؤمنانو دَپاره ذکر شول نو په دے سورت کښ دَ دغه ادابو دَ رعایت دَپاره تخویف ذکر کوی په راتللو دَ یوم الخروج ، یوم الوعید ، یوم الخلود سره۔ دویمه طریقه هرکله چه ذکر شو چه کرامت په سبب دَ تقویٰ سره دے نو په دے سورة کښ ذکر کوی شان دَ متقیانو۔ دریمه دا چه هر کله ذکر کړے شو حال دَ مؤمنانو او منافقانو نو په دے کښ ذکر کوی حال دَ کافرانو۔

**دعویٰ** دَ دے سورت اثبات دَ بعث بعد الموت دے په ذکر دَ خروج دَ مړو دَ زمکے نه په ۱۱ او ۴۲ کښ او په عذابونو دنیویه سره په تیر شوے قومونو باندے او اثبات دَ توحید دے په رد دَ شرك فی التصرف والعلم او په ذکر دَ خلورو اسماء حسنیٰ سره۔

**خلاصه** دَ دے سورت دا دَه چه دے تقسیم دے دوه بابونو ته اول باب تر ۱۷ پورے دے په دے کښ شهادت دَ قرآن ذکر کوی په اثبات دَ بعث بعد الموت باندے په ۱ کښ بیا زجرونه دی منکرینو ته په ۲ ۳ ۵ کښ بیا یو دلیل عقلی علمی او درے دلیلونه عقلیه تصرفی علوی وسطی او سفلی ذکر کوی دَپاره دَ اثبات دَ قیامت او هر دلیل مشتمل دے په درے خیزونو باندے بیا دعوی دَ سورت په ۱۱ کښ بیا ذکر دَ عذاب دے۔ په تیر شوے منکرینو باندے دَپاره دَ تخویف دَ موجوده خلقو په درے ایاتونو کښ بیا زجر دے په ۱۵ کښ۔

**تفسیر** ۱ قٓ دا دَ مقطعاتو نه دے په دے کښ ډیرو سورتونو کښ بحث تیر شوے دے۔ دلته یو قول دا دے چه په حرف قٓ باندے قسم ذکر کوی او هرکله چه (ربا تے په بل مخ)

مُّنۡذِرٌ مِّنۡهُمۡ فَقَالَ الۡكٰفِرُوۡنَ هٰذَا شَیۡءٌ عَجِیۡبٌ ﴿۲﴾

| ډېره ورکوونکی د دوی نه نو وائی کافران چه دا ناآشنا خیز دے۔ |
|---|

حرف مقسم بهٔ وی نو حرف قسم راوړلو ته ضرورت نه وی لکه دا. او کله چه مقسم بهٔ نور خیزونه بغیر د حروف مقطعات نه وی نو واو د قسم د پاره ذکر کیږی لکه والطور والصافات وغیره او په دے سورت کښ داسے الفاظ چه مشتمل دی په حرف د قاف باندے اته څلویښت دی نو دا هم وجه د مناسبت ده د حرف قاف سره په اول د دے سورت کښ.

او ابن کثیر هغه قول ذکر کړے دے چه چا ویلے دی چه مراد په دے سره کوهِ قاف غر دے نو بیا ئے ویلے دی چه دا د زنادِقو خبرے دی او په دے کښ چه کوم روایت د ابوحاتم رازی دے نو هغه اکثر منقطع دے. وَالۡقُرۡاٰنِ الۡمَجِیۡدِ دا هم قسم دے او تفصیل د قسم په قرآن باندے د سورة یٰس په اول کښ تیر شوے دے. الۡمَجِیۡدِ لوئے قدر والا، عزت والا، شرافت والا، ډیرو فائدو والا ته ویلے کیږی سورة یٰس کښ والقرآن الحکیم ذکر کړے وو ځکه چه په هغه سورت کښ د الله تعالیٰ ډیر حکمتونه ئے ذکر کړے وو او په دے سورت کښ د الله تعالیٰ د قدرت او د عظمت ذکر کوی. د دے قسم په جواب کښ ډیر اختلاف دے بعضو محذوف راویستلے دے چه لیبعثن (راپورته به کړے شی) ماردوا قولك بحجة (نه ده رد کړے دوی خبره ستا په دلیل سره) غوره دا چه دوستو آیت جواب قسم دے او بَلۡ هم په جواب قسم کښ ذکر کیدلے شی او په معنیٰ د قد سره رازی.

سـ۲ـ بَلۡ عَجِبُوۡۤا اَنۡ جَآءَهُمۡ دلته من پټ دے یعنی تعجب ئے د رسول د بشریت نه کړے دے لکه سورة تغابن سـ۶ـ کښ دی. یا متعجب منه (هغه خیز چه دوی ترے تعجب کړیدے) پټ دے یعنی من الخبر بالبعث (د خبر د دوباره ژوندنه) لکه چه روستو آیت کښ ذکر دے. او د اَنۡ جَآءَهُمۡ نه مخکښ لام پټ دے یعنی لان جاءهم نو دا وجه د تعجب شوه.

مُّنۡذِرٌ هر کله چه مقصد د سورة بعث بعد الموت ثابتول دی او دا مسئله د انذار (ویرے) ده د دے وجے نه صرف انذار ئے ذکر کړو. مِّنۡهُمۡ د دوی د جنس نه، دا ډیرو سورتونو کښ ذکر شویدی چه چا هلاتو په هر وخت کښ د بشریت د رسولانو نه انکار کړے دے.

فَقَالَ الۡكٰفِرُوۡنَ دا تفصیل د تعجب کولو دے او لفظ د کافرون سره ئے اشاره اوکړه د دوی قبیح حال ته. هٰذَا شَیۡءٌ غوره دا ده چه هذا سره اشاره ده بعث بعد الموت ته لکه روستو آیت کښ ذکر کوی بعض علماؤ ویلے دی چه اشاره ده توحید ته لکه سورة ص سـ۵ـ کښ او بعضو ویلے دی چه اشاره ده چه رسول بشر دے. عَجِیۡبٌ کوم کار

ءَاِذَا مِتْنَا وَكُنَّا تُرَابًا ۚ ذٰلِكَ رَجْعٌۢ بَعِيْدٌ ۞ قَدْ

ایا هرکله چه مونږ مړه شو او شو مونږ خاورې نو دا واپسی دَ عقل نه لرې ده . یقینًا

عَلِمْنَا مَا تَنْقُصُ الْاَرْضُ مِنْهُمْ ۚ وَعِنْدَنَا كِتٰبٌ

پوهه یو مونږ په هغه چه کموی زمکه دَ دوی نه او زمونږ سره کتاب دے

حَفِيْظٌ ۞ بَلْ كَذَّبُوْا بِالْحَقِّ لَمَّا جَآءَهُمْ فَهُمْ

ساتونکے دَ عملونو دَ دوی ۔ بلکه دوی دروغژن گڼړی حق لره هر کله چه دوی ته راغے نو دوی

چه دَ عادت دَ خلقو نه خلاف وی نو هغے ته دوی عجیبه او نا اشنا وائی ۔ لیکن هرکله چه دَ الله تعالیٰ په قدرتونو باندے فکر اوکړیشی نو دوباره ژوندی کول هیڅ نا اشنا کار نه دے نو دَ منکرانو دا تعجب کول بے ځایه دی ۔ عَجِيْبٌ لګ نا اشنا ته ویلے کیږی او عجاب ډیر نا اشنا ته ویلے کیږی نو هرکله چه مشرکانو دَ توحید مسئله ډیره نا اشنا ګڼړله او ویل ئے چه دا مونږ دَ خپلو مشرانو نه اوریدلے نه ده نو دَ دے وجه نه ئے په سورة ص سے کښ عجاب ذکر کړے او مسئله دَ بعث بعد الموت ئے خو دَ مشرانو نه اوریدلے ده لکه سورة مؤمنون ۸۲ کښ دی لیکن دَ عقل نه ئے لرے ګڼړله دَ دے وجے نه دلته او سورة رعد ۵ کښ صرف عجیب اُویل ۔

۳ دا بیان دَ متعجب منه (چه دَ هغے نه تعجب ئے کوؤ) دے په تفصیل سره او دَ پاره دَ تاکید دَ تعجب ئے همزه دَ استفهام انکاری په اول کښ راوړو او دَ تُرَابًا نه روستو تقدیر دے یعنی نبعث په قرینه دَ سورة مؤمنون ۸۲ او صافات ۱۶ او واقعه ۴۷ سره او بعث دلالت کوی په واپس کولو باندے دَ دے وجے نه ئے ذٰلِكَ رَجْعٌ اُویل ذٰلِكَ اشاره ده بعث ته چه دَ نبعث مقدر کښ مصدر پټ دے او رَجْعٌ متعدی دے واپس کولو ته ویلے کیږی او رجوع لازم ده واپس کیدلو ته وائی ۔ بَعِيْدٌ مراد دَ دے نه لرے والے دے دَ عقل او عادت نه ۔

۴ دا رد دے دَ دوی په تعجب او انکار کولو دَ بعث نه او دلیل عقلی علمی دے په بعث بعد الموت باندے یعنی هغه ذات چه عالم دے په ټولو اجزاؤ دَ هر بدن باندے جُدا جُدا او دَ دوی په عملونو باندے نو هغه ضرور قادر دے په دوباره اجزاء یو ځائے کولو او ژوندی کولو باندے ۔ مَا تَنْقُصُ الْاَرْضُ مِنْهُمْ په دے کښ دَ مفسرینو درے توجیهات دی اوله دا چه ټول بدن خاورے او خوری لیکن (پاتے په بل مخ)

فِيْٓ اَمْرٍ مَّرِيْجٍ ۝۵ اَفَلَمْ يَنْظُرُوْٓا اِلَى السَّمَآءِ فَوْقَهُمْ

په خبره ګډه وډه کښې دی۔ آیا نو دوی نه ګوری اسمان ته د پاسه د دوی

عجب الذنب (لکه لیچے) ته خاورے کیږی او دا صحیح حدیث کښې هم راغلے دی۔ دویمه توجیه دا ده چه څوک مړه شی او څوک ژوندی پاتے وی څه وخت پورے۔ دریمه توجیه دا ده چه دَ ډیرو انسانانو بدنونه خاورے کیږی او دَ بعض انسانانو لکه انبیاء علیهم السلام او دَ بعض اولیاؤ شهداؤ بدنونه نه خاورے کیږی۔ وَعِنْدَنَا كِتٰبٌ حَفِيْظٌ مراد دَ کتاب نه هغه کتاب دے چه ملائکو پکښې عملونه دَ انسانانو لیکلے دی نو دَ حفیظ معنیٰ دا چه دَ تمام عملونو حفاظت ئے کړیدے لکه په سورة کهف ۴۹ کښې ذکر روؤ نو حفیظ په معنیٰ دَ حافظ دے لکه سورة انعام ۱۰۴ یا مراد دَ کتاب نه لوح محفوظ دے چه په هغے کښې دَ دوی نومونه او عملونه وغیره لیکلے شوی دی نو حفیظ په معنی دَ محفوظ دے یعنی دَ شیطانانو نه او دَ تغییر او تبدیل نه ساتلے شوے دے۔

۵ دا دویم اضراب دے اول اضراب په دویم آیت کښې وو هغه زجر وو دَ دوی په تعجب کولو دَ بعث بعد الموت نه او په دے کښې زجر دے په تکذیب دَ دوی په باره دَ قرآن کښې چه هغه خبر ورکړے دے دَ بعث نه او په دے کښې ترقی ده ځکه چه تکذیب ختی کفر دے په نسبت دَ تعجب کولو او دا رنګ تعجب سبب دے دَ پاره دَ تکذیب۔ بِالْحَقِّ مراد دَ حق نه قرآن یا رسول یا خبر دَ بعث بعد الموت دے۔ لَمَّا جَآءَهُمْ په دے کښې اشاره ده چه دوی دَ دے حق نه خبر شویدی او بیا ئے هم تکذیب کړیدے۔ فَهُمْ فِيْٓ اَمْرٍ مَّرِيْجٍ مریج دَ مرج نه مأخوذ دے لکه مرج البحرین اختلاط او فساد ته ویلے کیږی او مراد دا چه په یو خبره بانندے نه ټینګیږی بلکه وائی سحر دے نو بیا وائی شعر دے او کله وائی کهانت دے نو کله وائی دروغ دی او حو بوډی لکه په سورة انبیا ۳ ۵ کښې تیر شویدی یا مراد دَ دے نه ګډ وډ دین دے یعنی دَ مشرکانو دین ګډ وډ دے لکه چه دَ حسن بصری او قتاده نه نقل کړے شویدی چه (مَا تَرَكَ قَوْمٌ الْحَقَّ اِلَّا مَرِجَ اَمْرُهُمْ وَالْتَبَسَ عَلَيْهِمْ دِيْنُهُمْ) "یو قوم حق نه دے پریخودے مګر دَ هغوی حال خراب شی او دین ئے ګډ وډ شی"۔ او حرف دَ فا په فهم کښې هم دلالت کوی په سببیت دَ ماقبل بانندے دَ پاره دَ مابعد، معنیٰ دا چه تکذیب سبب دَ مرج دے۔

كَيْفَ بَنَيْنٰهَا وَزَيَّنّٰهَا وَمَا لَهَا مِنْ فُرُوْجٍ ﴿۶﴾ وَالْاَرْضَ

چه څه رنګ موږ جوړ کړیدے او ډولی کړیدے او نیشته ـ دَ دے چودل ـ او زمکه

مَدَدْنٰهَا وَاَلْقَيْنَا فِيْهَا رَوَاسِيَ وَاَنْۢبَتْنَا فِيْهَا مِنْ

اوګلاره غوړولے ده موږ او اچولے دی موږ په دیکښ پاخه غرونه او زرغون کړیدی موږ په دیکښ دَ

كُلِّ زَوْجٍۢ بَهِيْجٍ ﴿۷﴾ تَبْصِرَةً وَّذِكْرٰى لِكُلِّ

هر قسم بوټو نه تازه تازه ـ دَپاره دَ پوهه کولو او یاداشت دَپاره دَ هر

سے دَ دے ایت نه تر یوؤلسم ایت پورے دلیلونه عقلیه آفاقیه ذکرکوی دَ پاره دَ اثبات دَ بعث بعد الموت روستو دَ ذکر دَ تکذیب دَ دوی نه لکه چه روستو دَ تعجب نه یئے یو دلیل علمی ذکر کړے وؤ. نو په دے ایت کښ دلیل عقلی علوی دے او مشتمل دے په درے خیزونو باندے ـ یو بنا (جوړښ) دَ اسمان ـ دویم زینت دَ هغے په ستورو سره لکه سورة صافات سے کښ دی او دریم نه چاؤدل دَ هغے ـ فُرُوْجٍ ف ر ج اجزاء جدا کیدلو ته ویلے کیږی نو مراد ترینه سورے کیدل او چاؤدل دی ـ یعنی اجزاء دَ اسمان دَ یو بل سره پیوست او هموار دی لیکن دا صفت دَ دے تر ورځ دَ فنا پورے دے په دلیل دَ سورة مرسلات سـ۹ او تکویر سـ۱۱ او انفطار سـ۱ او انشقاق سـ۱ سره.

سـ۷ په دے ایت کښ دلیل عقلی سفلی دے او مشتمل دے په درے خیزونو باندے اول مد الارض لکه سورة رعد سـ۳ او سورة حجر سـ۱۹.

سوال: دَ قیامت دَ قائمیدلو په وخت کښ هم راغلے دی وَاِذَا الْاَرْضُ مُدَّتْ (انشقاق سـ۳) نو ایا اوس ممدود نه ده ؟

جواب: مراد دَ مد الارض نه اوس دا دے چه مفروشه یئے کړځولے ده دا سے چه دَ انسانانو ژوند پکښ تیریدے شی اګرچه غرونه، کندے وړیرے پکښ هم دَ انسانانو دَ فائدو دَپاره شته او دَ ورځ دَ قیامت دَ مد نه مراد دا دے چه دا سے به یئے راکاږی چه غرونه او کندے به دَ دے نه لرے شی لکه سورة طٰه سـ۱۰۷ کښ شته دے. دویم رواسیَ (غرونه) په زمکه کښ اودرول لکه سورة رعد سـ۳ او سورة حجر سـ۱۹ او سورة نحل سـ۱۵ او سورة انبیاء سـ۳۱ او سورة نمل سـ۶۱ او سورة لقمان سـ۱۰ او سورة حم سجده سـ۱۰ او سورة مرسلات سـ۲۷ کښ او سورة نازعات سـ۳۲ کښ ذکر دی. دریم انبات دَ بوټو په زمکه کښ ـ زَوْجٍ اقسام دَ بوټو مراد دی چه دَ یو بل سره په بعض صفتونو کښ مشابهت او موافقت لری (یا نے په بلح)

عَبۡدٍ مُّنِيۡبٍ ﴿۸﴾ وَنَزَّلۡنَا مِنَ السَّمَآءِ مَآءً مُّبٰرَكًا

بنده دَ حق طلبګار - او را ورولے دی مونږ دَ طرف دَ اسمان نه اوبه برکت والا

فَاَنۡۢبَتۡنَا بِهٖ جَنّٰتٍ وَّحَبَّ الۡحَصِيۡدِ ﴿۹﴾ وَالنَّخۡلَ

نو زرغون کړيدی مونږ په سبب دَ هغے باغونه او دانے (چه بوټی) ئے لو کيدی شی۔ او اونے دَ کجورو

اګرچه په نورو صفتونو کښ جُدا وی. بَهِيۡجٍ کښ اشاره ده چه دغه بوټی لکه چه دَ خوراک دَپاره دی نو دا رنګ دَ سيل کولو او دَ رونق دَپاره هم دی۔

سے په دے ايت کښ دَ مخکښ دواړه دليلونو فائدے ذکر کوی اوله فائده تَبۡصِرَةً او دويمه ذِكۡرٰى او دَ دے دواړو دَ منصوب کيدلو وجه دا ده چه دا مفعول لهٗ دے دَ مخکښ دَپاره يا مفعول به دے دَ فعل محذوف دَپاره يعنی جعلناها تبصرةً و ذکرىٰ يا مفعول مطلق يا حال دے بيا دا دواړه فائدے دَ اسمانونو او زمکے دواړو سره تعلق لری يعنی دواړه فائدے په اسمانونو کښ هم دی او په زمکه کښ هم دی يا په طريقه دَ لف نشر مرتب سره دی يعنی اسمانونه تبصرةً او زمکه ذکرىٰ ده - فرق په مينځ دَ دواړو کښ دا دے چه تبصرةً هغه عبرت دے چه په نظر کولو سره حاصليږی او ذِکرىٰ هغه نصيحت دے چه دَ عقل او دَ زړه په ذريعه حاصليږی يا تبصرةً دليلونو دَ توحيد او ذِكرىٰ دليلونو دَ بعث بعد الموت ته اشاره ده - په عَبۡدٍ کښ اشاره ده چه دا فائدے په صفت دَ عبديت سره حاصليږی نه په تکبر سره او په مُّنِيۡبٍ کښ اشاره ده چه دا فائدے په عناد او ضد کولو سره نه حاصليږی بلکه هغه څوک چه دَ شهواتو نفسانيه او ګرځی حق طرف ته نو فائده اخستلے شی۔

سے دا بل دليل دے دليل عقلی وسطی او دا هم مشتمل دے په درے څيزونو باندے اول اِنۡزَالُ الۡمَآءِ يعنی بارانونه ورول دويم باغات پيدا کول دريم دانے او غلے زرغونول۔

نَزَّلۡنَا په دے لفظ کښ اشاره ده چه بارانونه وخت په وخت ورولو کښ ډيرے فائدے دی باب تفعيل صيغه په دے باندے دلالت کوی مُّبٰرَكًا هغه باران چه په هغے سره زمکه تازه شی او فِضا صفا شی او مرضونه هم کم شی دَ دے قسم برکات په بارانونو کښ الله تعالیٰ پيدا کړے دی - جَنّٰتٍ باغونه دَ اونو او دنګو بوټو مراد دی - مخکښ ايت کښ هم انبات ذکر کړے وو او په دے ايت کښ دوباره ذکر کړو دَ دے فرق په ډيرو وجو سره دے اوله وجه دا چه هلته انبات دَ باران نه وړاندے دَ زمکے په نموالی سره يا په اوبو دَ نهرونو او کوهيانو او چينو وغيره سره دے او په دے ايت کښ انبات په باران

بَاسِقٰتٍ لَّهَا طَلْعٌ نَّضِيْدٌ ﴿١٠﴾ رِّزْقًا لِّلْعِبَادِ ۙ وَاَحْيَيْنَا

دنګې چه دَ هغې غونچکونه دي لاندې پاندې۔ دَپاره دَ روزۍ دَ بندګانو او تازه کړ یدله موږ

بِهٖ بَلْدَةً مَّيْتًا ۭ كَذٰلِكَ الْخُرُوْجُ ﴿١١﴾ كَذَّبَتْ قَبْلَهُمْ

په دې سره زمکه اوچه دغسې راوتل دي (دَ قبرونو نه)۔ دَ دروغو نسبت کړې وُو دَ دوئ نه مخکښې

سره دے چه باران کیدلو سره متصل بوټي اوـنے زرغون شي لکه حرف دَ فا په فَاَنْبَتْنَا کښې په دے باندے دلیل دے۔ دویمه وجه دا ده چه په هغه آیت کښې مقصد صفت دَ زوجیت وو او په دے آیت کښې کور والے او غټ والے دَ اونو مراد دے۔ دریمه وجه دا ده چه په هغه آیت کښې ضمیر دَ فِيْهَا په یو احتمال سره رَوَاسِيَ ته راجع کیدے شي یعنی بوټي دَ غرونو صرف مراد وو او په دے آیت کښې عام مراد دي۔ وَحَبَّ الْحَصِيْدِ په نیزد دَ بصریانو دا په اصل کښې حب النبت الحصید دے یعنی دانے دَ هغه بوټو چه هغه بوټي لو کیدے شي او په نیزد دَ کوفیانو دا اضافت دَ موصوف دے صفت ته، او مراد دے ته غنم وریشے رُوږے وغیره دي چه بوټي پس دَ اوچیدلو نه لو کړے شي او بیا دَ غویل یا په نورو آلاتو سره دَ هغے نه دانے را اویستلے شي۔

سـ۲ دا بل دلیل عقلي وسطي دے وَالنَّخْلَ عطف دے په جَنّٰتٍ باندے هر کله چه دَ کجورے اوصاف او فائدے دَ نورو اونو نه پیرے دي دَ دے وجے نه دائي جُدا ذکر کړو او دا دلیل هم په درے خیزونو باندے مشتمل دے یو نخل۔ دویم بَاسِقٰت، بسوق دنګ والی ته ویلے کیږي او برابر ته هم ویلے کیږي او دریم لَّهَا طَلْعٌ نَّضِيْدٌ میوے دَ کجورے چه اول په یو بنده کسوره کښې ښکاره شي او بیا پرانستے شي نو هغے ته طلع ویلے کیږي او نضید ورته مخکښې دَ ښکاره کیدلو نه ویلے کیږي۔

سـ۱۱ دا مخکښې دلیلو نو تتمه ده مشتمل ده په درے خیزونو باندے اول رِزْقًا لِّلْعِبَادِ دا مفعول مطلق دَ فعل محذوف دَپاره دے یا تمییز یا مفعول له دے یا مفعول به په معنی دَ مرزوقا سره دے۔

سوال :۔ دَ خلق دَ اسمانونو او زمکے نه روستو تبصرةً وذکرىٰ ذکر کړے وُو او دَ بارانونو او دَ بوټو او میوو دَ پیدائش نه روستو ئے رزقًا ذکر کړو دَ دے څه حکمت دے؟

جواب :۔ دَ قیامت په اثبات کښې دوه مقصدونه دي اول قدرت دَ الله تعالیٰ په دوباره ژوندي کولو باندے او دویم مقصد باقي ساتل روستو دَ اعادے نه۔ نو اولني ر پاتے په بل مخ)

قَوْمُ نُوْحٍ وَّ اَصْحٰبُ الرَّسِّ وَ ثَمُوْدُ ﴿۱۲﴾ وَ عَادٌ وَّ

قوم دَ نوح علیه السلام او کوهی والو او ثمودیانو او عادیانو او

اشاره ده چه کوم ذات په پیدا کولو دَ اسمانونو او زمکو باندے قادر دے نو هغه په دوباره ژوندی کولو باندے ضرور قادر دے او دے عبرت ته تبصرة او ذکرئ ویلے کیږی او بیا ئے اشاره اوکړه چه کوم ذات په میوؤ او غلو سره تاسو ژوندی ساتی نو دغه ذات به په اخرت کښ خوامخواه تاسو ژوندی ساتلے شی او بقا او ژوند خو په رزق سره دے بیا دَ اول سره ئے عبد منیب قید لګولے دؤ او روستو سره ئے صرف عباد ویلے دے داځکه چه تبصرة او ذکر حاصلولو دَپاره انابت ضروری دے او رزق خو ټولو بندګانو له ورکوی۔ دویم خبر دَ اَحْيَيْنَا بِهٖ بَلْدَةً مَّيْتًا دَ باران دَ فائدونه دا فائده ئے په اخر کښ خاص ذکر کړه ځکه مقصد خو اثبات دَ بعث بعد الموت دے او هغه په دے فائده ذکر کولو سره ښهٔ معلومیږی۔ دریم خبر كَذٰلِكَ الْخُرُوْجُ دا دعویٰ دَ سورت ده یعنی لکه چه دَ زمکے نه باغات دانے بوټی روستو دَ وچ والی دَ هغے نه الله تعالیٰ راوباسی نو داسے به تاسو په مختلف شکلونو صورتونو صفتونو سره دَ قبرونو نه راوباسی په ورځ دَ قیامت نو دا اثبات دَ قیامت دے په قیاس کولو سره په بوټو راوتلو سره دَ زمکے نه پس دَ وچ والی دَ هغے نه۔ او حدیث کښ وارد دی چه نبی صلّی الله علیه وسلّم به اکثر په ورځ دَ اختر سورة قٓ لوستلو نو په دے کښ لطیفه اشاره ده دَ خبرے ته چه دَ اختر په ورځ مسلمانان دَ خپلو کورونو نه په مختلف هیئتونو کښ را اوځی نو دا رنګ به په ورځ دَ قیامت ټول خلق دَ خپلو عملونو په موافق په مختلف حالتونو کښ دَ قبرونو نه را اوځی۔

سلا ۱۲ سلا ۱۳ سلا ۱۴ دا تخویف دنیوی دے په ذکر دَ اته قومونو مکذبینو سره او دَ هغوئ عذاب اجمالی په ذکر سره او ورسره تسلّی ده رسول الله صلّی الله علیه وسلّم ته یعنی ځکنو ډیرو او طاقت والا قومونو دَ بعث بعد الموت او دَ رسولانو تکذیب کړے دؤ نو په هغوی باندے عذابونه راغلل نو دا رنګ دا موجوده خلق هم دی۔

په اول ایت کښ درے قومونه ذکر کړل قوم نوح۔ اصحاب الرس او ثمود او په دویم ایت کښ هم درے دی عاد۔ فرعون او اخوان لوط۔ دریم ایت کښ دوه دی اصحاب الایکة او قوم تُبَّع۔ (حکمتونه) اول دا چه په سورة حج سلا ۴۲ سلا ۴۳ سلا ۴۴ کښ اؤو قومونه دَ مکذبینو نه ذکر کړیدی خو په اصل ترتیب زمانی دَ هغوی سره ځکه په دغه ایاتونو کښ صرف تسلّی زمونږ نبی صلّی الله علیه وسلّم ته مقصود وه چه دَ نورو انبیاؤ تکذیب کړے

فِرْعَوْنُ وَاِخْوَانُ لُوْطٍ ﴿۱۳﴾ وَّاَصْحٰبُ الْاَيْكَةِ

فرعون او قوم دَ لوط علیه السلام او ببنړ والو

وَقَوْمُ تُبَّعٍ ۭ كُلٌّ كَذَّبَ الرُّسُلَ فَحَقَّ وَعِيْدِ ﴿۱۴﴾

او قوم دَ تُبّع ، دے ټولو رسولانو ته دروغژن ویلی دیُ نو راغے په دوی باندے زما عذاب۔

شوید ے او په سورة صٓ سے ۱۲ سے ۱۳ کښ ترتیب ئے بدل کړید ے ځکه چه په دغه سورت کښ ذکر دَ هغه مکذبینو مقصد دے چه تکذیب ئے دَ وجے دَ عزت (غرور) او شقاق دَ وجے نه کړید ے نو په غرور او شقاق کښ چه کوم یو قوم زیات دے هغه ئے مخکښ ذکر کړے دے په ترتیب سره او په دے سورة قٓ کښ تکذیب دَ عقلی دلیلونو (چه مخکښ ذکر شول) مقصود دے نو په کوم قوم کښ چه دغه جهل زیات دے نو هغه ئے مخکښ ذکر کړے دے په ترتیب سره۔ دوئیم اصحاب الرس صرف په سورة فرقان او په دے سورت کښ ذکر کړیدی په نورو سورتونو کښ په سلسله دَ اقوام مکذبو کښ هغوی نه دی ذکر کړی ځکه چه هغوی ډیر مشهور نه وو۔ دریم اصحاب الایکه قوم دَ شعیب علیه السلام دے پشان دَ اصحاب مدین یا دواړه یو قوم دے دَ دے وجے نه سورة صٓ او قٓ کښ ئے دَ دوی په ذکر باندے اکتفاء اوکړه۔ څلورم دلته ئے اخوانِ لوط ذکر کړو دَ دوی اخوت دَ لوط علیه السلام سره صرف دَ مصاهرت (سخر گنئ) په وجه سره وو او دے اخوت ته پوره اعتبار نیشته په نیز دَ عام خلقو باندے دَ دے وجے نه په نورو سورتونو کښ صرف قوم لوط ویلے وو او په دے سورت کښ اشاره وه دَ دوی نهایت جهل او سرکشئ ته چه دوی دَ خپلو لئے (یعنی دَ خپل زوم) لحاظ هم اونکړو دَ هغه تکذیب ئے اوکړو۔ پنځم قوم تبع ئے په هغه سورتونو کښ نه دے ذکر کړے په کومو کښ چه دَ اقوامو مکذبو ذکر کول مقصود وو سیوا دَ سورة دُخان سے ۳۷ او دَ دے سورت نه، ځکه چه دَ دهٔ په قوم کښ تکذیب زیات مشهور نه دے او دا رنګ عذاب دَ هغوی معروف نه دے۔ شپږم دلته ئے فرعون ذکر کړو قوم فرعون ئے نه دے ذکر کړے دیکښ اشاره ده چه فرعون دَ دوی امام وو او دوی دَ هغه په تقلید کښ تکذیب کړید ے نو دَ دوی دَ مشر ذکر ئے اوکړو ګویا چه دَ دوی وجود کالعدم دے دَ ډیر جهل دَ وجے نه۔ اووم دلته ئے تکذیب دوه کرته ذکر کړے دے دا اشاره ده چه اول تکذیب دَ عقلی دلیلونو دے او دوئیم تکذیب دَ رسولانو (یعنی دَ وحی) دے۔ اتم سورتِ صٓ کښ "فَحَقَّ عِقَابِ" ذکر کړے دے او دلته ئے "فَحَقَّ وَعِيْدِ" ذکر کړے دے یو وجه دا ده چه دیته رعایت دَ فواصلو ( پاتے په بل مخ )

أَفَعَيِينَا بِالْخَلْقِ الْأَوَّلِ ۚ بَلْ هُمْ فِي لَبْسٍ مِّنْ

ایا مونږ ستړي شوي یو په اول پیدائش باندې بلکه دوی په شک کښې دي د

خَلْقٍ جَدِيدٍ ﴿١٥﴾ وَلَقَدْ خَلَقْنَا الْإِنسَانَ وَنَعْلَمُ

پیدائش نوي نه ۔ او یقیناً پیدا کړیدې مونږ انسان او پوهیږو

ویلې کیږي دپاره دَ فصاحت دَ کلام یعنی سورة صٓ کښې فاصلې دَ ایاتونو په دلیلې لفظ سره دي چه دَ لام کلمې نه مخکښې الف وي لکه شقاق ، عجاب ، عقاب وغیره او په دې سورة کښې فاصلې په داسې لفظ سره دي چه دَ لام کلمې نه مخکښې یٓ وي لکه مجید ، حفیظ ، بهیج ، وعید او دا په طریقه اکثري سره دي په دواړه سورتونو کښې ۔ او بله وجه دا ده چه سورة صٓ کښې مرض دَ کافرانو عزت او شقاق ذکر کړې دې او داسې وصف والا خلق دَ عاقبت دَ عمل خپل نه غافل وي نو هغوي ته يې عقاب ذکر کړو چه دَ عاقبت نه ماخوذ دې او په دې سورت کښې انکار دَ وعد دَ بعث بعد الموت نه ذکر کړې او دَ هغې سره متناسب لفظ دَ وعید دې ۔ ( والله تعالیٰ اعلم بحکم کلامه ) ۔

۱۵ دا زجر دې په انکار دَ بعث بعد الموت سره دَ اشارې نه دلیل ته چه قیاس دې په خلق اول باندې او په دې زجر کښې اشاره ده چه دَ تیر شوي قومونو دَ تکذیب دَ قیامت دَ پاره هم هیڅ دلیل نه وو دَ دې وجې نه دا زجر يې دَ هغوي په تکذیب پسې ذکر کړو ۔ أَفَعَيِينَا همزه دَ پاره دَ استفهام انکاري دې او معطوف علیه دَ حرف فَ حذف دې تقدیر دَ عبارت داسې دې أَكَذَّبُوا فعیینا یعنی کَذَّبُوا لِأَجل عجزنا وتعبنا ( یعنی دوي تکذیب کړیدې دَ دې وجې مونږ ستړي شوي یو دَ اول پیدائش نه ) بِالْخَلْقِ الْأَوَّلِ مراد دَ خلق اول نه اول پیدائش دَ انسانانو دې لکه سورة یٰس ۷۹ کښې اشاره ده یا مراد دَ خلق اول نه پیدائش دَ اسمانونو ، زمکو ، اوتو ، یونو وغیره دې چه په مخکښې ایاتونو کښې ذکر شول او هغې ته اشاره ده په سورة یٰس ۸۱ کښې ۔ لَبْسٍ لبس کړوه والې دې په خبرو کښې چه سبب دَ هغې سره شک او شبهه دَ دوي ده نو دلته ذکر دَ مسبّب دې او مراد ترینه سبب دې ۔

سوال :۔ دَ دوي تکذیب يې مخکښې ۵ کښې ذکر کړې دې او دلته يې شک ذکر کړو او شک خو ادنیٰ دې دَ تکذیب نه ؟

جواب :۔ په دې کښې اشاره ده چه دَ دوي دَ انکار او تکذیب دَ پاره هیڅ دلیل نیشته په اصل کښې دَ دوي شک دې لیکن دَ ضد دَ وجې نه شک يې انکار ته رسولې دې ۔

مَا تُوَسْوِسُ بِهٖ نَفْسُهٗ ۚ وَنَحْنُ اَقْرَبُ اِلَيْهِ

په هغه چه وسوسے اچوی دهٔ ته نفس دَ دهٔ او مونږ ډير نزدے يو دهٔ ته

مِنْ حَبْلِ الْوَرِيْدِ ﴿۱۶﴾ اِذْ يَتَلَقَّى الْمُتَلَقِّيٰنِ عَنِ

دَ رګ دَ مرئ نه (چه زړه ته رسيږی)۔ کوم وخت چه را اخلی دوه ملائک اغستونکی دَ

سـ۱۶ دَ دے ايت نه دويم باب تر اخره دَ سورت پورے دے۔ په ديکښې دليل عقلی مختصر دے بيا ذکر دَ حفاظت الاعمال دے په کتابت دَ کرام کاتبينو سره دَ اثبات دَ بعث او حساب دَ پاره بيا ذکر دَ حالت دَ نزع دے دَ تخويف دَ پاره بيا تخويف اخروی تفصيلی دے په لس طريقو سره او شپږ صفات دَ اهل جهنم دی او ذکر دَ قرينانو او ذکر دَ حال دَ جهنم تر سـ۳۰ پورے دے بيا بشارت دے په پنځو طريقو په ذکر دَ پنځه صفتونو دَ اهل جنت تر سـ۳۵ پورے بيا تخويف دنيوی او ترغيب قران ته او دليل عقلی دَ بعث بعد الموت په سـ۳۸ کښې بيا پنځه اوامر دَ پاره دَ تشجيع دَ دعوت او ذکر دَ اته احوالو دَ قيامت دے تر اخره پورے۔ په دے (سـ۱۶) کښې دليل عقلی دے په ذکر دَ خَلْق اول دَ انسان کوم چه په مخکښې ايت کښې ذکر کړے دے۔ او په دے کښې الله تعالىٰ خپل درے صفتونه ذکر کړے دی۔ اول بيا کول دَ الله تعالىٰ انسان لره او په دے کښې هم اشاره ده زجر ته چه نفس او شيطان دے انسان ته وسوسے اچوی دَ هغے دَ وجے نه دِے په ضد او عناد کښې اخته شی او تکذيب او انکار کوی۔ وسوسه دَ نفس دَ طرف نه دَ شر خبره وی چه بے اختياره وی او صحيح حديث کښې وارد دی چه دے امت ته الله تعالىٰ دَ وسوسو معافی کړے ده تر هغو پورے چه په ژبه ئې نه وی ويلے يا عمل ئې ورباندے نه وی کړے۔ او وسوسے اچوونکی درے خيزونه دی يو نفس دَ انسان دے لکه سورة يوسف سـ۵۳ کښې دی۔ دويم شيطان جنی۔ دريم شيطان انسی دے او دا دواړه سورة الناس کښې ذکر دی۔ او وسوسه ډير پټ خيز دے او الله تعالىٰ په هغے باندے عالم دے بل چا لره دَ هغے علم نيشته۔ دريم صفت اقربيت دَ الله تعالىٰ وَنَحْنُ اَقْرَبُ اِلَيْهِ قربت دَ الله تعالىٰ ښکاره معنیٰ ده ليکن دَ هغے په کيفيت باندے مونږ نه پوهيږو دَ هغے تشبيه دَ مخلوق سره نيشته او نه ئې تاويل کوو او دا قربت دَ فوقيت دَ عرش سره منافات نه لری ځکه چه الله تعالىٰ په هر څه باندے قادر دے۔ مِنْ حَبْلِ الْوَرِيْدِ دا اضافت دَ موصوف دے صفت ته يعنی رګ چه ورين دے يا اضافت بيانيه دے او وريدان دوه رګونه دی دَ ښځ دَ طرف او ګس طرف نه متصل دی دَ سر نه تر وتين رګ پورے (پاتے په بل مخ)

دے انسان ته او بيا يکښې هم

الْيَمِيْنِ وَعَنِ الشِّمَالِ قَعِيْدٌ ۝۱۷ مَا يَلْفِظُ مِنْ قَوْلٍ

| ښي طرف او د کس طرف ته (ربوړو) ناست دے. نه اوباسي انسان د خُلې نه څه خبره |
|---|

او وتين رګ د زړه دے چه د هغې په قطع کیدلو سره انسان مړ کیږي. نو ورید مفرد ته مراد جنس دے نو دواړو ته شامل دے یا هر یو ورید ترینه مراد دے ځکه مفرد ئې ذکر کړے دے. بیا د دے د تخصیص وجه داده چه امام راغب په مفردات کښ لیکلي دي چه دا رګونه د روح د چلیدلو رګونه دي نو مراد د دے دا دے چه الله تعالی د روح نه هم زیات نزدے دے یا داوجه ده چه دا رګونه زړه سره تړلے شوے دي نو مراد دا چه د الله تعالی قربت د انسان د زړه سره (چه محل د وسوسے دے) تعلق لري او اَقْرَبُ اسم تفضیل ئې د دے وجے نه اویل چه که روح د انسان او که زړه دے خو د انسان اجزاء او د بدن ټکړے په مینځ کښ حاجب (مانع) ګرځي او د الله تعالی قربت او علم ته هیڅ څیز مانع نیشته.

۱۷ په دے کښ ذکر کوي حال د کراماً کاتبین د پاره د اثبات د بعث بعد الموت یعنی د دے ملائکو مقرر کیدل او عملونه لیکل دلیل دے چه الله تعالی به ضرور ورځ د جزاء او د حساب قائمه وي. اِذْ لفظ په معنی د اذکر دے نو دا مستقل کلام دے یا متعلق دے په اَقْرَبُ پورے حاصل دا چه ملائک چه تا سو بانده ناست دي د لیکلو د عملونو د پاره د هغوی نه الله تعالی زیات نزدے دے نو هغه د ملائکو لیکلو ته حاجت نه لري لیکن دا خو په انسانانو بانده د حجت قائم کولو د پاره دي. يَتَلَقَّى الْمُتَلَقِّيَانِ. کله چه یو څیز یا کلمه د چا د طرف نه راځي او بل څوک ئې واخلي نو دے ته تلقي ویلے کیږي نو دا سے دوه ملائک د انسان کلمات، اقوال او اعمال چه د هغه نه صادر یږي نو دوي ئې ځان سره محفوظ ساتي عَنِ الْيَمِيْنِ وَعَنِ الشِّمَالِ قَعِيْدٌ قعید وزن د فعیل په مفرد او متعدد بانده یو شان ویلے کیږي یا په کلام کښ حذف دے یعنی عن الیمین قعید وعن الشمال قعید. او روایاتو سره ثابت شوي دي چه دا دوه ملائک د ورځے او دوه د شپے وي او ښي طرف بانده لیکونکے د نیکے او په کس طرف بانده لیکونکے د بد اعمالو وي او لیکونکے د حسناتو امین دے په لیکونکي د سیئاتو بانده او دوي ته کراماً کاتبین ملائک ویلے کیږي. قَعِيْدٌ نه مراد د دے لازم او ملګرے کیدل دي که ولاړ وي او که ناست وي صرف کیناستل ترینه مراد نه دي.

اِلَّا لَدَيۡهِ رَقِيۡبٌ عَتِيۡدٌ ﴿۱۸﴾ وَجَآءَتۡ سَكۡرَةُ الۡمَوۡتِ

مګر دَ هغه په خوا کښ شته څوکے کوونکے تيار - او راغلے سختئ دَ مرګ

بِالۡحَقِّ ؕ ذٰلِكَ مَا كُنۡتَ مِنۡهُ تَحِيۡدُ ﴿۱۹﴾ وَنُفِخَ فِى الصُّوۡرِ ؕ

په رشتيا سره (نو اوبه شي) دا هغه څيز دے چه ته دَ هغے نه تختيدلے. او پوکے به او کړيشي شپيلئ کښ

سـ۱۸ مخکښ تلق او دوه طرفونه ئے ذکر کړل اوس دَ هغوی تياری ذکر کوی يعنی هيڅ وخت غافل نه وی. يَلۡفِظُ لفظ په لغت کښ رمی (ويشتل) ته ويلے کيږی يعنی وينا چه دَ خولے نه او باسی په خپل اختيار سره او په دے کښ اشاره ده چه کوم کلمات دَ خولے نه بے اختياره اوځی نو دَ هغے ليکل نه کوی هغه معاف دی مِنۡ قَوۡلٍ صحيح دا ده چه اقوال او اعمال دواړه ليکی ليکن قول ئے خاص ذکر کړو ځکه چه په دے سورت کښ دَ منکرينو اقوال په باره دَ قيامت کښ ذکر شويدی په سـ۲ سـ۳ کښ نو په دے کښ زجر دے چه دا اقوال ستاسو ليکلے کيدے شی دَ پاره دَ حساب کولو. رَقِيۡبٌ عَتِيۡدٌ دا دواړه هم دَ مفرد او متعدد دَ پاره يو شان استعماليږی پشان دَ قعيد. رَقِيۡب ساتونکی، څوکئ کونکی ته ويلے کيږی او عَتِيۡدٌ تيار او حاضر ته ويلے کيږی يعنی په دغه ملائکو کښ دا صفتونه دی.

سـ۱۹ په دے ايت کښ تخويف دے په ذکر دَ حالت دَ نزع سره. يعنی هر کله چه عملونه او ليکلے شی او عمر په ختميدلو شی نو سختئ دَ مرګ په شورو شی نو دَ هغے نه غفلت نه دے پکار.

سَكۡرَةُ الۡمَوۡتِ يعنی دَ مرګ په وخت دا سے سختی او تکليف راځی چه انسان پشان دَ حالت دَ سکر (دَ نشے) وی خبرے ئے دَ اعتدال او اختيار نه بهر شی او صحيح حديث کښ کښ وارد دی چه نبی صلّی الله عليه وسلّم هم په وخت دَ نزع کښ فرمائيلے وو "لا اله الا الله ان للموت سكرات" او "اَللّٰهُمَّ اَعِنِّيۡ عَلٰى سَكَرَاتِ الۡمَوۡتِ".

بِالۡحَقِّ دا متعلق دے دَ جاءت سره او حق په معنیٰ دَ يقين سره دے يا متعلق دے په سکرت پورے او مراد دَ حق نه امر واقعی دے.

ذٰلِكَ مَا كُنۡتَ مِنۡهُ تَحِيۡدُ دا خطاب دے دَ ملائکو دَ طرف نه هر انسان ته په وخت دَ نزع کښ. تَحِيۡدُ دَ حيدة يا حيدودة نه ماخوذ دے او ړيدل، ګکيدل په قصد او په نفرت کولو سره.

ذٰلِكَ يَوْمُ الْوَعِيْدِ ﴿٢٠﴾ وَجَآءَتْ كُلُّ نَفْسٍ مَّعَهَا

| دا | ورځ | دَ عذاب ده ۔ | او راشي | هر | نفس | دَ هغه سره به وي |
|---|---|---|---|---|---|---|

سَآئِقٌ وَّشَهِيْدٌ ﴿٢١﴾ لَقَدْ كُنْتَ فِيْ غَفْلَةٍ مِّنْ

| چلوونکے | او ګواهي کوونکے ۔ | یقینًا ته وے | په | غفلت کښ | دَ دے |
|---|---|---|---|---|---|

هٰذَا فَكَشَفْنَا عَنْكَ غِطَآءَكَ فَبَصَرُكَ الْيَوْمَ

| ته | نو لرے کړه موږ ستا نه | پرده ستا | نو نظر ستا | نن |
|---|---|---|---|---|

سـ۲۰ دَ دے ایت نه تر سـ۳۵ پورے تخویف اخروی تفصیلی دے چه په هغے کښ شپاړس احوال ذکر کوی په دے ایت کښ دوه حالات ذکر دی ۔

اول نُفِخَ فِي الصُّوْرِ ۔ مراد دَ دے نه دویمه شپیلۍ ده چه دَپاره دَ بعث بعد الموت ده ۔

دویم يَوْمُ الْوَعِيْدِ یعنی الله تعالیٰ وعده دَ عذاب کړیده دَ منکرینو سره په دے ورځ کښ او دا یو نوم دے دَ نومونو دَ ورځ دَ قیامت نه ۔

سـ۲۱ په دے ایت کښ دوه حالتونه ذکر کوی اول دَ هر نفس راتلل میدان دَ حشر ته دویم هر یو نفس سره به سایق او شهید وی ۔ مراد دَ دواړو نه ملائک دی چه یو به ئے میدان حشر او بیا مقام دَ جنت یا جهنم ته راولی ۔ دَ جنتیانو سره به هم سایق وی چه دلالت کوی په هغے باندے سورة زمر سـ۷۳ او دَ جهنمیانو سره به هم وی لکه سورة زمر سـ۷۱ او طریقه دَ بوتللو دَ جهنمیانو په سورة رحمان سـ۴۱ کښ ده ۔

او دویم ملک به وړباندے شهادت کوی ۔

شهادت به دَ جنتیانو دَپاره کوی دَ هغوی په نیکو عملونو او شهادت به په جهنمیانو باندے کوی دَ هغوی په ناکاره عملونو باندے ۔

او سَآئِقٌ وَّشَهِيْدٌ اګرچه مفرد دی لیکن مراد دَ دے نه جنس دے نو ډیرو ته هم شاملیږی ۔ او بل قول دا دے چه مراد دَ سائق نه ملائک دی او مراد دَ شهید نه اعضاء دَ دوی دی یا عملونه دَ دوی دی یا هغه عملنامه چه لیکلے شوے ده ۔

او كُلُّ نَفْسٍ ظاهر دلالت کوی چه دا ایت عام دے ټولو انسانانو ته ۔ او دویم قول دا دے چه دا خاص دے په مشرکینو پورے ۔

حَدِيۡدٌ ﴿۲۲﴾ وَقَالَ قَرِيۡنُهٗ هٰذَا مَا لَدَىَّ عَتِيۡدٌ ﴿۲۳﴾

تیز دے ۔ او اووایئ ملگرے دَدهٔ دا هغه څیز دے چه ما سره دے تیار ۔

۲۲ په دے کښې هم دوه حالتونه ذکر کوی او کشف دَ غطاء (پرده لرے کول) دے او دویم تیزیدل دَ نظر دی ۔ مِنۡ هٰذَا اشاره ده مخکښې مجموعه حال ته یعنی پوکل دَ شپیلئ او سایق او شهید سره میدان حشر ته راتلل ۔ او مراد دَ غفلت نه غفلت دے په سبب دَ محبت دَ دنیا دَ شهواتو سره په ارتکاب دَ ګناهونو سره نو ګنهګارو مؤمنانو ته هم شامل دے یا مراد دَ دے نه انکار کول دی نو خاص دے په کافرانو پورے ۔ غطاءك مراد دَ دے نه هغه حالات دی چه منع کوونکی وؤ دَ ذکر دَ اخرت نه چه هغه جهل او محبت دَ دُنیا او شهوات نفسانیه دی او سبب دَ هغې غفلت وؤ لکه سورۃ کهف ۱۰۱ کښې ذکر دی ۔ فبصرك اليوم حَدِيۡدٌ ۔ بصر دَ قلب مراد دے ځکه چه دَ غفلت محل زړه دے نو دَ غفلت په ازالے سره بصیرت دَ زړه راغئ یا مراد دَ دے نه بصر دَ سترګو دے په مقابله دَ غطاء کښې یعنی په ورځ دَ قیامت په جزا او سزا دَ عملونو او میزان وغیره ته دا سے نظر کوی چه هیڅ حاجب او مانع په مخ ته نه وی او دیته اشاره ده په سورۃ مریم ۳۸ کښې ۔

سوال :- په سورۃ طٰه ۱۲۴ او سورۃ اسراء ۹۷ کښې معلومیږی چه دَ قیامت په ورځ به دوی ړاندهٔ وی نو دَ دے ایت سره ئې تعارض معلومیږی ؟

جواب :- دَ ابن عباس رضی الله عنهما نه نقل دی چه دا په مختلفو اوقاتو باندے حمل دی بعض وخت به ړانده وی او بعض وخت به ئې نظر تیز وی ۔ دویم جواب دا دے چه په هغه ایاتونو کښې مراد دَ عمی نه عدم دلیل او حجت دے یعنی بے دلیله به وی ۔

۲۳ په دے ایت کښې بو حال ذکر کوی چه هغه شهادت دَ قرین دے او دَ اکثر مفسرینو په نیز مراد دَ دینه مقرر ملائک (کراماً کاتبین) دی چه هغوی به دَ هر چا عملنامے تیارے حاضرے کړی نو هٰذَا کښې اشاره ده عملنامه لیکلے شوے ته لَدَىَّ کښې اشاره ده چه دا زما سره امانت وؤ چه بل چا پکښې هیڅ خیانت نه دے کړے ۔ او دَ بعض مفسرینو په قول کښې مراد دَ قرین نه شیطان دے لکه سورۃ زخرف ۳۶ او سورۃ حٰمٓ سجده ۲۵ کښې او هٰذَا کښې اشاره ده دغه شخص (ګمراه کړے شوی ته) او عَتِيۡدٌ نه مراد دا دے چه شیطان په سبب دَ اغواء دَدهٔ تیار کړے دے دهٔ لره دَ جهنم دَ پاره ۔

أَلْقِيَا فِي جَهَنَّمَ كُلَّ كَفَّارٍ عَنِيدٍ ﴿۲۴﴾ مَّنَّاعٍ لِّلْخَيْرِ

(اوبه ویلې شي) واچوئ په جهنم کښې هر کفر کوونکے عناد کوونکے منع کوونکے دَ خیر

مُعْتَدٍ مُّرِيبٍ ﴿۲۵﴾ الَّذِي جَعَلَ مَعَ اللَّهِ إِلَٰهًا آخَرَ

دَحد نه تیریدونکے شک والا هغه چه گرځوی دَ الله تعالیٰ سره بل حقدار دَ بندگۍ

فَأَلْقِيَاهُ فِي الْعَذَابِ الشَّدِيدِ ﴿۲۶﴾ قَالَ قَرِينُهُ رَبَّنَا

نو واچوئ دَ هٔغه په عذاب سخت کښې - اوبه وائي ملګرے دَدهٔ اے ربه زمونږ

۲۴ تا ۲۵ تا ۲۶ په دے ایاتو کښې دوه حالتونه ذکر کړیدی ۱ القاء په جهنم کښې ۲ القاء په سخت عذاب کښې او دَ جهنمی شپږ صفاتِ قبیحه ئې ذکر کړے دی. أَلْقِيَا صیغه دَ تثنیه ئې ذکر کړیده په دے کښې څلور اقوال دی اول داچه دا دَ عربو محاوره ده چه یو ملګری ته په تثنیه سره خطاب کوی. دویم داچه دا تثنیه دَ تکرار دَ پاره ده لکه په لفظ لبیک کښې یعنی أَلْقِ أَلْقِ. دریم داچه دوه ملائک دی سایق او شهید هغوی ته خطاب دے چه یو به ئې دَ سر نه او بل به ئې دَ خپو نه اونیسی لکه په سورة رحمان ۴۱ کښې دی. څلورم قول دا دے چه دا مفرد صیغه ده أَلْقِيَا په اصل کښې القین دے نون دَ تاکید خفیفه بدل شو په الف سره. اول سبب دَ جهنم کفر دے نو هغه ئې مخکښې ذکر کړو په كَفَّارٍ سره صیغه دَ مبالغے ئې ذکر کړیده یعنی دَ توحید، رسول، قران، قیامت، عقلی نقلی دلیلونو نه منکر دے.

عَنِيدٍ یعنی دَ کفر سره ئې عناد یو ځائے شویدے چه سرهٔ دَ پوهے نه دَ حق نه انکار کوی دَ وجے دَ حسد او بغض نه دَ اهلِ حق سره او دَ تکبر دَ وجے نه نو عناد کول ډیرو ګناهونو له متضمن دے لکه انکار، حسد، تکبر، ازدراء دَ حق او اهل حق (سپک ګنړل) او غیرت په باطل باندے. مَّنَّاعٍ لِّلْخَيْرِ اشاره ده چه دا شخص ضال او مضل دواړه صفتونه لری الْخَيْرِ توحید، سنت، قران. انفاق دَ مال فی سبیل الله تعالیٰ او ټولو حقوقو واجبو ته شامل دے. مُعْتَدٍ کښې اشاره ده چه حقوق العباد هم ضایع کوی په ظلم کولو سره. مُّرِيبٍ دا لازمی او متعدی په دواړه معانی سره راځی پخپله شک کوونکے او نورو خلقو له په شک کښې اچوی یعنی په شبهاتو اچولو او طعنونو کولو سره په اهلِ حق باندے.

الَّذِي جَعَلَ دا صفت ئې مستقل ذکر کړو اشاره ده چه دا دَ ټولو قبائحو دَ پاره اصل او منشاء ده. فَأَلْقِيَاهُ په دویم کرت ذکر کولو کښې اشاره ده ترقیٔ دَ عذاب ته او په حرف دَ فاء سره ئې ذکر کړو اشاره ده چه تیر شوی صفتونه سبب دے دَ پاره دَ عذابِ شدید.

مَآ اَطۡغَيۡتُهٗ وَلٰكِنۡ كَانَ فِيۡ ضَلٰلٍۭ بَعِيۡدٍ ﴿۲۷﴾ قَالَ

ما نه دے گمراه کړے دهٔ لره لیکن دے وؤ په گمراهئ لرے کښ. او به وائي الله تعالیٰ

لَا تَخۡتَصِمُوۡا لَدَیَّ وَقَدۡ قَدَّمۡتُ اِلَيۡكُمۡ بِالۡوَعِيۡدِ ﴿۲۸﴾

جګړے مه کوئ زما په مخکښ او حال دا چه مخکښ خبردار کړے وؤ ما تاسو ته دَ عذاب.

مَا يُبَدَّلُ الۡقَوۡلُ لَدَیَّ وَمَاۤ اَنَا بِظَلَّامٍ لِّلۡعَبِيۡدِ ﴿۲۹﴾ ع

نشي بدليدے وينا زما په خوا کښ او زهٔ نه یم ظلم والا په بندګانو بانديے.

۲۷ په دے ایت کښ دوه حالتونه ذکر کوی ۱ انکار دَ قرين دَ گمراه کولو نه ۲ او گمراهی دَ دغه انسان. دلته دَ قرين نه مراد شيطان دے که تیر شوی ایت کښ دَ قرين نه مراد هم شيطان وی نو فرق دا دے چه هلته شيطانِ جنّی مراد دے او په دے ایت کښ شيطانِ اِنسی مراد دے.

(حکمت) په تیر شوی ایت کښ وَقَالَ قَرِيۡنُهٗ په واو عاطفه سره ذکر کړے وو ځکه چه هغه په وَجَآءَتۡ كُلُّ نَفۡسٍ مَّعَهَا سَآئِقٌ وَّشَهِيۡدٌ باندے عطف وؤ او په دے ایت کښ عطف نه دے ذکر کړے اشاره ده چه دا کلام دَ یو پاره دَ جواب سوال دے یعنی گمراه انسان به اوائي چه اے ربه ځه خو دے شيطان انسی گمراه کړے ووم لکه سورة صافات ۲۸ سبا ۳۱ ص ۶۰ کښ تیر شوی دی نو هغه قرين به دَ خپلے صفائي جواب ورکړی. یعنی ما په دے انسان باندے زور نه دے کړے په گمراهئ کښ بلکه ما صرف دعوت ورکړے دے نو دے پخپل اختیار سره گمراه شوے دے لکه په سورة ابراهيم ۲۲ کښ دی.

۲۸ په دے کښ هم یو حال ذکر کوی معلومه شوه چه مخکښ دَ گمراهانو او دَ انسی جنی شيطانانو په مینځ کښ به په یو بل باندے دعوے کول وی نو الله تعالیٰ به هغوی لره منع کړی په دے قول سره چه لَا تَخۡتَصِمُوا. لَدَیَّ لفظ دَ لَدَیَّ کښ اشاره ده چه دا مقام دَ جزا دے دلته جګړے کول هیڅ فائده نه ورکوی. وَقَدۡ قَدَّمۡتُ اِلَيۡكُمۡ دا اول علت دے دَ لَا تَخۡتَصِمُوا دَ پاره یعنی په واسطه دَ رسولانو او داعيانو دَ حق سره خبر ونه دَ عذاب مادر لیږلے وو تو ستاسو هیڅ عذر نه دے پاتے شوے بلکه په تاسو باندے حجت قائم کړے شوے دے.

۲۹ په دے ایت کښ هم دوه حالتونه ذکر کړے دی او دا علتونه رپاتے په بل مخ)

يَوْمَ نَقُوْلُ لِجَهَنَّمَ هَلِ امْتَلَأْتِ وَتَقُوْلُ

کومه ورځ چه اوبه وايو جهنم ته ايا ته ډک شوے او هغه به اوائي

هَلْ مِنْ مَّزِيْدٍ ﴿۳۰﴾ وَاُزْلِفَتِ الْجَنَّةُ لِلْمُتَّقِيْنَ

ايا څه زيات شته دے . او نزدے به کړے شي جنت متقيانو ته

هم دَ لَا تَخْتَصِمُوا دَپاره دی ع۱ مَا يُبَدَّلُ الْقَوْلُ يعني ما چه کومه فيصله کړيده لکه په سورة صٓ س۸۵ کښ ده نو هغه په هيڅ طريقے سره نه بدليږي نو ستاسو دَ جګړے هيڅ فائده نيشته. لَدَيَّ متعلق دے دَ يُبَدَّلُ سره يا متعلق دے دَ قَوْلُ سره يعني هغه قول چه زما دَ طرف نه مقرر دے. وَمَآ اَنَا بِظَلَّامٍ لِّلْعَبِيْدِ يعني ستاسو دَ اختصام هيڅ فائده نيشته ځکه چه زما په دربار کښ ظلم کول نيشته او اختصام خو دَ دے مقصد دَپاره وی چه حاکم په عدل سره فيصله اوکړی او الله تعالیٰ خو هروخت عدل کوونکے دے او دلته په سورة آل عمران س۱۸۲ او سورة حج س۱۰ او سورة انفال س۵۱ او سورة فصلت س۴۶ کښ هم تير شويدی.

سوال:- لفظ دَ ظلام مبالغه ده يعني ډير ظلم کوونکے نه دے نو دَ دے نه خو دَ لګ ظلم نفی نه معلوميږی او حال دا چه الله تعالیٰ خو هيڅ ظلم نه کوی لکه سورة آل عمران س۱۰۸؟

جواب:- په ډيرو وجوهو سره دے اول دا چه دا صيغه دَ مبالغے نه ده بلکه دا په معنیٰ دَ ذو ظلم سره دے. دويمه دا چه هر صفت چه په جانب دَ الله تعالیٰ کښ وی نو هغه په مبالغے سره وی نو که چرے بالفرض ظلم دَ الله تعالیٰ دَ طرف نه موجود وے نو په مبالغے سره به وے نو دا په طريقه دَ فرض سره شو. دريم دا چه عبيد ئې جمع ويلے ده نو مراد دا چه په دے ډيرو بندګانو باندے که چرے ظلم کولے نو ډير ظلمونه به ترينه جوړ شوے وے.

س۳ په دے ايت کښ هم دَ تخويف اخروی نه دوه حالتونه ذکر کوی ع۱ دَ جهنم دَکيدل ع۲ طلب دَ زياتی. يَوْمَ نَقُوْلُ يوم منصوب، ظرف دے دَپاره دَ مَا يُبَدَّلُ يا دَ ظَلَّامٍ دَپاره يا فعل ئې پټ دے يعني "انذرهم" او يروه دوی لره. هَلِ امْتَلَأْتِ دا استفهام دَ تقرير او تحقيق دَپاره دے او پکښ خبر ورکول دی جهنميانو ته په وسعت دَ جهنم سره چه دا څوک ګمان اونه کړی چه جهنم کښ دومره ډير خلق به څنګه ځائيږی؟ او دا تپوس دَ جهنم، دَ وعدے دَ وجے نه دے چه هغه سورة ص س۸۵ سورة اعراف س۱۸ سورة هود س۱۱۹ او سورة سجده س۱۳ کښ شته دے. هَلْ مِنْ مَّزِيْدٍ بعض مفسرينو ويلے دی

غَيْرَ بَعِيْدٍ ﴿٣١﴾ هٰذَا مَا تُوْعَدُوْنَ لِكُلِّ أَوَّابٍ

| نه به وي لرې. | دا هغه څيز دې چه تاسو سره يې وعده کيدله هر | تو به کوونکي ګرځ |
|---|---|---|

چه دا استفهام انکاري دې نو اقرار شو په ډکیدلو باندې چه باقي ځائې نیشته او اکثر مفسرینو ویلې دي چه دا استفهام طلبي دې یعنې طلب د زیاتو خلقو کوي نو اشاره ده چه ډک شوې به نه وي نو اعتراض داکیدې شي چه وعده د الله تعالی خو پوره نه شوه نو جواب ته په هغه حدیث صحیح کښ اشاره ده چه جهنم اوائي هل من مزید نو رب العزت به خپل قدم په هغې کښ کیدی نو بعض اجزا به د بعضو سره جوخت شي او اوبه وائي بس بس ستا په عزت او کرم باندې قسم دې ( او قدم په معنی ظاهري سره د الله تعالی د پاره ثابت دې او کیفیت یې الله تعالی ته معلوم دې تشبیه تمثیل او تاویل کول یې جائز نه دي او دا مذهب د سلف صالحینو دې ) ۔

ف ٣١ د دې ایت نه تر ٣۵ پورې بشارت اخرویه دې په ذکر د اوو احوالو د جنت او پنځه صفاتو د اهل جنت سره ۔ په دې ایت کښ دوه حالات د جنت ذکر دي ۱ ازلفت ۲ غیر بعید او یو صفت د جنتیانو ذکر دې ۔

اُزْلِفَتْ یعنې جنت به په میدان حشر کښ رانزدې کړې شي متقیانو ته دا د دوی د اکرام او د عزت د پاره څکه چه دوی ته د مزل کولو تکلیف محسوس نه شي او الله تعالی قادر دې چه جنت د یو ځائې نه بل ځائې ته نقل کړي دلته دویم قول قرطبي ذکر کړې چه مراد دا دې چه د دنیا په ژوند کښ د متقیانو زړونو ته جنت نزدې دې دوی د هغې د پاره محنت کوي لیکن دا قول د سوق د ایاتو نو نه مخالف دې سورة شعراء ف ٩ کښ تیر شوې دي ۔

غَيْرَ بَعِيْدٍ مفعول مطلق دې د پاره د ازلفت په تقدیر د مصدر سره ازلافا غیر بعید یا حال دې د جنت نه او جنت په تاویل د مکان سره دې د دې وجې نه بعیدة یې نه دې ذکر کړې ۔

بیا لفظ د غیر بعید د تاکید د پاره دې یعنې که وهم اوکړې شي چه ازلاف (نزدیکت) به لګ وخت د پاره وي نو جواب اوشو چه دا ازلاف همیشه د پاره دې چه جنت به د دوی نه هیڅ وخت بعید نه وي ۔

حَفِيْظٍ ﴿۳۲﴾ مَنْ خَشِيَ الرَّحْمٰنَ بِالْغَيْبِ وَجَآءَ

چه ساتنه کوؤنکے دے۔ هغه څوک چه ویره کوی دَ رحمان ذات نه په حالت نه لیدلو کښ او راغلے وی

بِقَلْبٍ مُّنِيْبِ ﴿۳۳﴾ ادْخُلُوْهَا بِسَلٰمٍ ۭ ذٰلِكَ

په زړه حق ته گرځیدونکے (او به ویلے شی) داخل شئ جنت ته په سلامتیا سره - دا

۳۲ په دے کښ یوحال دَ جنت او دوه صفتونه دَ جنت والو ذکر دی۔ هٰذَا اشاره ده جنت ته په تاویل دَ مکان دَ نعمتونو۔ مَا تُوْعَدُوْنَ دا وعده دَ الله تعالیٰ دَ طرف نه په قران کریم کښ په هغه آیاتونو کښ ذکر ده چه په تقویٰ سره جنت حاصلیږی او هغه ډیر آیتونه دی لکه سورة آل عمران ۱۳۳ حجر ۴۵ دُخان ۵۱ ذاریات ۱۵ طور ۱۷۔

لِكُلِّ اَوَّابٍ دا بدل دے دَ للمتقین نه او په منځ کښ جمله معترضه ده یا دا متعلق دے په توعدون پورے او مَقُوْلًا لَهُمْ مقدر دے یعنی په دا سے حال چه ویلے کیږی به دوی ته دا۔ اَوَّابٍ هغه څوک دے چه دَ گناه نه یے توبه کړے وی لیکن چه ورته یاد شی نوبیا هم استغفار غواړی او تسبیح هم ډیره وائی۔ او په اختتام دَ هر مجلس کښ دا کلمه وائی سُبْحَانَ اللهِ وَبِحَمْدِهٖ اَللّٰهُمَّ اِنِّیْ اَسْتَغْفِرُكَ وَاَتُوْبُ اِلَيْكَ۔ حَفِيْظٍ حفاظت کوؤنکے دَ الله تعالیٰ دَ حقوقو او دَ اوامرو یا یاد ساتونکے دَ گناهونو خپلو دَ پاره دَ دے چه استغفار تربیه کوی یا حفاظت کوؤنکے دَ عمر خپل چه خپل اوقات نه ضائع کوی۔

۳۳ په دے کښ دَ متقیانو دوه صفتونه ذکر کوی۔ تیر شوی صفتونه عبادات لسانیه وو او دا صفتونه عبادات قلبیه دی، ۱ خشیت ۲ انابت۔ مَنْ خَشِيَ بدل دے یا صفت دے دَ پاره دَ اواب یا مبتدا حذف ده یا خبر ئے مبتدا حذف دے او جواب دَ ندا په روستو آیت کښ دے۔ خَشِيَت خاص دے دَ خوف نه ځکه چه خشیت کښ معنیٰ دَ تعظیم دَ مخشی عنه وی سره دَ خوف نه دَ دے وجے نه لفظ دَ الرَّحْمٰن یے ذکر کړو دَ پاره دَ افادے دَ عظمتِ شان دَ هغهٔ۔ بِالْغَيْبِ حال دے دَ مفعول نه یعنی الله تعالیٰ یے لیدلے نه دے بلکه دَ عقلی او نقلی او وحی دلیلونو په وجه سره په الله تعالیٰ باندے ایمان لری یا حال دے دَ فاعل نه یعنی په حالت دَ خلوت کښ هم دَ الله تعالیٰ نه خشیت کوی لکه چه دَ خلقو په مخکښ هم کوی یعنی منافقت نه کوی۔ وَجَآءَ بِقَلْبٍ مُّنِيْبٍ هر کله چه خشیت تختیدلو لره مستلزم دے نو وهم راغے چه دا بنده دَ ویرے دَ وجے دَ الله تعالیٰ نه تختنه کوی نو ورپسے یے دَ وهم دَ دفع کولو دَ پاره دا صفت ذکر کړو۔

يَوْمُ الْخُلُوْدِ ﴿۳۴﴾ لَهُمْ مَّا يَشَآءُوْنَ فِيْهَا وَلَدَيْنَا

ورځ دَ هميش والى دَه . دوى لره به هغه څه وى چه دوى غواړى په هغې كښې او زمونږ سره شته

مَزِيْدٌ ﴿۳۵﴾ وَكَمْ اَهْلَكْنَا قَبْلَهُمْ مِّنْ قَرْنٍ

زياتى . او ډير هلاك كړے دى موږ دَ دوى نه مخكښې ــ سيړے

وَجَآءَ اه اشاره ده چه خشيت دَ الله تعالىٰ مستلزمه دے رجوع الى الله لره - او مراد دَ جَآءَ توجه كول دى الله تعالىٰ ته په دنيا كښې او بعض مفسرينو دا صفت روستو دَ مرګ نه ويلے دے ليكن هغه مناسب نه دے - مُنِيْبٍ چه دَ ضد او عناد نه خالى وى او مخلص طلب ګار دَ حق وى نو منيب دے - او سَلِيْمٌ چه سورة صافات ۸۴ كښې ذكر شو يد ے په صفت دَ ابراهيم عليه السّلام كښې هغه مرتبه دَ منيب نه اوچته ده چه هغه داسے زړه دے چه دَ توجه او دَ شغل لغير الله نه بالكل خالى دے -

۳۴ دا بشارت دے په دوه حالتونو سره تير شوى صفتونو والو ته - ادْخُلُوْهَا دلته يقال لهم ( او يه ويلے شى دوى ته ) پټ دے يا حرف ندا دَ مَنْ خَشِيَ نه مخكښې پټ ده او دا مقصود بالنداء دے . بِسَلٰمٍ سلامتيا دَ عذابونو او هر قسم غمونو نه او سلام ويل دَ طرف دَ الله تعالىٰ او ملائكو نه دے ټولو ته دا لفظ شامل دے . يَوْمُ الْخُلُوْدِ مراد دا دے چه داسے ورځ ده چه په هغې كښې هميش والے حاصليږى -

۳۵ په دے ايت كښې هم بشارت دے په ذكر دَ دوه حالتونو سره فِيْهَا متعلق دے په يشآؤن پورے او مشيئت او اشتها ګانے په جنت كښې دَ دنيا په نسبت به ډيرے وى - يا متعلق دے په لهم پورے يعنى په جنت كښې به ټول مشتهيات او شوقونه پوره كيږى -

وَلَدَيْنَا مَزِيْدٌ لفظ دَ لدينا دليل دے چه دا جنتيان په هغه نعمتونو باندے دَ پوهے نه خبر نه دى ځكه هغه خاص دَ الله تعالىٰ سره دى -

مَزِيْدٌ په معنىٰ دَ زيادت دے لكه سورة يونس ۲۶ كښې يا اسم مفعول دے يعنى هغه خيز چه زياتى كيږى په دَ دوى په تمنا ګانو باندے مراد ترينه هغه نعمتونه دى چه دَ دوى په زړه كښې هم نه وى تير شوى او هغه ديدن دَ الله تعالىٰ دے په ډيره اكرام او عزت سره لكه چه احاديثو مرفوعه كښې ذكر دے او دا رنګ خاص قسم حورے دى -

هُمْ اَشَدُّ مِنْهُمْ بَطْشًا فَنَقَّبُوْا فِي الْبِلَادِ ط

چه هغوی سخت وو دَ دوی نه په نیولو کښې نو ورتلو دوی په ښارونو کښې

هَلْ مِنْ مَّحِيْصٍ ﴿۳۶﴾ اِنَّ فِيْ ذٰلِكَ لَذِكْرٰى لِمَنْ

آیا شته دے ځائے دَ تیختې. یقینًا په دے کښې ضرور نصیحت دے هغه چا لره

كَانَ لَهٗ قَلْبٌ اَوْ اَلْقَى السَّمْعَ وَهُوَ شَهِيْدٌ ﴿۳۷﴾ وَ

چه هغه لره عقل وی یا ږدی غوږ او زړه ئے حاضر وی. او

۳۶ دا تخویف دینوی دے متعلق دے دَ ۱۲ سره. او دَ بشارت نه ئے روستو ذکر کړو مناسبت ئے دا دے چه تیرشوی صفات دَ متقینو په چا کښې نیشته نو هغوی په دنیا کښې هم تباه حاله دی. اَشَدُّ مِنْهُمْ بَطْشًا قوت مالی او بدنی او دَ هغې وجې نه په خلقو باندے ظلم کولو ته دا لفظ شامل دے او په دے کښې اشاره ده چه په مادی او دنیوی طاقتونو سره دَ عذاب دَ الله تعالیٰ نه بچ کیدل نشی کیدے. فَنَقَّبُوْا فِي الْبِلَادِ تنقیب په اصل کښې سوری کول او په سرنګونو کښې داخلیدلو ته وئیلے کیږی مراد دا دے چه په دُنیا کښې کوټ په کوټ باندے په ډیرو ښارونو کښې دَ تجارتونو او مالونو دَ پاره ګرځیدلے وو یا قسم قسم حیلے ئے لټولے وے دَ مرګ نه دَ بچ کیدلو دَ پاره سُرنګونه، تاخانے، مورچے ئے دَ خپل حفاظت دَ پاره جوړے کړے وے. هَلْ مِنْ مَّحِيْصٍ دا استفهام انکاری دے دَ پاره دَ ازالے دَ غفلت ئے ذکر کړے دے یعنی دَ هغوی تنقیب فی البلاد سره هیڅ فائده اونشوه نو اے موجوده خلقو تاسو غافل نه شئ. مَحِيْصٍ ځائے دَ تختیدلو دَ مرګ نه، نو ظرف دے یا تختیدل نو مصدر میمی دے او جواب ئے په لفظ دَ لا سره پټ دے.

۳۷ په دے آیت کښې ترغیب دے قرآن ته او دے سورت ته ځکه چه ذٰلِكَ اشاره ده ټول قرآن ته یا هغه مضمون ته چه په دے سورت کښې ذکر شویدے یا اشاره ده من قرن ته.

ربط هرکله چه تیرشوی آیت کښې هلاکت دَ اقوام مکذبه ته ئے اشاره اوکړه نو په دے آیت کښې دَ هغه قومونو دَ واقعاتو نه ذکرٰی (عبرت) حاصلولو دَ پاره طریقه ذکر کوی.

اوله طریقه لِمَنْ كَانَ لَهٗ قَلْبٌ، تنکیر دَ پاره دَ تعظیم دے او مراد دَ قلب نه عقل دے په ذکر دَ محل او مراد ترینه حال دے او دا قرطبی دَ مجاهد نه روایت کړے دے یا مراد دَ دے نه ژوندے زړه دے لکه سورة یٰسٓ ۷۰ کښې دَ یحییٰ بن معاذ نه قرطبی نقل

لَقَدْ خَلَقْنَا السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضَ وَمَا بَيْنَهُمَا فِيْ

يقيناً پيدا کړي دي موږ اسمانونه او زمکه او هغه چه د دے په مينځ کښ دي په

سِتَّةِ اَيَّامٍ ۖ وَّمَا مَسَّنَا مِنْ لُّغُوْبٍ ﴿۳۸﴾ فَاصْبِرْ عَلٰى

شپږو ورځو کښ او نه دے رسيدلے موږ ته هيڅ ستړے والے. نو صبر کوه په

کړے دي چه زړونه دوه قسمونه دي اول هغه زړه چه د دنيا د اشغالو او فکرونو نه ډک وي نو هر کله چه د آخرت خبره کار ورته مخے له راشي نو حيران شي چه څه اوکړم. او دويم هغه زړه چه د هيبتونو د آخرت نه ډک وي نو کله چه ورته د دنيا څه کار مخے له راشي نو نه پوهيږي چه څه اوکړم د ډير د شغل نه په آخرت باندے. نو په دے آيت کښ دا دويم قسم زړه مراد دے. اَوْ اَلْقَى السَّمْعَ وَهُوَ شَهِيْدٌ دا دويمه طريقه ده غوږ کيخودل په داسے طريقے سره چه بل څه خبره په هغے باندے نه اوري ديته القاء السمع وائي گويا چه د قران اوريدل داسے دروند او لوئے کار گڼړي چه غوږ ئے ورله خکته غورځولے دے. وَهُوَ شَهِيْدٌ مراد د دے نه توجه د زړه ده ځکه چه صرف کيخودل د غوږ کافي نه دي تر څو پورے چه د زړه توجه نه وي.

فائده :- د قران نه د وعظ او فائدے اغستلو د پاره دوه درجے دي اوچته درجه دا ده چه انسان په قران کښ تدبر او سوچ کوي "افلا يتدبرون القران" - "افلم يدبروا القول" باندے عمل کوي. دويمه درجه دا ده چه خه په توجه د زړه سره د بل چا نه ئے اوري. اوله درجه د اجتهاد ده او دويمه درجه د اتباع ده ځکه چه د قران اوريدل او د هغے اطاعت کول اتباع ده او د دے نه چه چا د تقليد اثبات کړيدے نو هغه د تقليد معروف معنى نه جاهل دے يا تلبيس او تحريف کوي (العياذ بالله).

س۳۸ دا دليل عقلي دے د اثبات د قيامت د پاره (ربط) يعني اول خو د قران نه ذکري او نصيحت اغستل دي او په هغے پسے د عقلي دليلونو د آسمان او زمکے نه استدلال کول دي او دا عطف دے په س۱۶ باندے. فِيْ سِتَّةِ اَيَّامٍ دا لسے په سورة فرقان س۵۹ السجده س۴ او اعراف س۵۴ يونس س۳ هود س۷ او حديد س۴ کښ ذکر شويدي په مقام د تفصيل د نعمتونو لکه سورة فرقان او مقام د اثبات قيامت لکه سورة السجده او دا سورت په دے کښ ئے مابينهما او سره ذکر کړے دے او په نورو سورتونو کښ په ذکر د آسمانونو او زمکے باندے اکتفاء کړيده.

وَمَا مَسَّنَا مِنْ لُّغُوْبٍ په دے کښ رد دے په وهم د منکرينو د بعث بعد الموت باندے يعني دا وهم دِ څوک نه کوي چه الله تعالىٰ به په اول پيدائش باندے (ړاڼے په بل مخ)

مَا يَقُوْلُوْنَ وَسَبِّحْ بِحَمْدِ رَبِّكَ قَبْلَ طُلُوْعِ

هغه خبرو باندے چه دوی وائی او تسبیح وایه سره د حمد د رب ستا نه مخکښ د ختلو

الشَّمْسِ وَقَبْلَ الْغُرُوْبِ ﴿۳۹﴾ وَمِنَ الَّيْلِ

د نمر نه او مخکښ د پټیدلو د نمر نه ۔ او د شپے نه

ستړے شویوی نو دویم کرت پیدائیش نه شی کولے او دا رنګ رد دے د یهودیانو په قول باندے هغوی وائی چه الله تعالیٰ داتوار د ورځ نه ترجمعے ورځ پورے په پیدائش کښ مشغول وؤ نو د خالی په ورځ یئے استراحت او ارام اوکړو او دا ئے په سورة احقاف سـ ۳۲ کښ هم تیر شویدی او په دے سورت سـ ۱۷ کښ ذکر دی چه الله تعالیٰ په اول پیدائیش د مخلوق باندے ستړے شوے نه دے ۔

سـ ۳۹ سـ د دے نه تر اخره پورے پنځه اوامر ذکر کوی د پاره د تشجیع د دعوت کوؤنکی۔ په دے دوه ایاتونو کښ درے اوامر دی۔ په دے ترتیب کښ اشاره ده چه د داعی په ذمه باندے دعوت کول دی او هر کله چه په دعوت کښ رکاوټ پیدا شی نو بیا صبر کول او په بندګے د الله تعالیٰ کښ مشغولیدل دی او صبر او تسبیح حمد ذریعه ده د پاره د استنتیا د دعوت کولو ۔ عَلٰى مَا يَقُوْلُوْنَ دا عام دے قول د یهودیانو ته هم شامل دے کوم چه مخکښ ذکر شو او قول د منکرینو د بعث بعد الموت ته هم چه د سورت په ابتدا کښ ذکر شویدے او دا رنګ په نبی صلی الله علیه وسلم باندے طعنونه کول او هغه ته کنځل کول دے ټولو ته شامل دے ۔ وَسَبِّحْ بِحَمْدِ رَبِّكَ عمل کول په دے امر باندے په ډیرو طریقو سره دی اول سبحان الله وبحمده او سبحان الله والحمد لله په ژبه ویل دویم خلقو ته د دے بیان کول دریم مونځ کول ۔ تسبیح کښ اشاره ده د صفاتو د نقصان نه الله تعالیٰ پاک ګڼړل او حمد کښ اشاره ده تمام صفتونه د کمال (چه الوهیت دے) الله تعالیٰ لره په عقیده کښ لرل ۔ قَبْلَ طُلُوْعِ الشَّمْسِ وَقَبْلَ الْغُرُوْبِ وخت د فجر او وخت د عصر ته اشاره ده دا دوه ئے مخکښ ذکر کړل د وجے د ډیر فضیلت او اهمیت د دے دواړو نه لکه چه ډیرو احادیثو صحیحه کښ د دے دواړو فضیلتونه ذکر دی او دا وختونه د اجتماع د ملائکو د شپے او د ورځے دی او دا وختونه د غفلت د خلقو دی په اول وخت کښ اشاره ده شکر د نعمت د الله تعالیٰ ته چه شپه په خیر سره تیره شوه دویم کښ اشاره ده چه ورځ هم اختتام ته رسیدونکے ده په خیر سره ۔ او اشاره ده

فَسَبِّحْهُ وَاَدْبَارَ السُّجُوْدِ ﴿۴۰﴾ وَاسْتَمِعْ يَوْمَ يُنَادِ

تسبیح وایه دَهغه او روستو دَ سجدے کولو نه - او غوږ کیږده هغه ورځ چه اواز به اوکړی

الْمُنَادِ مِنْ مَّكَانٍ قَرِيْبٍ ﴿۴۱﴾ يَوْمَ يَسْمَعُوْنَ

آواز کوونکے دَ مکان نزدے نه هغه ورځ به دوی اوری

چه په طلوع دَ نمر سره وخت دَ موځ دَ صبا ختمیږی او دا رنګ په غروب سره وخت دَ موځ دَ مازیګر ختم شویدے. او په دویم آیت کښ امر په تسبیح سره په دوه وختونو کښ ذکر شویدے. اللیل او ادبار السجود - نو مراد دَ اللیل نه وخت دَ ماښام او ماسخوتن دے او وخت دَ تهجد هم پکښ داخل دے او دا رنګ دَ شپے په هره حصه کښ چه بیدارشی او دَ الله تعالیٰ تسبیح او حمد وائی هغے ته هم شامل دے. او مِنْ لفظ کښ اشاره ده چه دَ شپے څه حصه دَ خوب دَ پاره صرف کول سنت دی. وَاَدْبَارَ السُّجُوْدِ دَ اکثر صحابه او تابعینو نه روایت دے چه مراد دَ دے نه دوه رکعتونه سنت روستو دَ فرض دَ ماښام نه دی او ابن کثیر په دے کښ روایت مرفوع هم نقل کړیدے او دویم قول دا دے چه مراد دَ دے نه په هر فرض موځ پسے سبحان الله او الحمد لله او الله اکبر لوستل دی او په دیکښ روایات مختلف دی یو دا چه هره کلمه دَ دے نه دری دیرش ۳۳ کرته وئیل دی دویم دا چه اوله او دویمه هره یوه دری دیرش ۳۳ کرته او الله اکبر څلور دیرش ۳۴ کرته او دریمه دا چه هره یوه لس لس کرته وئیل - هر روایت باندے عمل کول صحیح دی لیکن سنت دا دے چه فرض موځ پسے په دا وائی او چا چه دَ فرضو په ځائے په سنت موځ پسے اُویل او خیال کوی چه دا سنت طریقه ده نو دا بدعت کوونکے دے قول او طریقه دَ رسول الله صلّی الله علیه وسلّم ئے بدل کړل - دریم قول دا دے چه مراد دے نه فرض موځ پسے سنت او نفل کول دی لیکن دَ هغے نه دَ فجر او دَ عصر موځ مستثنیٰ دے په سبب دَ صحیح احادیثو سره اَدْبَارَ په زور دَ الف سره جمع دَ دبر ده دَ هر څیز روستنی حصے ته ویلے کیږی او دا رنګ هغه څیز چه روستو وی دَ یل څیز نه هغے ته هم ویلے کیږی دلته ئے په دریے وارو روایتونو باندے روستنی معنیٰ مراد ده.

سلسله ۳۳ دا څلورم امر دے داعی ته مراد تربینه انتظار دَ ورځ دَ قیامت دے دَپاره دَ حساب وَاسْتَمِعْ يَوْمَ يُنَادِ مراد استماع نه انتظار کول دی یعنی دَ ورځ دَ قیامت انتظار اوکړه یا استماع په خپله معنیٰ ده یعنی غوږ کیږده حالاتو دَ هغه ورځ ته ریائے په بل مخ)

الصَّيۡحَةَ بِالۡحَقِّ ؕ ذٰلِكَ يَوۡمُ الۡخُرُوۡجِ ﴿۴۲﴾ اِنَّا

| چغه | په رشتیا | دا | ورځ ده | دَ راوتلو (دَ قبرونو نه) . | یقینًا |
|---|---|---|---|---|---|

نَحۡنُ نُحۡیٖ وَنُمِیۡتُ وَاِلَیۡنَا الۡمَصِیۡرُ ﴿۴۳﴾ یَوۡمَ

| مونږ | ژوندی کول او مړه کول کوؤ | او خاص مونږ ته راګرځیدل دَ خلقو دی . په هغه ورځ |
|---|---|---|

تَشَقَّقُ الۡاَرۡضُ عَنۡهُمۡ سِرَاعًا ؕ ذٰلِكَ حَشۡرٌ

| چه او به چوی | زمکه | دَ دوی نه منړے په وهی ، | دا | راجمع کول دی |
|---|---|---|---|---|

نو دَ یوم نه مخکښې احوال لفظ پټ دے او که یوم ظرف شی دَ پاره دَ استمع نو دا معنٰی مناسب نه ده . الۡمُنَادِ مراد دَ دے نه اسرافیل یا جبرئیل یا بل ملک دے په اختلاف دَ روایاتو سره مِنۡ مَّكَانٍ قَرِیۡبٍ یعنی هر انسان به دا آواز داسے اوری لکه چه هغه ته نزدے وی یَوۡمَ یَسۡمَعُوۡنَ الصَّیۡحَةَ دَ یَوۡمَ یُنَادِ نه بدل دے او په دے سره دهم دفع کوی یعنی که وهم اوکړیشی چه منادی خو به آواز دَ قریب نه کوی لیکن کیدیشی چه دا خلق دَ مرګ یا دَ غفلت دَ وجے نه نه آوری نو دَ دے جواب ئے اوکړو . الصَّیۡحَةَ نه مراد دویمه شپیلۍ ده دَ پاره دَ بعث بعد الموت په قرینے دَ الۡخُرُوۡجِ سره . بِالۡحَقِّ دا متعلق دے په الصیحه پورے یا متعلق دے په یسمعون پورے بِنا په اول دَ الۡحَقِّ نه مراد بعث بعد الموت دے او بِنا په دویم دَ الۡحَقِّ نه مراد یقین دے . یَوۡمُ الۡخُرُوۡجِ هغه خروج چه په سلا کښې ذکر کړے وؤ او دا نوم دَ ورځ دَ قیامت دے . او په دے آیاتو کښې دَ ورځ دَ قیامت څلور احوال ذکر کړے دی .

سلا ۴۳ په دے آیاتو کښې دَ قیامت نور څلور حالات ذکر کوی . او په دے کښې اثبات دَ قیامت دے یعنی په احیاء او اماتت باندے قادر دے نو په دوباره ژوندی کولو خو ضرور قادر دے .

یَوۡمَ تَشَقَّقُ عَنۡهُمۡ دا تفصیل دَ حال دَ خروج دے او حدیث دَ مسلم کښې په فضیلت دَ نبی صلی الله علیه وسلم کښې ذکر دی چه زما نه دَ ټولو نه مخکښې زمکه اوچوی .

سِرَاعًا یعنی دا عی طرف ته به په منړه سره درځی لکه سورة ابراهیم سلا ۴۳ سورة قمر سلا ۸ او سورة معارج سلا ۴۳ کښې دی .

عَلَیۡنَا متعلق دے په یسیر پورے او مخکښې راوړے دے دَ پاره دَ تخصیص

عَلَيْنَا يَسِيْرٌ ۝٤٤ نَحْنُ اَعْلَمُ بِمَا يَقُوْلُوْنَ

په مونږ باندے اسان . مونږ ښهٔ پوهه يو په هغه خبرو باندے چه دوی وائي

وَمَآ اَنْتَ عَلَيْهِمْ بِجَبَّارٍ قف فَذَكِّرْ بِالْقُرْاٰنِ

او نه يئ ته په دوی باندے زور کوونکے نو بيانوه قران

مَنْ يَّخَافُ وَعِيْدِ ۝٤٥

هغه چاته چه ويره کوی دَ عذاب زما نه

يعنی خاص په الله تعالیٰ باندے اسان دے لکه سورة روم ۲۷ کښ ذکر دی .

۴۵ دا تسلی ده رسول الله صلی الله عليه وسلّم ته په دوه طريقو سره اول داچه نَحْنُ اَعْلَمُ بِمَا يَقُوْلُوْنَ يعنی دا منکرين چه انکار کوی ستا تکذيب کوی يا تا ته بدد ويناکوی نو الله تعالیٰ ته دَ هغے خهٔ علم شته عذاب ورکولے شی ليکن ستا امتحان کوی - وَمَآ اَنْتَ عَلَيْهِمْ بِجَبَّارٍ جمله خبريه په خپله معنیٰ سره ده يعنی ته په دوی باندے زور نشے کولے چه ايمان راوړی او دا رنګ ته په جبر کولو سره مکلف خو نه يئے نو دَ دوی په ايمان نه راوړلو سره په تا باندے ګناه نيشته - دا جمله انشائيه نه ده لکه بعض مفسرينو ويلے دی چه دَ دے معنیٰ دا ده چه جبر مکوه او بيا دا ايت يئے منسوخ کړے دے دا قول صحيح نه دے.

فَذَكِّرْ بِالْقُرْاٰنِ دا په نظم امر دے يعنی دَ داعی په ذمه باندے جبر کول خو نيشته ليکن دعوت او تبليغ دَ دهٔ ذمه واری ده - دَ دے نه مراد صرف تلاوت او قراءت دَ قران نه دے بلکه په قران بيانولو سره توحيد او دَ قيامت مسئلے واضح کول دی او دا تذکير په طريقه دَ دعوت تبليغ او درس وتدريس سره دے او دَ ذکر الهی لويه طريقه تذکير بالقران دے او دا امر په سورة انعام ۷۰ او سورة ذاريات ۵۵ سورة طور ۲۹ سورة اعلیٰ ۹ سورة الغاشيه ۲۱ کښ هم موجود دے.

معلومه شوه چه تذکير بالقران ډير لوئے عمل دے چه الله تعالیٰ په هغے خپل نبی لره بار بار مخاطب کړځولے دے.

مَنْ يَّخَافُ وَعِيْدِ تخصيص دَ دے په اعتبار دَ فائدے اخستلو سره دے دا تقييد قيد احترازی سره نه دے يعنی تذکير بالقران خو راپاتے په بل مخ)

عام دے که څوک ترینه فائده اخلی اوکه نه اخلی لیکن هغه په تذکیر کښې مخکښې کول پکار دی چه په هغوی کښې انابت وی او امید دَ استفادے وی لکه دَ سورة عبس په ابتداء کښې دے ترتیب ته اشاره ده۔

دَ قتاده نه روایت کړے شوے دے چه هغه به ویل

" اَللّٰهُمَّ اجْعَلْنَا مِمَّنْ يَخَافُ وَعِيْدَكَ وَيَرْجُوْا مَوْعُوْدَكَ يَا بَارُّ يَا رَحِيْمُ "

ختم شو تفسیر دَ سورة قٓ په فضل دَ الله تعالیٰ سره۔

| سُوْرَةُ الذّٰرِیٰتِ ۵۱ مَکِّیَّةٌ ۶۷ | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِیْمِ | اٰیَاتُهَا ۶۰ رُکُوْعَاتُهَا ۳ |
| --- | --- | --- |

وَالذّٰرِیٰتِ ذَرْوًا ﴿۱﴾ فَالْحٰمِلٰتِ وِقْرًا ﴿۲﴾ فَالْجٰرِیٰتِ

قسم دے په هواګانو الوځوونکو په الوځولو سره بیا پورته کوونکو بوج لره بیا چلیدونکو

یُسْرًا ﴿۳﴾ فَالْمُقَسِّمٰتِ اَمْرًا ﴿۴﴾ اِنَّمَا تُوْعَدُوْنَ

په اسانه سره بیا تقسیم کوونکی کارونو لره یقینًا هغه چه تاسو سره ئې وعده کیږي

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِیْمِ

## سورة الـذاريات

ربط دَ دے سورة دَ مخکښ سره دادے چه په دیکښ دَ مخکښ نه ترقی ده په ډیرو وجو سره اوله وجه داچه هلته کښ کذٰلك الخروج ذکر کړے وو نو دلته انما توعدون لصادق دے دا ترقی ده په دعویٰ دَ بعث بعد الموت کښ. دویمه وجه، هغه سورت کښ وؤ وسبح بحمد ربك او په دے سورت کښ ففروا الی الله دے دا ترقی ده په دعویٰ دَ توحید کښ. دریمه وجه هلته کښ خَلْق دَ انسان ئې ذکر کړے دے او دلته حکمت دَ خلق دَ انسانانو ذکر دے. څلورمه وجه، په هغه سورت کښ صرف دلیلونه وؤ په اثبات دَ بعث باندے نو په دے کښ دَ دلیلونو سره شواهد هم دی. پنځمه وجه، هلته کښ ذکر دَ اقوام مکذبه وؤ اجمالًا دلته دَ هغے نه دَ پنځو قومونو عذابونه ئې ذکر کړل.

دعویٰ دَ دے سورت اثبات دَ بعث بعد الموت دے په ۲۳ کښ په ذکر دَ پنځه شواهدو او په عقلی دلیلونو او په ذکر دَ عذاب دَ پنځه قومونو سره. او دعویٰ دَ توحید په ۵۰، ۵۱، ۵۷ کښ ده او اوؤ اسماء حسنیٰ ذکر کړے دی.

خلاصه دَ سورت دا ده چه دا سورت تقسیم دے دوه بابونو ته اول باب تر ۲۳ پورے دیکښ پنځه شواهد دی او په مینځ کښ دعویٰ دَ سورت ده بیا پنځه حالات دَ مکذبینو په طریقه دَ زجر سره بیانوی بیا بشارت په ذکر دَ پنځه صفاتو دَ متقینو سره بیا درے عقلی دلیلونه چه په هغے کښ پنځه حالات ذکر دی او بیا قسم ذکر دے. دلیلونه او قسم دَ پاره دَ اثبات دَ بعث بعد الموت دی (تفسیر ۱، ۲، ۳، ۴ دا څلور قسمونه دی په طریقه دَ شواهدو ر پاسے په بل مخ)

لَصَادِقٌ ﴿۵﴾ وَّاِنَّ الدِّيْنَ لَوَاقِعٌ ﴿۶﴾ وَالسَّمَآءِ

ضرور رشتیا دے او یقینًا جزا ضرور واقع کیدونکے ده. او قسم کوم په آسمان باندے

سره په روستو دعوی باندے او دا صفتونه ټول دَ هواګانو دی یعنی هواګانے ذورے وغیره
اَلوزَوی بیا دَ وریځو بوجونو پورته کوی بیا روانے وی په نرمۍ سره بیا تقسیمونکی دَ
وریځو او دَ بارانونو وی پکښ توجیه باندے موصوف یو دے چه هواګانے دی او صفتونه ئې
ډیر دی او فَا دَ پاره دَ ترتیب دَ دے کارونو ده یا دا صفتونه دَ موصوفاتو جدا جدا دی
یعنی ذَارِیَاتِ صفت دَ هواګانو دے او حَامِلَاتِ صفت، دَ وریځو دے او جَارِیَاتِ
صفت دَ کشتو دے او مُقَسِّمَاتِ صفت دَ ملائکو دے او دا روایت کړے شوید دے
دَ علی او عمر رضی الله عنهما نه لکه چه ابن کثیر ذکر کړے دی او بیا په دے تفسیر
باندے فَا دَ پاره دَ ترتیب ده په قسم کښ نه په مقسم به کښ- او ذَرْوًا مفعول مطلق
دے او وِقْرًا مفعول به دے او جمع ئې ذکر نه کړه ځکه یو جماعت بوج دَ وریځو پورته
کوی یو بوج دَ باران او یُسْرًا مفعول مطلق دے په موصوف محذوف سره یعنی جَرْیًا
یُسْرًا او اَمْرًا مفعول به دے او دَ مفرد راوړلو وجه ئې په وقرا کښ ذکر شوه۔
فائده ۱:- په سورة صافات او نازعات او مرسلات او په دے سورت کښ په قسم کښ دَ
جمع سالم مؤنث صیغے ذکر کړے دی ځکه دَ دے نه مراد مختلف حالات دی او جمع
مؤنث په حالتونو باندے ښکاره دلالت کوی۔
ف ۵ - ۶ دا جواب قسم او دعوی دَ سورت ده - مَا یا موصوله دے یا مصدریه دے او
مراد دَ دے نه خروج دے دَ قبرونو نه چه دَ هغې وعده په سورة قٓ کښ ذکر شویده
او وعده په جمله خبریه سره وه دَ دے وجے نه دَ هغې وصف ئې صادق ذکر کړو
ځکه چه صدق او کذب په اخبار و کښ راځی - وَاِنَّ الدِّيْنَ یعنی صدق دَ وعدے دَ
بعث بعد الموت دَ پاره دَ جزا ورکولو دے دَ دے وجے نه وروستو وقوع دَ جزا ئې
ذکر کړه - او مناسبت دَ مقسم به دَ جواب قسم سره دا دے لکه څه رنګ چه
الله تعالی په ذریعه دَ هواګانو دوړے خورے کړی او بیا ترینه وریځے جوړے کړی
او بیا ئې په مینځ دَ آسمان او زمکه کښ روانے کړی او بیا ئې دَ باران په صورت کښ
زمکے ته واپس را اولیږی دا رنګ الله تعالی قادر دے چه دا انسانان ذرے ذرے
کړی او بیا ئې راجمع کړی او ارواح ورته په آسانتیا سره راولی او جزا او سزا ورباندے
تقسیم کړی - یا دا چه هغه ذات چه دَ هواګانو او وریځو او کیشتو او ملائکو نه مختلف

ذَاتِ الْحُبُكِ ۝۷ اِنَّكُمْ لَفِيْ قَوْلٍ مُّخْتَلِفٍ ۝۸ يُّؤْفَكُ

| چه ګڼړو ستورو والا ده | يقيناً تاسو په خبره مختلفه کښې یئ | اړولے شي |
|---|---|---|

کارونه اخلی نو هغه قادر دے چه دَ انسان نه مختلف کارونه په دنیا کښې واخلی او په اخرت کښې مختلف جزاګانے ورکړی۔

ے دا پنځم قسم بطور شاهد دے دا یئ دَ مخکښې قسمونو نه جدا ذکر کړو ځکه دَ دے مقسم به جدا دے دَ هغې مقسم به نه او دا رنګ هغه که عالم وسطی او سفلی څیزونه وو (رسیوا دَ مقسمات نه په یو تفسیر باندے) او دا عالم علوی دے۔ الْحُبُكِ حبک مضبوط او وَل کجاے چه خائسته او صفا هم وی او مختلف کرخے پکښې وی نو هغه ته وئیلے کیږی نو دلته هم دَ اسمانو نو مضبوطو والے او صفائی او په ستورو سره خائسته کیدل او دَ هغې په وجه سره لارے جوړیدل په اسمان کښې دا ټول صفتونه مراد دی۔ په دلیل دَ سبعًا شدادًا سورۃ نبا ۱۲ سبع طرائق مؤمنون ۱۷ اِنَّا زَيَّنَّا السماء بزينة ن الكواكب صافات ۶ ما ترى فى خلق الرحمٰن من تفاوت سوره ملك ۳۔ بیا دَ دے جواب قسم محذوف دے (لَتُخْرَجُنَّ مِنَ الْقُبُوْرِ) لکه چه اسمان کښې مختلف ستوری پټ وی او بیا ښکاره شی نو دا سے به تاسو هم په زمکه کښې پټ شئ نو بیا به په ورځ دَ قیامت را ښکاره شئ یا جواب قسم روستو دے۔

۸ غوره داده چه دا جواب قسم دے او دَ دے ایت نه دَ منکرینو ټولو قبائح ذکر کوی په طریقه دَ زجر ورکولو سره۔ قَوْلٍ مُّخْتَلِفٍ په باره دَ قرآن او دَ رسول او دَ قیامت کښې او دَ الله تعالیٰ کښې دَ هر یو باره کښې دَ منکرینو ګډے وډے خبرے دی۔ دَ قرآن په باره کښې وئیلے کیږی چه دا سحر دے یا کهانت دے یا شعر دے یا افتراء ده یا ګډے وډے خوبونه یا اساطیر وغیره دی هم دغسے دَ نبی صلی الله علیه وسلم په شان کښې اختلاف سازل چه دا ساحر یا کاهن یا مجنون یا شاعر یا مفتری او کذاب وغیره دے دا رنګ دَ قیامت په باره کښې اختلاف دے چه دا اساطیر الاولین دی یا دَ عقل نه لرے ده وغیره دَ الله تعالیٰ په شان کښې اختلاف چه دَ هغه شریک شته دے یا ولد شته دے یا وَلِيٌّ مِنَ الذُّلِّ شته دے یا ټول حاجات نشی پوره کولے یا شفعاء ورباندے زور اور دی۔ یا ئے ملائک لو نړه دی یا ورسره جنات شریک دی وغیره خودا ټولے ګډے وډے خبرے دی دَ منکرینو۔ دَ قسم او جواب قسم مناسبت دا دے چه دَ اسمان مضبوط والے او خائست شاهد دے چه دَ دے جوړوونکے (الله تعالیٰ) (پاتے په بل مخ)

عَنْهُ مَنْ اُفِكَ ﴿۹﴾ قُتِلَ الْخَرّٰصُوْنَ ﴿۱۰﴾ الَّذِیْنَ

دَ دے نه هغه څوک چه اړولے شو ۔ تباه کړے شو په ټوک خبرو کوونکی هغه کسان

هُمْ فِیْ غَمْرَةٍ سَاهُوْنَ ﴿۱۱﴾ یَسْـَٔلُوْنَ اَیَّانَ

چه دوی په جهل کښ غافل دی تپوس کوی چه کله به وی

قادر او عالم دے په هر څیز باندے نو دَ هغه په خلاف کښ ستاسو اقوال باطل او کړوړ دی یا لکه څنګه چه ستوری دَ آسمان مختلف دی او دَ آسمان او دَ ستورو په باره کښ دَ خلقو اختلاف دے بغیر دَ دلیل نه لکه څوک وائی اسمان دَ او سپنے نه جوړ دے څوک وائی دَ تانبے وغیره څوک وائی ستوری دَ فلانکی څیز نه جوړ دی یا دَ فلانی څیز نه څوک وائی فلانے ستورے سپیره دے او فلانے نیک بخت دے وغیره نو دا ټولے بے دلیله خبرے دی ۔ دا رنګ ستاسو په اقوالو کښ هم چه بے دلیله دی اختلاف دے ۔

سه دا هم زجر دے مراد دَ دے نه ګمراهان مقلدین دی چه دَ ګمراهانو مشرانو دَ مختلف اقوالو په وجه سره دَ حق نه اوړیدلے شی هر کله چه مقلد ځان بے اختیاره کړے دے دَ دے وجه نه مجهول صیغه ئے ذکر کړیده او عَنْهُ ضمیر قَوْلٍ مُّخْتَلِفٍ ته راجع دے یا قول دا دے چه مراد دَ دے نه اهل ایمان دی چه هغوی دَ دے اختلاف نه بچ ساتلے شوے دی خو اول قول غوره دے ۔

سلا دا هم زجر دے ۔ قُتِلَ او قاتل په معنیٰ دَ لعنت او تباهئ سره هم مستعملیږی لکه سورة عبس سلا او سورة توبه سلا کښ او دا جمله خبریه یا جمله دُعائیه ده په دُعا دَ شر سره ۔ اَلْخَرّٰصُوْنَ مراد دَ دے نه هغه خلق دی چه "قول مختلف" کښ دی بے دلیله مشغول دی ۔ او دا لفظ دَ خرص نه اخستلے شوے دے په اټکل سره (بغیر دَ دلیل نه) خبره او فیصله کولو ته ویلے کیږی ۔ یعنی دَ الله تعالیٰ او دَ قیامت او دَ قرآن او رسول په باره کښ دَ دے منکریبو اقوال په اټکل باندے بنا دی او قرطبی ویلے دی چه په دیکښ نجومیان هم داخل دی چه دَ آسمان دَ ستورو په باره کښ بے دلیله خبرے کوی او دَ هغے تاثیر ثابتوی ۔

سلا دا یل زجر دے او تعریف دے دَ خراصون دَ پاره ۔ غَمْرَةٍ هغه جهل ته ویلے کیږی چه عقل لره پټ کړی ۔ سَاهُوْنَ مراد دَ سهو نه غفلت او په باطلو خبرو او کارو نو

يَوْمُ الدِّيْنِ ⑫ يَوْمَ هُمْ عَلَى النَّارِ يُفْتَنُوْنَ ⑬

ورځ دَ جزا - هغه ورځ چه دوی په اور باندے او سوځولے شی -

ذُوْقُوْا فِتْنَتَكُمْ هٰذَا الَّذِيْ كُنْتُمْ بِهٖ

او څکئ عذاب دَ سوزش خپل دا هغه څيز دے چه تاسو په دا

تَسْتَعْجِلُوْنَ ⑭ اِنَّ الْمُتَّقِيْنَ فِيْ جَنّٰتٍ وَّ

په تادئ سره غوختلو - يقيناً متقيان به په جنتونو کښ او

عُيُوْنٍ ⑮ اٰخِذِيْنَ مَآ اٰتٰهُمْ رَبُّهُمْ

چينو کښ وی اخلی به هغه نعمتونه چه ورکوی دوی ته رب دَ دوی

کښ مشغولتيا ده لکه سورة مؤمنون ۶۳ او سورة ماعون ۵ کښ دی -

۱۲ دا بل زجر دے او دا اثر دَ غمرة او دَ سهو دے - يَسْـَٔلُوْنَ دا سوال په طريقه دَ تکذيب او دَ عناد سره دے - اَيَّانَ دَ هغه استفهام دَپاره استعماليږی چه په هغے کښ بُعد (لرے والے) وی يعنی انکار وی -

۱۳ ۱۴ يَوْمَ ظرف دے دَ فعل محذوف دَپاره او دا جواب دَ مخکښ سوال (ريه ايان سره) دے يعنی دوی تپوس کوی کله به واقع کيږی جواب دا دے چه واقع به شی په هغه ورځ چه دوی له به په اور کښ عذاب ورکيدے شی دَ دوی سوال عنادی وو نو جواب يې هم زجری اوشو - يا يَوْمَ ظرف دے دَ روستو فعل دَپاره چه ذُوْقُوْا دے - يُفْتَنُوْنَ، فتن په اصل کښ ويلے کيږی دَ سرو زرو ويلے کولو ته په اور باندے مراد تری نه سوځول او عذاب ورکول دی. هٰذَا دا اشاره ده فتنه ته په تاويل دَ عذاب سره دَ دے وجے نه مذکر ی ذکر کړے دے -

۱۵ ۱۶ دا بشارت دے روستو دَ تخويف او زجر نه - په بشارت کښ دَ څيزونه او دَ متقيانو پنځه صفتونه ذکر کوی - اٰخِذِيْنَ مَآ اٰتٰهُمْ رَبُّهُمْ دا اجمالی بشارت دے ټول هغه نعمتونو دَ جنت ته شامل دی چه هغه دَ شمار نه بهر دی اٰخِذِيْنَ مراد دَ دے نه قبولوونکے په رضا سره او قبض کوونکے لګ لګ څکه دَ هغه نعمتونو انتهاء نيشته دے - دويم قول دا دے چه دا دَ متقينو دنيوی صفت دے يعنی اٰخِذِيْن نه مراد عمل کوونکی او دَ مَآ اٰتٰهُمْ نه مراد هغه (ريا ئے په بل مخ)

إِنَّهُمْ كَانُوا قَبْلَ ذَٰلِكَ مُحْسِنِينَ ﴿١٦﴾

يقيناً دوى دَ دے نه مخکښ دوئ خائسته عمل کوونکی۔

كَانُوا قَلِيلًا مِّنَ اللَّيْلِ مَا يَهْجَعُونَ ﴿١٧﴾

دوئ ډیر کم دَ شپے نه چه او ده کیدل به۔

وَبِالْأَسْحَارِ هُمْ يَسْتَغْفِرُونَ ﴿١٨﴾ وَفِي أَمْوَالِهِمْ

او په وخت دَ پیش منی کښ دوی بخښنه غوختله۔ او دَدوی په مالونو کښ

فرائض او احکام دی چه الله تعالیٰ نازل کړے دی لیکن که دا توجیه صحیح وے نو روستو إِنَّهُمْ به ئے په عطف سره ذکر کړے وے۔ مُحْسِنِينَ مراد دَ دے نه احسان په معامله دَ خالق او مخلوق دواړو کښ دے اول احسان اخلاص دے په بندگئ کښ لکه چه په حدیث جبرئیل کښ ذکر دے او اخلاص توحید قلبی عملی او قولی ټولو ته شامل دے دویم احسان عبادت په خائسته طریقه سره اداکول یعنی موافق دَ سنت سره دریم احسان دَ مخلوق سره خه معامله او خه اخلاق چلول او هغوی ته دَحق دین دعوت ورکول۔ نو دا جامع صفت دَ متقیانو دے۔ روستو دَ دے بعض جزئیات ذکر دی۔

س۱۷ س۱۸ س۱۹ په دے درے ایاتونو کښ دَ احسان بعض افراد ذکرکوی دَ دے وجے نه ئے دَ عطف په طریقه سره نه دے ذکر کړے كَانُوا قَلِيلًا مِّنَ اللَّيْلِ الخ په دے کښ مشهور دوه قولونه دی اول قول دا دے چه مَا نافیه دے او مطلب ئے دا دے "چه په شپو کښ کمه شپه دا سے وه چه دوی به ټوله شپه اوده کیدل بلکه ډیرے شپے به ئے مونځ کوو اوکله کله به ټوله شپه اوده پاتے شول" دا قول ابن کثیر دَ ابن عباس رضی الله عنهما او مجاهد او قتاده نه نقل کړے دے او په دے کښ دَ عام امتیانو دَ پاره من وجے سهولت دے او دویم قول دَ حسن بصری وغیره نه نقل کړے دے او ابن جریر هغه غوره کړے دے هغه دا دے چه مَا حرف زائده دے او مراد دَ دے نه دا دے "چه دَ شپے به په کمه حصه کښ اوده کیدل او په اکثره حصه دَ شپه کښ به ئے تهجد کول" او دا صفت ډیر اعلیٰ دے اگر چه په دے کښ دَ عام امت دَ پاره گران والے دے۔ وَبِالْأَسْحَارِ هُمْ يَسْتَغْفِرُونَ په دے کښ اشاره ده چه تهجد ئے تر سحر پورے رسولے دی او دا رنګ دا

حَقٌّ لِّلسَّآئِلِ وَالْمَحْرُوْمِ ﴿۱۹﴾ وَفِي الْاَرْضِ اٰيٰتٌ

برخه دَپاره دَ سوال کوونکي او سوال نه کوونکي (بې نصيبه) ده. او په ځمکه کښې ډېر دليلونه دي

لِّلْمُوْقِنِيْنَ ﴿۲۰﴾ وَفِيْٓ اَنْفُسِكُمْ ۚ اَفَلَا تُبْصِرُوْنَ ﴿۲۱﴾

دَپاره دَ يقين کوونکو او ستاسو په ځانونو کښې هم - ايا نو ولې نه ګورئ -

اشاره ده چه دوی په خپل قيام الليل بانده غرور نه دے کړے بلکه دَخپل قصور اوکوتاهۍ اقرار ئې کړے دے - اودا رنګ په سورة العمران ۱۷ کښې هم ذکر شوېدی. الاَسْحَارِ جمع دَ سحر ده دَ شپې اخری شپږمے حصّې ته ويلے کيږی -

يَسْتَغْفِرُوْنَ په دے کښې اشاره ده چه انسان هرڅومره بندګی دَ الله تعالیٰ کوی ليکن پوره حق دَ بندګۍ نشی ادا کولے دَ دے وجے نه دَ عام عبادت په اختتام کښې استغفار ويل سنت دی لکه هر فرض مونځ پسے درے کرته استغفار ويل اودَ مجلس په اختتام کښې کفاره دَ مجلس دَپاره استغفار ويل نو دا رنګ دَ تهجد نه روستو استغفار ويل اودا دليل دے چه استغفار ويل تعبّدًا دے دا مستلزم دَ ګناه نه دے دَ دے وجے نه انبياء عليهم السلام ډير استغفار غوختلے دے -

وَفِيْٓ اَمْوَالِهِمْ حَقٌّ مخکښې صفتونه دَ احسان په حق دَ الله تعالیٰ کښې ذکر وؤ او دا صفت احسان دے په حق دَ مخلوق کښې او حَقٌّ عام دے که فرض او واجب وی دَ طرف دَ الله تعالیٰ نه يا دے انسان په ځان بانده لازم کړے وی نو زکوٰة او صدقاتِ واجبه او احسان دَ خپل خپلوانو سره وغيره ته شامل دے لِلسَّآئِلِ وَالْمَحْرُوْمِ سائل هغه دے چه خپل حاجت خلقو ته ښکاره کوی او سوال کوی دَ وجے دَ ضرورت نه او محروم هغه دے چه خپل حاجت مخلوق ته نه ښکاره کوی او څوک دَ هغه په حال هم نه پوهيږی دَ دے دَپاره چه صدقه ورله ورکړی - بعضو ويلے دی چه سائل محتاج انسان ته وائي او محروم حيوانانو ته وائي او بعضو ويلے دی چه سائل صرف محتاج ته ويلے کيږی او محروم هغه ته چه مصيبت ورته رسيدلے دے او مال ئې هلاک شويدے - او سائل ئې مخکښې راوړو دَ دے وجے نه چه هغه له حق ورکول اسان دی دَ وجے دَ ښکاره کولو دَ حاجت نه يا دَ دے وجے نه چه انسان مقدم دے په حيوانانو بانده او سورة معارج ۲۴ کښې لفظ دَ معلوم ذکر دے نو هلته زکوٰة مراد دے چه دَ هغې مقدار معلوم او مقرر دے او په دے سورت کښې عام مراد دے ۲۰-۲۱ او س روستو دَ ذکر دَ فريقينو نه په باره دَ بعث بعد الموت کښې (پاتے په بل مخ)

وَفِي السَّمَآءِ رِزْقُكُمْ وَمَا تُوعَدُونَ ﴿٢٢﴾

او په اسمان کښ ستاسو رزق دے او هغه څیز دے چه تاسو سره وعده کیدیشی۔

دلیلونه ذکرکوی دپاره د اثبات د بعث بعد الموت چه دعوی د سورت ده او دا رنګ په دے کښ اشاره ده چه صفتونه د متقینو (رکوم چه مخکښ ذکر شول) هله حاصلیږی کله چه انسان په دنیا او په ځان کښ فکر اوکړی۔ اٰیٰتٌ غرونه، دریابونه، اونے، میوے، بوټی کانړی، سوکړه او بارانونه دا ټول دلیلونه دی په قدرت د بعث بعد الموت باندے سره د توحید نه۔ لِّلْمُوْقِنِيْنَ مراد د دے نه یقین حاصلوونکی دی یعنی په اراده د یقین او د اثبات سره د دے دلیلونو نه فائده اغستلے شی یا مراد دا چه یقین ئے دی چه دا ایت الله تعالیٰ پیدا کړیدی نو هغه ترینه اثبات د بعث بعد الموت هم کولے شی۔ وَفِيْٓ اَنْفُسِكُمْ مراد دا دے چه د ابتداء د خلق د انسان نه تر انتها پورے او په ټولو باطنی او ظاهری اندامونو او د هغے په ساخت کښ ډیر دلیلونه دی په اثبات د بعث بعد الموت او د توحید باندے۔ د قتاده نه ابن کثیر نقل کړیدی چه چا په ځان کښ فکر اوکړو نو پوهه به شی چه دے پیدا شویدے او د دهٔ پیوندونه نرم کړے شویدی دپاره د عبادت د الله تعالیٰ۔ اَفَلَا تُبْصِرُوْنَ بصر او بصیرة دواړو ته شامل دے یعنی په سترګو سره دے ایاتو ته نظر اوکړئے او په زړه کښ په دے باندے سوچ اوکړئے۔ په اول کښ افاقی سفلی دلیلونو او په دویم کښ انفسی دلیلونو ته اشاره ده۔

سلا۲۲ دا دلیل علوی دے۔ مراد د رزق نه اسباب د روزئے دی او د سماء نه مراد اوچت طرف دے یعنی بارانونه وا ورے هواګانے وغیره د روزئے د پیدائیش دپاره اسباب دی۔ یا مراد دا دے چه په اسمان کښ د الله تعالیٰ سره د هر چا روزی ده لکه وَمَا مِنْ دَآبَّةٍ فِي الْاَرْضِ اِلَّا عَلَى اللّٰهِ رِزْقُهَا۔ سورة هود سلا یا مراد د دے نه تقدیر د روزئے دے۔ وَمَا تُوعَدُوْنَ یعنی هر خیر او شر په اسمان کښ تقدیر کړے شویدے یا مراد د دے نه جنت دے چه هغه په اسمان کښ د سدرة المنتهٰی په خوا کښ دے لکه سورة نجم سلا۱۵ کښ دی۔ او کومه قصه د واصل الاحدب چه ابن کثیر او قرطبی نقل کړیده نو هغه تفسیر نه دے هغه یو خاص واقعه رشائد چه کرامت دے) ده د هغے ذکر کولو ته حاجت نیشته ځکه چه سره د تقدیر د روزئے نه انسان مکلف دے په کسب کولو سره دپاره د روزئے۔

فَوَرَبِّ السَّمَآءِ وَالْاَرْضِ اِنَّهٗ لَحَقٌّ مِّثْلَ

پس قسم دے په رب دَ اسمان او زمکه باندے یقینًا دا خبره حقه ده پشان

مَآ اَنَّكُمْ تَنْطِقُوْنَ ﴿۲۳﴾ هَلْ اَتٰىكَ حَدِيْثُ

دَ هغه چه تاسو خبرے کوئے . یقینًا راغلے دے تا ته خبر

ضَيْفِ اِبْرٰهِيْمَ الْمُكْرَمِيْنَ ﴿۲۴﴾ اِذْ دَخَلُوْا

دَ میلمنو دَ ابراهیم علیه السلام چه عزتمند وو . کله چه داخل شو

۲۳ دا تاکید دے دَ پاره دَ اثبات دَ بعث بعد الموت او اِنَّهٗ ضمیر بعث ته راجع دَ چه په دعویٰ دَ سورت (مَا تُوْعَدُوْنَ) کښې تیر شوے دے یعنی وعده دَ قیامت دا سے یقینی ده لکه چه تاسو خبرے دَ خُلے نه را او باسئ او یقین کوئے چه دا ستاسو دَ خُلے نه راوتلے دی دا توجیه ابن کثیر کړے ده . یا دا ضمیر رزق ته راجع دے یعنی کوم رزق چه انسان ته الله تعالیٰ په اسمان کښې مقرر کړے دے هغه په دے انسان ته یقینًا را رسیږی لکه چه ستاسو دَ خُلو نه خبرے او آواز را اوځی او په هغے باندے دَ خلقو یقین وی چه دا دَ فلانی دَ خُلے نه راوتلے دے ځکه په نورو حواسو کښې اشتباه کیدے شی او په خبرو راوتلو کښې دَ خُلے نه هیڅ اشتباه نیشته یا دا چه لکه هر انسان خبرے بخپله ژبه سره کوی دَ بل چا په ژبه خبرے نشی کولے نو دا رنګ مقرر رزق دَ هر انسان بل انسان نشی خوړلے دے به یئے خوری . او دا توجیه قرطبی وغیره نقل کړے ده . او دَ حسن بصری نه مرسل روایت دے چه رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمائیلی دی چه تباه دِ کړی الله تعالیٰ هغه قومونه چه دوی ته خپل رب قسم خوړلے دے او بیا هم دوی تصدیق نه کوی بعض مفسرینو ضمیر دَ اِنَّهٗ قرآن ته راجع کړے دے لیکن دغه توجیه صحیح نه ده چه په هغے کښې تمثیل دَ کلام دَ الله تعالیٰ دَ نطق دَ مخلوق سره راځی او الله تعالیٰ او دَ هغه صفتونه دَ تمثیل او تشبیه دَ مخلوق نه پاک دی .

۲۴ دَ دے آیت نه تر آخره دَ سورت پورے دویم باب دے په دے کښې دَ تخویف دنیوی پنځه نمونے ذکر کوی دَ واقعاتو دَ سابقینو نه . بیا پنځه احوال دَ یره خکته او دَ نورو خیزونو په طریقه دَ دلیل سره ذکر کوی بیا دعویٰ دَ توحید او رد دَ شرک ذکر کوی بیا زجر دے په پنځه احوالو دَ مکذبینو او تسلّی ده (رپاتے په بل مخ)

عَلَيْهِ فَقَالُوْا سَلٰمًا ۭ قَالَ سَلٰمٌ ۚ قَوْمٌ مُّنْكَرُوْنَ ﴿۲۵﴾

هغه ته نو اویل ئې سلام کوؤ مونږ سلام، هغه اویل چه په تاسو سلام وی قوم نا اشنا دی ۔

رسول الله صلی الله علیه وسلم ته او ذکر دَ پنځه صفتونو دَ الله تعالیٰ دے په دے سټ کښې ذکر دَ واقعے دَ ابراهیم علیه السلام دے او دا تمهید دے واقعے دَ لوط علیه السلام ته او دا سے په سورة هود او سورة حجر کښې هم ذکر شوی ده ۔ او وجه دَ دے تمهید ذکر کولو یوه دا ده چه کوم ملائک دَ قوم لوط دَ اهلاک دَپاره رالیږلے شوی وو هغه ملائک وو چه دَ ابراهیم علیه السّلام دَ بچی دَ زیری ورکولو دَپاره هم وو اشاره وه چه دغه ظالم قوم که چرے تباه کړے شی هیڅ پرواه مکوه دا یو بچے چه دَ الله تعالیٰ توحید دَپاره دعوت ورکوی دَ هغه ټول قوم نه غوره دے دویمه وجه دا ده چه په یو قوم باندے عذاب دَ الله تعالیٰ راځی نو دَ هیڅ شخص اگرچه ابراهیم علیه السّلام وی په سفارش سره هغه عذاب نه واپس کیږی او نه دَ هغه شخص قدرت رسی چه په خپل زور سره دغه عذاب واپس کړی دریمه وجه دا چه په یو نیک شخص باندے دَ دُنیا خوشحالی او په ناکاره خلقو دَ الله تعالیٰ عذاب راځی نو دوی ترینه دَ مخکښې نه هیڅ خبر نه لری ناڅاهه راځی۔ هَلْ دا په معنیٰ دَ قد سره او په استفهام سره ذکر کوی دَپاره دَ توجه ورکولو دے قصے ته۔ ضَيْفِ اسم جمع ده یو او ګڼړو ته شامل دے روستنو صیغے دَ جمع دلیل دی چه دا ملائک ډیر وو او ضَيْف ئې ورته دَ ابراهیم علیه السّلام په ګمان سره اویل۔ الْمُكْرَمِيْنَ دَ دے ډیرے وجے دی یو خو دا چه دوی ملائک وو او ملائک دَ الله تعالیٰ په نیز مکرّم دی لکه سورة انبیاء ۲۶ کښې دی دویم دا چه ابراهیم علیه السلام دَ دوی خدمت پخپله کوؤ دریم دا چه طلب ګار حرصناک دَ خوراک نه وی۔

۲۵ دا متعلق دے په حدیث پورے او تفصیل دَ هغے دے۔ سَلٰمًا فعل حذف دے یعنی نُسَلِّم عَلَيْكَ سَلٰمًا۔

سَلٰم یعنی عَلَيْكُمُ السَّلَام دا دواړه سلامونه دَ تحیه مسنونه دی بیا جمله اسمیه کښې دوام او استمرار وی په نسبت دَ جمله فعلیه سره نو جواب غوره شو دَ سلام نه نو معلومه شوه چه ابراهیم علیه السلام عمل کړے دے په فَحَيُّوا بِاَحْسَنَ مِنْهَا باندے۔ قَوْمٌ مُّنْكَرُوْنَ مبتدا ئې حذف دے اَنْتُمْ که هغوی ته ئې بنکاره ویلے وی یا هُمْ که دَ هغوی نه ئې پټ ویلے وی۔ او هر کله چه هغوی په نا اشنا

فَرَاغَ إِلَىٰ أَهْلِهِ فَجَاءَ بِعِجْلٍ سَمِينٍ ﴿٢٦﴾ فَقَرَّبَهُ

نو پټ روان شو کور والا ته نو يا اوړوده سخے وريت کړے شوے نو نزدے ئے کړو هغه

إِلَيْهِمْ قَالَ أَلَا تَأْكُلُونَ ﴿٢٧﴾ فَأَوْجَسَ مِنْهُمْ

دوی ته اوئيل ئے ايا تاسو خوراک نه کوئے. نو په زړه کښ پټه اوساتله

خِيفَةً ۖ قَالُوا لَا تَخَفْ ۖ وَبَشَّرُوهُ بِغُلَامٍ

ويره دَ دوی نه دوی اوئيل مه ويريږه او زيرے ئے ورکړو په هلک

شکلونو کښ داخل شوی دی او بغير دَ اجازت نه ورغلے وو او سلام ئے اوکړو او حال دا چه په هغه وخت کښ عام خلق دَ ابراهيم عليه السّلام مخالف وو هغوی په هغه باندے سلام هم نه کوو نو دَ دے وجو نه منکرون ئے اوفرمائيل.

۲۶ ـ ۲۷ په دے کښ آداب دَ ميلمستيا دی اول دا چه زَر پروگرام دَ خوراک پکار دے حرف دَ فا په دے باندے دلالت کوی دويم ميلمه ته ښکاره کول نه دی پکار چه څه ستا دَ پاره دَ خوراک انتظام کووُم کيدے شی چه هغه دَ حيا دَ وجے نه انکار اوکړی. دريم په خوراک دَ ميلمستيا تيارولو کښ هم مناسب تادی پکار ده فَجَاءَ حرف دَ فا کښ دے ته اشاره ده څلورم عمده او غوړه خوراک دَ طاقت مناسب پکار دے او دا تکلّف حسبِ استطاعت دَ ميلمه دَ پاره سنت دے په عِجْلٍ کښ دے ته اشاره ده او دَ دے وجے نه په اور باندے وريت کړو څکه چه په دے طريقے سره غوښه زر تياريږی دَ خوراک دَ پاره په نسبت دَ پخولو سره.

سَمِينٍ وريت کړے شوے لکه سورة هود ۶۹ کښ يا ئے معنیٰ خوړب دے. پنځم، خوراک ميلمه ته نزدے کيخودل پکار دی.

فَقَرَّبَهُ کښ دے ته اشاره ده شپږم په امر سره ميلمه ته وينا نه ده پکار څکه چه دَ ادب نه خلاف ده دَ دے وجے نه أَلَا تَأْكُلُونَ ئے اوفرمائيل او دا لفظ دَ پيش کولو دَ خوراک دَ پاره ويلے دے يا هرکله چه هغوی لاس نه نزدے کولو خوراک ته نو دا ئے ورته په طور دَ تپوس سره اوئيل.

عَلِيْمٍ ﴿۲۸﴾ فَاَقْبَلَتِ امْرَاَتُهٗ فِيْ صَرَّةٍ فَصَكَّتْ

علم والا۔ نو مخامخ شوه بی بی دَ هغه په چغه دَ ملائکو کښې نو په لاس ئے اووهلو

وَجْهَهَا وَقَالَتْ عَجُوْزٌ عَقِيْمٌ ﴿۲۹﴾ قَالُوْا

مخ خپل او اوئیل ئے زه بوډۍ شنډه یم ۔ دوی اوئیل

سئل اَوْجَسَ دا دَ زړه حالت دے یعنی په زړه کښې ئے ویره راغله او دَ هغے سبب په سورة هود سئے کښې ذکر دے قَالُوْا لَا تَخَفْ (سوال) ملائک خو دَ زړه په خبرو پاندے علم نه لری نو څه رنګ هغوی پوهه شول؟ (جواب دا دے چه ابراهیم علیه السلام ورته اُویل اِنَّا مِنْكُمْ وَجِلُوْنَ (حجر سئے) او دویم دا چه دَ علاماتو نه هم په فراست سره معلومیږی۔ وَبَشَّرُوْهُ بِغُلٰمٍ عَلِيْمٍ مراد دَ دے نه اسحاق علیه السلام دے۔

عَلِيْمٍ نه مراد دا دے چه دَ نبوت علم په لری او دا رنګ په سورة حجر سئے کښې هم دی

سوال:۔ سورة هود سئے کښې ئے نوم په بشارت کښې ذکر کړے دے او په دے دواړه سورتونو کښې نه دے ذکر کړے ؟

جواب:۔ په سورة هود کښې بشارت دے بی بی دَ ابراهیم علیه السلام ته ځکه زنانه تصریح دَ خبرے ته محتاج وی او په نوم دَ بچی باندے خوشحالیږی او دا رنګ په بقا دَ نسل سره ډیره خوشحالیږی دَ دے وجے نه دَ هغے په بشارت کښې (وَمِنْ وَّرَآءِ اِسْحٰقَ يَعْقُوْبَ) هم ذکر کړے دے او په دے دواړه سورتونو کښې بشارت دے ابراهیم علیه السلام ته او پلار په نوم نه خوشحالیږی بلکه دَ بچی په کمال دَ صفت باندے خوشحالیږی دَ دے وجے نه عَلِيْمٍ ئے په صفت کښې ذکر کړے دے۔

سئل معلومیږی چه بی بی صاحبه دَ پردے نه شاته ولاړه وه دَ خدمت دَ پاره په دے خیال سره چه دا میلمانه څوک اجنبی سړی دی هر کله چه بشارت ئے واوریدو او پوهه شوه چه دا ملائک دی نو بیا مخامخ شوه او دا سے دَ سورة هود سئے نه هم معلومیږی چه دا ولاړه وه دَ پردے نه شاته او دَ قوم لوط دَ هلاکت خبرے ئے واوریدلو نو خوشحاله شوه نو بیا دَ ابراهیم علیه السلام دَ بشارت نه روستو ملائکو دے بی بی ته هم بشارت ورکړو نو بیا مخامخ راغله په ډیر تعجب کولو کښې فِيْ صَرَّةٍ بو معنیٰ دَ دے چغه ده

كَذٰلِكِ قَالَ رَبُّكِ ۖ إِنَّهُ هُوَ الْحَكِيمُ الْعَلِيمُ ﴿٣٠﴾

دغسې به يې ته ، وئيلي دي رب ستا يقيناً هغه حكمتونو والا

پوهه دے په هرڅه باندے

دَ وجې دَ تعجب كولو نه بے اختيارہ بلَه معنىٰ جماعت دے نو مراد دا دے چه جماعت دَ ملائكو ته راغلامخ شوله" او صَرَّةٍ په معنىٰ دَ دريځې سره خو ما په هيڅ تفسير او لغت دَ عربۍ ژبه كښ نه دے ليدلے نو دا معنىٰ مناسب نه ده۔"

فَصَكَّتْ وَجْهَهَا دا هم تعجب كولو په وخت كښ دَ زنانو عادت دے صَكَّةٌ په پلن څيز باندے وهل". مراد دَ دے نه پلنې گوتے يا ورغوے دی او وَجْه نه مراد دَ مخ يو طرف دے يا تندے دے۔

وَقَالَتْ عَجُوزٌ عَقِيمٌ دا سبب دَ تعجب دے او دا رنگ حال دَ خاوند يې هم ذكر كړے دے په سورة هود ۷۲ كښ۔

هر كله چه سورة هود كښ مخاطبه دَ ملائكو دَ بي بي سره ذكر كړے شوے ده نو دا سے شوله لكه خاوند چه غائب وی نو بي بي دَ هغه حالت ذكر كړو او په دے سورت كښ دَ دے سره مخاطبه دَ اول نه نيشته بلكه خاوند يې حاضر دے دَ هغه حال دَ بوډاوالی ښكارہ دے ملائكو ته۔

عَقِيمٌ دو مره عمر چه پوره عادةً دَ اولاد دَ راوړلو نه عاجز شی دے ته عقيم وئيلے كيږی او دا رنگ چه دَ ابتداء نه اولاد نه وی شوے تر مرگ پورے نو هغې ته هم عقيم وئيلے كيږی لكه سورة شوری ۵۰ كښ۔

۳۰ دا تسلّی ده دَ پاره دَ تعجب دَ هغې بي بي. دلته يې قَالَ رَبُّكِ اُوئيل يعنی دا بشارت قول دَ رب ستا دے او سورة هود ۷۳ كښ دے ته يې امر الله وئيلے دی دَ امر اطلاق په قول باندے واضح دے او په لفظ امر كښ تاكيد دے نو په سورة هود كښ هم تعجب دَ بي بي په ډير تاكيد او تفصيل سره ذكر كړے دؤ نو موافقت راغے۔

قَالَ فَمَا خَطْبُكُمْ أَيُّهَا الْمُرْسَلُونَ ﴿۳۱﴾

اوویل هغه ځه لوئے کار دے ستاسو اے رالیږلے شوے ملائکو۔

قَالُوٓا إِنَّآ أُرْسِلْنَآ إِلَىٰ قَوْمٍ مُّجْرِمِينَ ﴿۳۲﴾

دوی اوویل مونږ رالیږلے شوے یو قوم مجرمانو ته۔

لِنُرْسِلَ عَلَيْهِمْ حِجَارَةً مِّن طِينٍ ﴿۳۳﴾

دے دپاره چه را اولیږو په دوی باندے کانړی (جوړشوی) د خټو نه

مُّسَوَّمَةً عِندَ رَبِّكَ لِلْمُسْرِفِينَ ﴿۳۴﴾ فَأَخْرَجْنَا

نشاندار دی په نیز د رب ستا دپاره د حد نه تیریدونکو۔ نو اوویستل مونږ

۳۱ هرکله چه معلومه شوه ابراهیم علیه السلام ته چه دا ملائک دی او بشارت دپاره خویو شخص هم پوره وو او دوی په دا ایسے کښی تلوار کوله نو تپوس کوی د هغوی د گنړوالی او ډیروالی او د تلوارے کولو۔ خَطْب غټ او ډیر ضروری کار ته ویلے کیږی۔
۳۲ ۳۳ ۳۴ په دے کښی غرض اصلی د هغوی د ارسال بیان شو چه هلاکول د مجرمانو دی او معلومه شوه چه زیرے ورکول د ځوئ د ابراهیم علیه السلام د دے په نسبت ورو کے مقصد دے۔ مُجْرِمِينَ مجرم هغه څوک دی چه گناهو ته بنکاره کوی د چا نه شرم او حیا نه کوی نو قوم لوط هم داسے وو۔ لِنُرْسِلَ تعبیر په ارسال سره دلالت کوی په ډیروالی د کانړو باندے مِن طِينٍ په دے کښی اشاره ده چه په دے کانړو کښی ماده د اور شامله وه ځکه چه د خټے نه کانړے په تیز اور سره جوړیدیشی او هغے ته ئے سورة هود او حجر کښی سجیل ویلے دے۔
او په دے کښی ذکر د لوئے قدرت د الله تعالیٰ دے ځکه چه د آسمان د طرف نه کلئ رچه د اوبو نه کانړی جوړ شوے دی) نو اور یکی او د خټو جنس هم پره نیشته نو دا عظیم قدرت د الله تعالیٰ دے کنه!
مُسَوَّمَةً نښے ورباندے اشاره ده بل قدرت ته چه په اور سره نښے ورانیږی او په دے کښی خو موجود دی او غوره دا ده چه نښو باندے د دوی نومونه لیکلے شوے وو۔ عِندَ رَبِّكَ اشاره ده تقدیر ته او دا رنگ اشاره ده چه دے ته د بندگانو لاس نه دی رسیدلی۔ لِلْمُسْرِفِينَ د ابن عباس رضی الله عنهما نه روایت

مَنْ كَانَ فِيهَا مِنَ الْمُؤْمِنِينَ ﴿٣٥﴾ فَمَا وَجَدْنَا

هغه څوک چه په هغې کښې وو د ایمان والو نه نو او نه موندلو مونږ

فِيهَا غَيْرَ بَيْتٍ مِّنَ الْمُسْلِمِينَ ﴿٣٦﴾ وَتَرَكْنَا

په هغې کښې سیوا د یو کور د مسلمانانو نه . او پرېښودو مونږ

فِيهَا آيَةً لِّلَّذِينَ يَخَافُونَ الْعَذَابَ الْأَلِيمَ ﴿٣٧﴾

په هغې کښې نښه د پاره د هغه خلقو چه وېره کوی د عذاب دردناک نه .

کړې شوی دے چه مراد د دے نه مشرکان دی ځکه لوئے اسراف شرک کول دی او صیغه د اسم فاعل سره اشاره ده چه دوی که هلاک شوی نه وے نو هم د الله تعالیٰ په علم کښې وه چه دوی به همیشه اسراف او شرک کوی او اسراف اکثر پټ گناه ته ویلے کیږی یا چه گناه نه کترے کیږی. او اجرام ښکاره گناه ته ویلے کیږی نو په وخت د ارسال د ملائکو ئے اجرام ذکر کړو او په وخت د عند ربك کښې اسراف ذکر کړو.

۳۵ ۳۶ فائده د پاره د روستو والی ده یعنی د ملائکو د لیږلو نه روستو مؤمنانو له ئے د هغه کلی نه اُوبستل او عذاب د هغې نه روستو راغے او اخراج سره ئے صفت د ایمان ذکر کړو اشاره ده چه دا علت د نجات دے. فَمَا وَجَدْنَا دا لفظ دلالت کوی په ډیره مبالغه باندے گویا چه ملائکو ډیر تفتیش اوکړو خو صرف یو کور د مسلمانانو ملاؤ شو. غَيْرَ بَيْتٍ مراد د دے نه کور د لوط علیه السلام دے د هغه ښځه هم تر ینه مستثنیٰ ده په قرینه د نورو ایاتونو سره چه (اِلَّا امرءته) باقی صرف دوه لونړه د هغه وے او هغه مسلمانانے وے لکه چه عام تفسیرونو دا روایت راوړے دے او خطیب شربینی ذکر کړے دی چه کورنئ د لوط علیه السلام ته ئے مسلمین ځکه اُویل چه دا د ابراهیم السلام ورارهٔ دے او هغه خپلے کورنئ ته د مسلمانانو نوم ایښے دے. فرّاء بغوی په تفسیر کښې ویلے دی چه د ایمان شرعی او اسلام شرعی د یو بل سره تلازم دے اگرچه معنیٰ ئے جُدا جُدا ده نو دے ایت کښې ئے د دے دجے یو کورنئ ته مؤمنان او مسلمانان اُویل او د دے نور تحقیق سورة حجرات کښې تیر شویدے.

فائده:- د منکرینو دوه صفتونه ئے ذکر کړے وو مجرمین، مسرفین نو د هغوی په مقابله کښې د مؤمنانو دوه صفتونه ئے لف نشر غیر مرتب سره ذکر کړل مومنین او مسلمین.

۳۷ مراد د ایت نه نښه د عبرت ده او هغه خراب شوی (پاتے په بل مخ)

وَفِيْ مُوْسٰى اِذْ اَرْسَلْنٰهُ اِلٰى فِرْعَوْنَ بِسُلْطٰنٍ

(او نخښه) په واقعه دَ موسٰی علیه السلام کښ. کوم وخت چه اولیږلو مونږ دے فرعون ته په دلیل

مُّبِيْنٍ ﴿٣٨﴾ فَتَوَلّٰى بِرُكْنِهٖ وَقَالَ سٰحِرٌ اَوْ مَجْنُوْنٌ ﴿٣٩﴾

ښکاره سره ۔ نو اوګرځیدلو په وجه دَ طاقت خپل او اوئیل ئے جادوګر دے یا لیونے دے۔

فَاَخَذْنٰهُ وَجُنُوْدَهٗ فَنَبَذْنٰهُمْ فِى الْيَمِّ

نو اونیوۂ مونږ دے او لښکرے دَ دهٔ نو اوغورځول مونږ دوی په دریاب کښ

وَهُوَ مُلِيْمٌ ﴿٤٠﴾ وَفِيْ عَادٍ اِذْ اَرْسَلْنَا عَلَيْهِمُ الرِّيْحَ

او دے وۀ ملامته کوونکے دَ خپل ځان. (او نخښه) په عادیانو کښ کله چه اولیږله مونږ په دوی باندے سیلئی

کهنډرات دَ دوی دی یا بد بوئیته اوبا کانړی د ښتلے شوی او دا سے په سورة عنکبوت ٣٥ کښ هم تیر شوی دی او په هغه ایت کښ مِنْهَآ اٰيَةً بَيِّنَةً ئے ذکر کړے دے اشاره ده شیئے محسوسے ته او په دے ایت کښ فِيْهَآ اٰيَةً ذکر دے اشاره ده شیئے معقولے ته چه په ویرے کولو سره عبرت دَ هغے نه اخستلے کیږی.

٣٨ ٣٩ دا دویمه نمونه دَ عذاب دنیوی ذکر کوی او دا عطف دے په فِيْهَا باندے دَ ترکنا دَ لاندے دے. بِسُلْطٰنٍ مُّبِيْنٍ مراد دَ دے نه ټول معجزات دَ موسٰی علیه السلامؑ دی چه فرعون ته ئے پیش کړے وو په تاویل دَ جنس سره یا مراد ترینه معجزه دَ عصا ده. بِرُكْنِهٖ مراد دَ دے نه قوت دَ دهٔ دَ بادشاهئ او دَ لښکرو او دَ مال په حیثیت سره دے او با د سببیت دَپاره ده. یعنی په دے سبب سره ئے تکبر او عناد اوکړو. یا مراد دَ دے نه قوم قبیله دَ دهٔ ده او با په معنیٰ دَ مع سره ده. سٰحِرٌ اَوْ مَجْنُوْنٌ اَوْ په معنیٰ دَ تردد او دَ شک سره دے یعنی دوی په دے حکم کولو کښ پخپله متردد وو. یا اَوْ په معنیٰ دَ بَلْ سره دے دَپاره دَ ترقیٔ په حکم کولو کښ. یا په معنیٰ دَ واو سره ځکه چه دوی دواړه حکمونه په موسٰی علیه السلام باندے کړے وو چه ساحر دے لکه سورة اعراف ١٠٩ وشعراء ٣٣ او مجنون دے لکه سورة شعراء ٢٧ کښ.

٤٠ دا ښکاره دلیل دے چه فرعون ئے هم غرق کړے دے. فَنَبَذْنٰهُمْ دا لفظ دلالت کوی دَ دوی په توهین باندے. وَهُوَ مُلِيْمٌ تخصیص دَ فرعون ئے اوکړو په ضمیر دَ هُوَ سره ځکه دے سبب وۀ دَپاره دَ ګمراهئ دَ خپلو لښکرو.

الْعَقِيمَ ﴿٤١﴾ مَا تَذَرُ مِنْ شَيْءٍ أَتَتْ عَلَيْهِ إِلَّا

شنډه (بې برکته). نه یې پرېښودلو هغې هیڅ څیز چه راتللو په هغې باندې مګر

جَعَلَتْهُ كَالرَّمِيمِ ﴿٤٢﴾ وَفِي ثَمُودَ إِذْ قِيلَ لَهُمْ

اوګرځولو یې هغه په شان د هډوکي ذرې ذرې. (او نښه) په ثمودیانو کښې کوم وخت چه او ویلې شو دوی ته

تَمَتَّعُوا حَتَّى حِينٍ ﴿٤٣﴾ فَعَتَوْا عَنْ أَمْرِ رَبِّهِمْ

مزې واخلئ تر لږ وخت پورې - نو نافرماني یې اوکړله د حکم د رب خپل نه

مُلِيمٌ یو معنیٰ دا چه دهٔ کارونه د ملامتیا کړے وو تر مرګ پورې دویمه دا چه دهٔ په هغه وخت کښې ځان لره ملامته کوؤ یعنې توبه یې ویستله لکه سورة یونس ۹۰ کښې تیر شویدی لیکن هغه وخت توبه نه قبلیدله - او دا لفظ چه په باره د یونس علیه السلام کښې په سورة صافات ۱۴۲ کښې راغلې نو مراد دا دے چه هغه ځان لره ملامته کوؤ په تسبیح ویلو او اعتراف د ظلم سره اګرچه ظلم عند الله نه وؤ.

۴۱ دا دریمه نمونه د عذاب دنیوی ذکرکوی وَفِي عَادٍ مراد دا دے چه د هغوی په هلاکولو کښې لوئې عبرت دے روستو خلقو لره. په أَرْسَلْنَا کښې اشاره ده ډیر والی او تیز والی د سیلۍ ته. الْعَقِيمَ بې خیره سیلۍ هغه ده چه او نه وریږي نه او انسانانو ته هیڅ فائده نه ورکوی او هغې ته بادِ دبور ویلې کیږي لکه چه صحیح حدیث کښې وارد دی چه رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمائیلي دي چه ما سره امداد کړے شویدے (په احزاب کښې) په بادِ صبا سره او عادیان هلاک کړے شویوو په بادِ دبور سره.

۴۲ په دے کښې تیزی او هیبتِ شان د هغه سیلۍ ذکر کوی.

سوال :- دا سیلۍ په غرونو کښو وغیره باندے راغلې وه لیکن هغه یې ذرے کړے نه دی ؟

جواب :- مراد د مِنْ شَيْءٍ نه هغه څیزونه دی چه الله تعالیٰ د هغې د هلاکولو اراده کړے وه یعنی بدنونه د عادیانو او د هغوی آبادئ او فصلونه وغیره او دا رنګ په احقاف ۲۵ کښې هم شته دے - الرَّمِيمِ بوټي چه اوچ شی او ذرے ذرے او سخا شی هغې ته په اصل کښې رمیم ویلې کیږي دا رنګ هغه اوډوکي چه ناره شی او خاورے شی.

۴۳ دا څلورمه نمونه د عذاب دنیوی ده. تَمَتَّعُوا حَتَّى حِينٍ (پاتې په بل مخ)

فَاَخَذَتْهُمُ الصّٰعِقَةُ وَهُمْ يَنْظُرُوْنَ ﴿۴۴﴾

نو ادنیولو دوی لره سخته چغه او حال دا دے چه دوی کتل ۔

فَمَا اسْتَطَاعُوْا مِنْ قِيَامٍ وَّمَا كَانُوْا مُنْتَصِرِيْنَ ﴿۴۵﴾

نو وس ئے اونه لرلو دَ اودریدلو او نه وو دوی بدله اخستونکی

وَقَوْمَ نُوْحٍ مِّنْ قَبْلُ اِنَّهُمْ كَانُوْا قَوْمًا فٰسِقِيْنَ ﴿۴۶﴾

(هلاک کړے وو موږ) قوم دَ نوح علیه السلام دَ دوی نه مخکښ یقیناً هغوی وو قوم نافرمان ۔

وَالسَّمَآءَ بَنَيْنٰهَا بِاَيْدٍ وَّاِنَّا لَمُوْسِعُوْنَ ﴿۴۷﴾

او اسمان جوړ کړیدلے موږ په طاقت سره او موږ فراخوونکی دَ هغے یو ۔

یو معنیٰ دا چه دَ نیټے دَ مرګ پورے دَ خپلو باغونو مالونو نه فائدے واخلئ او ایمان راوړئ، نو په یکښ دعوت دے ایمان ته او دَ هغے دنیوی فائدو ته اشاره ده۔ دویمه معنیٰ دا ده چه په دوی باندے فیصله اوشوه چه درے ورځے روستو به په دوی باندے عذاب راځی لکه په سورۃ هود ۶۵ کښ۔ ۴۴ حرف دَ فا په فَعَتَوْا کښ دلالت کوی چه اوله معنیٰ غوره ده او دَ عتو ر نافرمانئ) تفصیل په نورو سورتونو کښ تیر شویدے چه هغه اُوښه هلاکول او دَ صالح علیه السلام دَ قتل اراده کول دی۔ الصّٰعِقَةُ مراد دَ دے نه سخته هیبت ناکه چغه وه چه سبب اوګرځیده دَ خوزیدلو دَ زمکے دَ پاره دَ دے وجے نه سورۃ اعراف کښ دَ دوی عذاب په رجفه سره او په سورۃ هود کښ په صیحه سره ذکر کړے دے او ذکر دَ صاعقه دَ ثمود یا نو په سورۃ حٰم سجده ۱۳ کښ تیر شویدے۔ يَنْظُرُوْنَ مراد دَ دے نه انتظار دے درے ورځے یا مراد دا چه دَ عذاب نښے به یو نو دَ دوی کښ راښکاره شوے او ورته ئے کتل۔

۴۵ په دے کښ سخت والی دَ عذاب ته اشاره ده۔ قِيَامٍ اودریدل او ټینګیدل دی یا طاقت دَ دفع کولو دے۔

۴۶ دا پنځمه نمونه دَ عذاب ده۔ او دَ دے فعل حذف دے یعنی اَهْلَكْنَا قَوْمَ نُوْحٍ۔ او فِیْ ورسره نه دے ذکر کړے ځکه چه دوی ډیر مخکښ وو دِ دے زمانه کښ دَ هغوی هیڅ مکان او نښے معلوم نه دی چه په هغے کښ نمونه دَ عبرت وی اِنَّهُمْ كَانُوْا دا ضمیر قوم دَ نوح علیه السلام یا تیر شوے ټولو قومونو مکذبینو ته راجع دے۔

۴۷ دَ دے ایت نه درے عقلی دلیلونه ذکر کوی په اثبات دَ بعث بعد الموت باندے

وَالْاَرْضَ فَرَشْنٰهَا فَنِعْمَ الْمٰهِدُوْنَ ﴿۴۸﴾ وَمِنْ

او ځمکه موږ غوړولې ده نو ښهٔ غوړوونکي يو - او دَ

كُلِّ شَيْءٍ خَلَقْنَا زَوْجَيْنِ لَعَلَّكُمْ تَذَكَّرُوْنَ ﴿۴۹﴾

هر څيز نه پيدا کړي دي موږ جوړې دې دَ پاره چه نصيحت قبول کړئ تاسو۔

په دې ايا تونو کښې په دې کښې يو دليل دې علوي۔

(ربط) دَ دې نه مخکښې ايا تونو کښې نقلي دليلونه وو نو دا عقلي دليلونه دي - بِأَيْدٍ دا مصدر دې په معنیٰ دَ قوت اودَ قدرت سره دا دَ عبدالله بن عباس رضي الله عنهما نه ابن کثير او قرطبي روايت ذکر کړې دې او بل احتمال دا دې چه اَيْدٍ جمع دَ يَد شي لکه سورة يٰس کښې دي نو دا لفظ په دَ متشابهات نه شي او يا حذف شوي دَ وقف دَ وجې نه - وَاِنَّا لَمُوْسِعُوْنَ دَ وسع نه ماخوذ دې په معنیٰ دَ قدرت واسعه سره دې نو دا اسم فاعل دې په معنیٰ دَ ذوکذا سره يعني (ذُوْ وسْعٍ وَطَاقَةٍ) يا دَ وسعت متعديه نه دې يعني په مينځ دَ اسمان او ځمکه کښې اودا رنګ الله تعالیٰ دَ اسمانونو په مينځ کښې ډيره فراخي پيدا کړې ده لکه چه حديث صحيح کښې وارد دي چه دَ ځمکې او اسمان اودَ يو اسمان نه تر بل اسمان پورې دَ پنځه پنځه سوه کالونو فاصله ده۔

۴۸ دا دويم دليل سفلي دې. فَرَشْنٰهَا يعني ځمکه دا سې پيدا کړې ده چه ډيره نرمه هم نه ده او ډيره سخته هم نه ده دَ پاره دَ دې چه مخلوق ترينه فائده واخلي. فَنِعْمَ الْمٰهِدُوْنَ دا بيا فائدې ته اشاره ده يعني انسانان پکښې ارام کوي اودَ ارام ځايونه هم پکښې الله تعالیٰ جوړ کړيدي۔

۴۹ دا دريم دليل دې او وسطي دې يعني چه الله تعالیٰ قادر دې په پيدا کولو دَ زوجيت دَ څيزونو نو قادر دې په دوباره ژوندي کولو بانديې او دارنګ هر کله چه هرڅيز جوړې جوړې دې نو دَ دنيا دَ پاره هم جوړې پکار ده چه اخرت دې او دارنګ چه هر کله مخلوق ټول زوج زوج دې نو معلومه شوه چه خالق فرد او يو دې ځکه چه الله تعالیٰ دَ مثل نه پاک دې - وَمِنْ كُلِّ شَيْءٍ حيوانانو نباتاتو کښې او په اوصافو او احوالو کښې او رنګونو او اوقاتو کښې زوجيت دې يعني مذکر او مؤنث غنیٰ او فقر حسن او قبح ژوند او مرګ او تيا ره رڼا او ر پاتې په بل مخ)

فَفِرُّوْۤا اِلَى اللّٰهِ ؕ اِنِّیْ لَكُمْ مِّنْهُ نَذِیْرٌ مُّبِیْنٌ ۚ۝۵۰

نو او تختئ الله تعالیٰ ته یقیناً زهٔ تاسو لره دَ هغه نه ویره درکوونکے یم ښکاره .

وَلَا تَجْعَلُوْا مَعَ اللّٰهِ اِلٰهًا اٰخَرَ ؕ اِنِّیْ لَكُمْ مِّنْهُ

او مه جوړوئے دَ الله تعالیٰ سره حقدار دَ بندګئ بل یقیناً زهٔ تاسو لره دَ هغه نه

نَذِیْرٌ مُّبِیْنٌ ۚ۝۵۱ كَذٰلِكَ مَاۤ اَتَى الَّذِیْنَ مِنْ

ویره درکوونکے یم ښکاره . دغسے نه راتلو هغه کسانو ته چه دَ

قَبْلِهِمْ مِّنْ رَّسُوْلٍ اِلَّا قَالُوْا سَاحِرٌ اَوْ

دوی نه مخکښ دوٙ هیڅ رسول مګر دوی ویل جادوګر دے او

او شپه ورځ ، نر او سپو ږمئ ، صحت او بیماری ، او چه او لوند ه (دریاب) سمه او غر، ګرمی او یخنی ، ایمان او کفر ، سعادت او شقاوت ، حق او باطل ، خوږ او تریخ ، آسمان او زمکه ، خیر او شر ، جن او انس ، صبا او بیګاه ، حرکت او سکون ، ښکته او بره ، ابتداء او انتها ، دُنیا او آخرت وغیره .

لَعَلَّكُمْ تَذَكَّرُوْنَ مراد دَ دے نه تذکر دَ قیامت دے او توحید دَ الله تعالیٰ په هغه طریقه چه مخکښ ذکر کړے شو .

سنه دا نتیجه ده دَ تیر شوی نقلی او عقلی دلیلونو او دا لفظ ډیرو معانیو ته شامل دے یعنی او تختئ دَ ماسوی الله نه الله تعالیٰ طرف ته او دَ ګناهونو نه طاعت دَ الله تعالیٰ ته ، او دَ طاعت دَ شیطان نه طاعت دَ الله تعالیٰ ته ، او دَ جهل نه علم ته او دَ بندګئ دَ غیر الله نه بندګئ دَ الله تعالیٰ ته .

او فَفِرُّوْۤا کښ اشاره ده چه شیطانی قوتونه ډیر دی دَ هغوی نه دَ بچ کیدلو دَپاره تختیدل ضروری دی په سُست رفتار باندے کار نه کیږی .

نَذِیْرٌ ویره ورکوونکے دَ فرار نه غیر الله نه ځکه چه په دے کښ عذاب دے .

سله اول آیت کښ اثبات دَ توحید وو او په دے کښ نفی دَ شرک ده او دا کمال توحید دے نَذِیْرٌ اول انذار دَ عذاب دَ دنیا نه وو او دا انذار دَ عذاب دَ آخرت نه دے یا اول انذار دَ مطلق عذاب نه وو او دا انذار دَ همیشه عذاب نه دے ځکه چه مشرک دَپاره عذاب همیشه دے .

مَجْنُوْنٌ ﴿۵۲﴾ اَتَوَاصَوْا بِهٖ ۚ بَلْ هُمْ قَوْمٌ طَاغُوْنَ ﴿۵۳﴾

لیونی دے ۔ آیا دوی یو بل ته وصیت کړے دے په دے خبره باندې بلکه دوی قوم سرکش دی۔

فَتَوَلَّ عَنْهُمْ فَمَآ اَنْتَ بِمَلُوْمٍ ﴿۵۴﴾ وَّذَكِّرْ فَاِنَّ

نو مخ واړوه د دوی نه نو ته نه یې ملامته کړے شوے۔ او قرآن بیان کړه یقیناً

الذِّكْرٰى تَنْفَعُ الْمُؤْمِنِيْنَ ﴿۵۵﴾ وَمَا خَلَقْتُ

قرآن بیانول نفع ورکوی مؤمنانو ته ۔ او نه دی پیدا کړی ما

۵۲ ۵۳ په دے ایاتونو کښې زجر دے منکرینو ته یعنی په امر (ففروا) او نهی (ولا تجعلوا) باندې دوی عمل نه کوی بلکه تکذیب کوی۔ مِنْ قَبْلِهِمْ په دے سورت کښې ذکر د فرعونیانو تیر شوی دے چه هغوی هم داسے تکذیب کړے وؤ۔ سَاحِرٌ اَوْ مَجْنُوْنٌ اَوْ د پاره د شک یا د پاره د تفصیل دے خو بهر صورت د منکرینو په تناقض او جهل باندے دلالت کوی ځکه چه مجنون ساحر نشی کیدے.

اِلَّا سوال :- دا دلالت کوی په حصر باندے یعنی مکذبینو سیوا د دے د دوه حکمونو نه نور هیڅ نه دی ویلے او حال دا چه هغوی خو په نورو طریقو او الفاظو سره هم تکذیب کړے دے لکه كَذَّابٌ اَشِرٌ او داسے نور؟

جواب :- دا دواړه لفظونه یې په کثرت سره ویلے وو یا دا چه دا دواړه جامع دی هغه ټولو قبائحو لره چه دوی انبیاؤ ته نسبت کوؤ ځکه ساحر صفت ټولو فسادانو ته شامل دے او مجنون هغه احوالو ته عام دے چه د انسانیت نه پرے سرے بهر کیږی۔ اَتَوَاصَوْا بِهٖ یعنی یو شان حکم کول د مکذبینو د ټولو زمانو، یا د دے وجه نه دے چه دوی یو بل ته وصیت کړے دے یا د طغیان د وجے نه دے اوله خبره خو نیشته نو دویمه ثابته شوه او دا زجر شوے دے -

۵۴ ۵۵ دا تسلی او تشجیع ده نبی صلی الله علیه وسلم ته - مراد د تَوَلَّ نه دا دے چه د دوی پرواه مه ساته که خبره منی او که نه منی فَمَآ اَنْتَ بِمَلُوْمٍ ځکه تا خپله ذمه داری ادا کړے ده او ادا کوے یې وَذَكِّرْ په دے سره اشاره ده چه د تَوَلَّ نه مراد پریښودل د دعوت نه دی۔ تَنْفَعُ الْمُؤْمِنِيْنَ یعنی دعوت او بیان کول د فائدے نه خالی نه دی د مُؤْمِنِيْنَ نه مراد هغه خلق دی چه اراده د ایمان لری په اعتبار د مَا يَؤُوْلُ اِلَيْهِ سره یا ایمان واله دی او د ایمان نفع ریلے په بل مخ)

الْجِنَّ وَالْاِنْسَ اِلَّا لِيَعْبُدُوْنِ ﴿۵۶﴾ مَاۤ اُرِيْدُ

پېریان او انسانان مګر دے دپاره چه زما بندګي اوکړي. زۀ نه غواړم

مِنْهُمْ مِّنْ رِّزْقٍ وَّمَاۤ اُرِيْدُ اَنْ يُّطْعِمُوْنِ ﴿۵۷﴾

دَ دوی نه هیڅ روزی (ځان دپاره) او نه غواړم چه ما له خوراک راکړي.

داده چه په قرآن سره په ئے ایمان مضبوط شي او نور احکام متعلق دَ ایمان سره په ایزده کړي.

سے دَ دے ربط دَ ذکر سره دے یعنی دوی ته تذکیر دَ حکمت دَ پیدائش دَ جن او انس ورکړه. اِلَّا لِيَعْبُدُوْنَ (سوال) هر کله چه عبادت دَ الله تعالیٰ په طریقه دَ توحید سره مراد شی دَ خَلْق جن او انس نو ډیر جن او انس خو توحید والا نه دی نو خلاف لازم شو دَ اراده دَ الله تعالیٰ نه نو ثابت شو مذهب دَ معتزلو او داخلاف دے دَ ډیرو نصوصو نه؟

جواب:- په ډیرو طریقو سره دَ اوله طریقه داده چه مراد دَ دے اقرار کول دی په بندګئ دَ الله تعالیٰ که په خوښه سره وی او که په زور سره وی نو کفار او مشرکین په حالت دَ کړه (زور) کښې اقرار دَ بندګئ دَ الله تعالیٰ کوی. دویمه طریقه داده چه مراد دَ دے نه امر کول او مکلّف کول دَ دوی دی په توحید سره او امر دوی ته شوی دے لکه په آیت دَ سورة بینه سے کښې دی دریمه طریقه دا چه مراد دَ جن او انس نه صرف مؤمنان دی څلورمه طریقه داده چه مراد دَ دے نه استعداد دَ دوی دے دَپاره دَ توحید فی العبادت.

سے په دے کښې اثبات دَ الوهیت دَ الله تعالیٰ دے چه الله تعالیٰ هیڅ قسم محتاج نه دَ او دفع دَ وهم ده، هغه دا چه مخلوق چه هر کله ځان له عبید (مریان) جوړ وی نو دَ خپل اغراضو دَپاره ئے جوړوی نو الله تعالیٰ او فرمائیل چه ما دَ خپل هیڅ غرض او فائدے دَپاره نه دی پیدا کړی. مِنْ رِّزْقٍ یعنی رزق ګټل او کسبونه دَ بندګانو دَ ځان دَپاره دی پیدا کښې الله تعالیٰ دَ ځان دَپاره هیڅ فائده غرض او مقصد نه دے ګرځولے او دارنګ مقصد اصلی دَ خِلقت رزق ګټل نه دی بلکه دا خو صرف ذریعه او وسیله ده دَپاره دَ بندګئ کولو. اَنْ يُّطْعِمُوْنِ دَ دے سره ئے مستقل مَاۤ اُرِيْدُ دَ دے وجے ذکر کړو چه مولیٰ کله مریئے صرف دَ خپل خدمت دَپاره مقرر کړے وی دَ هغه کسب کول ئے مراد نه وی نو الله تعالیٰ دا مقصد هم دَ ځان نه

إِنَّ اللَّهَ هُوَ الرَّزَّاقُ ذُو الْقُوَّةِ الْمَتِينُ ﴿۵۸﴾ فَإِنَّ

یقینًا الله تعالٰی خاص هغه روزی ورکوونکے دے خاوند د طاقت مضبوط دے. نو یقینًا

لِلَّذِينَ ظَلَمُوا ذَنُوبًا مِّثْلَ ذَنُوبِ أَصْحَابِهِمْ

هغه کسانو لره چه ظلم ئے کړیدے برخه دعذاب دی پشان د برخے دعذاب د ملګرو د دوی

فَلَا يَسْتَعْجِلُونِ ﴿۵۹﴾ فَوَيْلٌ لِّلَّذِينَ كَفَرُوا

نو دوی دے په تادئ سره نه غواړی. نو تباهی ده هغه کسانو لره چه کفر ئے کړیدے

مِن يَوْمِهِمُ الَّذِي يُوعَدُونَ ﴿۶۰﴾ ع

د ورځ د هغه ورځے د دوی نه چه دوی سره ئے وعده کیدیشی.

مستقلاً نفی کړو. نو دا ښکاره دلیل دے چه الله تعالٰی مخلوق ته د بندګئ حکم د خپل غرض دپاره نه دے ورکړے بلکه د مخلوق فایده ده یعنی اجر د دنیا د اخرت حاصلول او د عذاب نه بچ کیدل.

ف۵۸ هرکله چه بعض مورکان د خپلو مریانو نه خدمت نه اخلی نو روزی هم نه ورکوی نو الله تعالٰی دا وهم هم دفع کړے پدے قول سره چه إِنَّ اللَّهَ هُوَ الرَّزَّاقُ صیغه د مبالغے کښ اشاره ده چه هر قسم او هر وخت او هر چاله روزی ورکوونکے او پیدا کوونکے دے. ذُو الْقُوَّةِ په دے لفظ کښ اشاره ده چه الله تعالٰی مخلوق ته په روزئے ورکولو کښ د هیڅ چا مدد کولو ته محتاج نه دے او لفظ د ذُو دلالت کوی په ښکاره کولو د قوت باندے الْمَتِينُ پدے کښ اشاره ده چه په قوت د الله تعالٰی کښ هیڅ قسم کمزوری نه راځی.

ف۵۹ دا تخویف دنیوی دے. یعنی هرکله چه ذکر شو حکمت د پیدا ئیښ د جن او انس او ذکر شو قوت د الله تعالٰی نو دا سبب دے دپار د سزا د ظالمانو هغه چه د حکمت د پیدائیښ نه ئے خلاف کړیدے. ذَنُوبًا په اصل کښ هغه بوقے ته ویلے کیږی چه ډکه وی د اوبو نه دا رنګ هغه ورځ د شر ته ویلے کیږی چه ډیره اوګده وی دلته مراد غټه برخه د عذاب ده مِثْلَ ذَنُوبِ أَصْحَابِهِمْ مراد د دے نه هغه قومونه د مکذبینو دی چه په دے سورت کښ د هغوی د عذابونو ذکر شویدے نو په دے کښ عذاب دنیوی مراد دے.

ف۶۰ مراد د يَوْمِهِمُ الَّذِي يُوعَدُونَ نه ورځ د عذاب دنیوی ده نو فا په فویل کښ د سببیت دپاره ده یعنی دغه برخے د عذاب سبب دے دپاره د هلاکت د دوی. یا مراد د يَوْمِهِمُ نه ورځ د قیامت ده او فا دپاره د عطف ده یعنی روستو د عذاب د دنیا نه عذاب د ورځ د قیامت دے.

ختم شو تفسیر د سورة ذاریات په فضل د رب موجودات.

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

## سورة الطور۔

ربط د دے سورت د ماقبل سره په ډیرو وجوهو سره دے اوله وجه داده چه په سورة ذاریات کښ خبر ورکول وو په صدق د وعدے او واقع کیدل د جزاء وو نو په دے سورت کښ یو صورت د جزا ئے ذکر کړے دے چه هغه عذاب دے دویمه وجه داده چه هلته کښ افتتان په اور باندے ذکر کړے وو نو په دے سورت کښ مصیبتو نه د اور ذکر کوی۔ دریمه وجه داده په هغه سورت کښ اجمالی بشارت وو متقیانو ته او په دے کښ تفصیلی بشارت دے۔ څلورمه وجه داده په هغه سورت کښ مختصر زجر ذکر کړے وو او په دے سورت کښ زجرونه په کثرت سره ذکر کړے دی۔

دعوٰی د سورت اثبات د قیامت دے په ذکر د وقوع د عذاب سره۔ او بیان د توحید هم دے په رد د شرک فی الدعا او اتخاذ د ولد سره په ۲۸ ۳۹ ۴۳ ۴۶ کښ۔

خلاصه د سورت داده چه دا سورت تقسیم دے دوه بابونو ته اول باب تر ۲۹ پورے دے په دے کښ پنځه شواهد دی په دعوی د سورت باندے بیا دعوٰی ئے ذکر کړے ده بیا تخویف اخروی دے په نهه طریقو سره بیا بشارت تفصیلیه دے په اتلس وجوهو سره، سره د ذکر د سبب د دخولِ جنت نه په ۲۸ کښ۔

تفسیر ۱ نه تر ۷ دا ټول قسمونه دی په طریقه د شهادت د پاره د اثبات د دعوے چه وروستو ذکر کړے شویده۔ الطُّوْرِ هر هغه غر ته ویلے کیږی چه اوچت او بوټی پکښ وی او مشهور دے په دے نوم سره هغه غر چه موسٰی علیه السّلام سره الله تعالٰی کلام کړے وو د هغے په خوا کښ۔ او د هغے په خوا کښ په اوریا کسانو باندے عذاب راغلے وو د وجے د بے ادبے کولو نه د دے وجے په شهادت د عذاب کښ ذکر کیږی او مشرکینِ عرب په تقلید د اهلِ کتابو کښ د دے واقعاتو

وَالْبَيْتِ الْمَعْمُوْرِ ④ وَالسَّقْفِ الْمَرْفُوْعِ ⑤

او په كور آبادكړے شوى باندے، او په چت پورته كړے شوى باندے.

وَالْبَحْرِ الْمَسْجُوْرِ ⑥ اِنَّ عَذَابَ رَبِّكَ

او په سمندر ډك كړے شوى باندے چه يقيناً عذاب دَ رب ستا

او دَ طور دَ شرافت قائل وؤ۔ وَكِتَابٍ مَّسْطُوْرٍ فِيْ رَقٍّ مَّنْشُوْرٍ، غوره دا ده چه مراد دَ دے نه تورات دے چه په تختو كښ ليكلے شوے موسٰى عليه السّلام ته وركړے شويوؤ لكه په سورة اعراف ۱۴۵ كښ تير شويدى فِيْ رَقٍّ هغه ترۓ څرمن او كاغذ چه په هغے باندے ليكل كيدے شى او مَنْشُوْرٍ دلالت كوى چه هغه خورے ريعنى اوګلدے او پلنے تختے وے۔ او په كتاب دَ موسٰى عليه السّلام كښ په اقوام مكذبه مخكنو باندے او په بنى اسرائيلو باندے دَ نزول دَ عذاب ډير ذكر دے، دَ دے وجے نه دَ عذاب په شهادت كښ ذكر كيږى۔ وَالْبَيْتِ الْمَعْمُوْرِ په حديث دَ معراج كښ ذكر شويدى چه په اُووم آسمان كښ رسول الله صلّى الله عليه وسلّم ته بيت المعمور ښكاره كړے شو چه هره ورځ هغے ته اويا زره ملائيك داخليږى او بيا دوباره دَ هغوى نمبر نه دے راغلے۔ نو هغه آباد دے په طوافونو او عبادتونو دَ ملائكو سره۔ او دَ هغے سره ملائك دَ مؤمنانو دَپاره دَ عذاب نه دَ بچ كيدلو دَپاره دُعا ګانے هم غواړى لكه سورة مؤمن ۷ كښ دى دَ دے وجے نه په شهادت دَ عذاب كښ ذكر كيږى يا مراد دَ دے نه كعبة الله ده چه هغه هم په حاجيانو او عمره كوؤنكو سره هميشه آباده ده او ابراهيم عليه السّلام دَ هغے تعمير كړيدے او دَ هغے په حق كښ په اصحاب فيل باندے عذاب راغلے وؤ دَ دے وجے په شهادت دَ عذاب كښ ذكر كيدے شى۔ وَالسَّقْفِ الْمَرْفُوْعِ مراد دَ دے نه آسمان دے په قرينه دَ سورة الانبياء ۳۲ - او دَ آسمان دَ طرف نه ډير عذابونه په منكرينو باندے راغلى دى دَ دے وجے نه يئے په شهادت كښ ذكر كړے دے۔ وَالْبَحْرِ په درياب او طوفان كښ قوم فرعون او قوم دَ نوح عليه السلام هلاك شويدى نو دا هم شهادت دے په عذاب باندے۔ الْمَسْجُوْرِ په معنىٰ دَ ډك سره او په معنىٰ دَ بل كړے شوى په اور سره يعنى دَ قيامت په ورځ به وريانده او ريل شى لكه سورة تكوير ۶ كښ نو دَ اوبو نه به خالى شى۔ او په معنىٰ دَ خالى كړے شوى سره هم راځى۔ او په معنىٰ دَ بند كړے شوے دَ مخ دَ زمكے نه چه په ټوله زمكه باندے خوره نه شى دا ټولے معانى ابن كثير او قرطبى ذكر كړے دى۔

لَوَاقِعٌ ۝۷ مَّا لَهٗ مِنْ دَافِعٍ ۝۸ يَّوْمَ تَمُوْرُ السَّمَآءُ

ضرور واقع کیږی، نیشته هغه لره هیڅ دفع کوونکے . په هغه ورځ چه اوبه چورلی آسمان

مَوْرًا ۝۹ وَّتَسِيْرُ الْجِبَالُ سَيْرًا ۝۱۰ فَوَيْلٌ

په چورلیدلو، او روان به شی غرونه په روانیدلو . نو تباهی ده

يَّوْمَئِذٍ لِّلْمُكَذِّبِيْنَ ۝۱۱ الَّذِيْنَ هُمْ فِيْ

په دغه ورځ تکذیب کوونکو لره ، هغه کسان چه دوی دی په

خَوْضٍ يَّلْعَبُوْنَ ۝۱۲ يَوْمَ يُدَعُّوْنَ اِلٰى نَارِ

باطله مشغولا کښ لوبے کوی . په هغه ورځ به په ډیکو بوتللے شی اور دَ

ک ۸ داجواب دَقسم دے او دَقسم او جواب په مینځ کښ مناسبت مخکښ بیان شو هغه داچه په دے ټولوکښ دَعذاب واقعاتوته اشاره ده . مَا لَهٗ مِنْ دَافِعٍ یعنی تیرشوی عذابونه هیڅا نه دی دفع کړی نو دَ دے نه روستو هم دفع کولے نشی لکه چه په سورة معارج سا ۳ کښ راغلے دی مفسرینو لیکلے دی چه دا آیاتونه دَجبیر بن مطعم رض دَایمان راوړلو دَپاره سبب اوګرځیدل او ابن کثیر لیکلے دی چه دَ دے په اوریدلو سره عمر رضی الله عنه داسے غم زده شو چه شل ورځے یا یو میاشت ئے خلقو بیمار پُرسی کوله .

۹ ۱۰ په دیکښ دخت دَ دقوع دَ عذاب ذکرکړے دے یعنی ورځ دَ قیامت . او دَ هغه ورځ هیبتونه ذکرکوی دَآسمان او دَغرونو حالات . تَمُوْرُ السَّمَآءُ مَوْرًا په لغت دَعرب کښ مَوْرٌ تلو راتلو، اوګرځیدل اوچورلیدل دَجرنښے پشان دے ټولو معانیوته شامل دے او دلته هم ټولے معانی صحیح دی اوحال دَغرونو په سَیْرًا سره ذکر دے یعنی دَمخ دَ زمکے نه به روان کړے شی لکه سورة تکویر ۳ کښ دی .

۱۱ ۱۲ په دے کښ ذکر دَمستحقینو دَعذاب دے او دَعذاب دوه اسباب ذکر کوی . حرف دَ فَا دلالت کوی په شرط مقدر باندے یعنی هرکله چه دغه حالات راشی نو هلاکت دَمکذبینو په شوروشی . خَوْضٍ دا سبب سورة مدثر ۴۵ کښ هم ذکرکړے دے مراد دَ دے نه په باطل بحثونو کښ مشغولیدل او په دین باندے اعتراضونو وطعنونه کول دی لکه چه دَ دهریانو اوغیرو قاسقانو مجلسونه وی .

جَهَنَّمَ دَعًّا ﴿۱۳﴾ هٰذِهِ النَّارُ الَّتِيْ كُنْتُمْ بِهَا

دَ جهنم ته په ډیکو دیکو. (او به ویلے شی) دا هغه اور دے چه تاسو وٓ ئے دٓ دے

تُكَذِّبُوْنَ ﴿۱۴﴾ اَفَسِحْرٌ هٰذَآ اَمْ اَنْتُمْ لَا

تکذیب کوونکی . ایا نو دا جادو دے یا تاسو هیځ

تُبْصِرُوْنَ ﴿۱۵﴾ اِصْلَوْهَا فَاصْبِرُوْٓا اَوْ لَا تَصْبِرُوْا سَوَآءٌ

نه وینئ . ورننو ځئ اُور ته که صبر کوئ او که نه کوئ برابره خبره ده

عَلَيْكُمْ ۖ اِنَّمَا تُجْزَوْنَ مَا كُنْتُمْ تَعْمَلُوْنَ ﴿۱۶﴾

په تاسو باندے یقینا بدلے ورکیدیشی تاسو ته دَ هغه عملونو چه تاسو کول .

يَلْعَبُوْنَ یعنی دا بحثونه دَ حق معلومولو او دَ تحقیق دَ پاره نه کوی بلکه دَ لوبو کولو په طریقه صرف وخت تیروی .

سـ۱۳ سـ۱۳ دا يَوْمَ بدل دے دَ يَوْمَ تَمُوْرُ يا دَ يَوْمَئِذٍ نه دا دَ هغه ورځے نور هیبتونه ذکر کوی . يُدَعُّوْنَ یعنی اور ته به ئے په زور باندے او په ډیکو ورکولو سره داخلوی . كُنْتُمْ بِهَا په دے کښ اشاره ده دوام تکذیب ته .

سـ۱۵ سـ۱۴ دَ دے نه وړاندے يَقُوْلُ الْمَلٰٓئِكَةُ پټ دے ملائک دَ جهنم به ورته اُوائی .

اَفَسِحْرٌ، دا ډیره زورنه ده . یعنی تاسو به په دنیا کښ معجزاتو الهیو په باره کښ ویل چه دا سحر دے او که به موخیال کوو چه دا نظر بندی ده نو ایا نن هم دَ اور په باره کښ ستاسو داخیال دے .

یا اَمْ اَنْتُمْ لَا تُبْصِرُوْنَ اَمْ په معنیٰ دَ بَلْ سره دے او دا حکایت دَ حال دَ دنیا دے چه تاسو په دنیا کښ دَ بصیرت او پوهے نه کار نه اغستلو .

سَوَآءٌ عَلَيْكُمْ لکه چه سورة ابراهیم سـ۲۱ کښ تیر شویدی .

إِنَّ الْمُتَّقِينَ فِي جَنَّٰتٍ وَنَعِيمٍ ﴿١٧﴾ فَٰكِهِينَ

یقینًا متقیان به په باغونو او نعمتونو کښې وی، خوشحالی به کوی

بِمَآ ءَاتَىٰهُمْ رَبُّهُمْ وَوَقَىٰهُمْ رَبُّهُمْ عَذَابَ

په هغه نعمتونو چه ورکړی دی دوی ته رب د دوی او بچ ساتلی دی دوی رب د دوی د عذاب

الْجَحِيمِ ﴿١٨﴾ كُلُوا وَاشْرَبُوا هَنِيٓـًٔا بِمَا كُنتُمْ

د جهنم نه - خورئ او څښئ په خوشحالئ سره په سبب د هغه عملونو

تَعْمَلُونَ ﴿١٩﴾ مُتَّكِـِٔينَ عَلَىٰ سُرُرٍ مَّصْفُوفَةٍ

چه تاسو کول، تکیه به ئې وهلی وی په کټونو بانده چه صف په صف به پراته وی

وَزَوَّجْنَٰهُم بِحُورٍ عِينٍ ﴿٢٠﴾ وَالَّذِينَ ءَامَنُوا

او جوړئ به ورکړو مونږ دی به د دوی سره حورے ښائسته سترګو والا- او هغه کسان چه ایمان ئې راوړے دے

ئ۱ تا ۱۸ د دے نه تفصیلی بشارت د متقینو د پاره شورو شو په دے دواړه ایاتونو کښې په خلور خیزونو سره ذیرے دے - فَٰكِهِينَ په معنیٰ د متفکهین دے یعنی "مزے اغستونکے به وی" او قرطبی ویلی دی چه فَاكِهِينَ په معنیٰ د "خاوندان د ډیرو میوو به وی" دے یعنی دا فاعل ذو کتنا دے لکه تامِرٌ او لابِنٌ پشان.

وَوَقَاهُمْ دا مستقل نعمت دے یعنی جنت ته د ابتدا نه داخل شول او د اور نه بالکل بچ ساتلے شوی دی. رَبُّهُمْ اشاره ده چه بچ کیدل د وجے د احسان د الله تعالیٰ نه دی په عمل سره نه دی-

۱۹ تا ۲۰ په دے ایاتونو کښې په ظاهری محسوسی نعمتونو سره زیرے ذکر کوی هَنِيٓـًٔا دا د خوراک څښاک دواړو سره تعلق لری لیکن څښکل اکثر تابع د خوراک دی د دے وجے نه یو کرت ئې ذکر کړے دے مراد د دے نه دا دے چه خوراک څښاک کښې به هیڅ نقصان یا مرض او آفت نه وی.

وَزَوَّجْنَاهُمْ لکه چه سورة فرقان ۵۴ کښې تیر شوی دی -

وَاتَّبَعَتْهُمْ ذُرِّيَّتُهُمْ بِإِيمَانٍ أَلْحَقْنَا بِهِمْ

او تابعداري كړې ده د دوی بچو د دوی په ایمان سره یو ځائے به کړو مونږ د دوی سره

ذُرِّيَّتَهُمْ وَمَا أَلَتْنَاهُمْ مِنْ عَمَلِهِمْ مِنْ

بچي د دوی او نه به ئې کمګړے کوؤ مونږ د عملونو د دوی نه هیڅ

شَيْءٍ كُلُّ امْرِئٍ بِمَا كَسَبَ رَهِينٌ ﴿۲۱﴾

څیز هر سړے به د هغه عمل چه کړے وي انتظار کوونکے وي۔

وَأَمْدَدْنَاهُمْ بِفَاكِهَةٍ وَلَحْمٍ مِمَّا يَشْتَهُونَ ﴿۲۲﴾

او زیاتوؤ مونږ دوی لره میوے او غوښے د هغه قسم نه چه دوی ئې اشتها لري۔

سلا په دے کښې زیرے دے په نورو طریقو سره۔ بِإِيمَانٍ مراد د ذُرِّيَّةٌ نه عام دے داره بچي وي او که بالغ وي که داره وي نو مراد د ایمانه ایمانِ تبعي دے یعنې د مور او پلار د ایمان د وجے نه دوی هم مؤمنان دي او که بالغ وي نو مراد د ایمان نه ایمان تکلیفي او اختیاري دے یعنې اګرچه دا اولاد په عمل کولو کښې د پلارانو نه کم دي لیکن د پلارانو۔ د خوشحالئ د پاره به د هغوی سره په جنت کښې یو ځائے کړے شي۔ او سراج المنیر کښې ذکر کړے دي چه ذریة لفظ د اولاد نه عام دے ابا وُ او اولاد او تابعداري کوونکو ملګرو شاګردانو ته هم شامل دے په دے دلیل د "اَلْمَرْءُ مَعَ مَنْ اَحَبَّ" سره وَمَا اَلَتْنَاهُمْ په دے سره وهم دفع کوي چه کیدے شي چه د پلارانو درجه به کوزه کړے شي نو اولاد به ورسره یو ځائے کړے شي نو جواب اوشو چه معامله په برعکس وي د پلارانو په جزا کښې به هیڅ نقصان نه راولي۔ كُلُّ امْرِئٍ په دے کښې جواب د وهم دے هغه دادے لکه چه د پلار د نیک عمل په وجه سره اولاد ته فائده او رسیدله نو کیدے شي چه د پلار د ګناه په وجه یا د اولاد د ګناه په وجه سره یو بل ته نقصان اورسي نو جواب اوشو چه بد عمل د هر نفس ځان له دے۔ بیا دا جمله عامه ده هر نیک او بد عمل ته شامل ده او رَهِينٌ عام دے په معنیٰ د انتظار کوونکے د جزاءِ خیر یا جزاءِ شر یا مراد د دے نه صرف مشرکان او ګناه ګار دي په قرینه د سورة مدثر ۳۸ سره چه په هغې کښې د اصحاب الیمین استثناء ذکر کړده۔

سلا په دے کښې بشارت په بله طریقه سره دے او دفع د وهم ده (پاتے په بل مخ)

يَتَنَازَعُوْنَ فِيْهَا كَاْسًا لَّا لَغْوٌ فِيْهَا وَلَا تَاْثِيْمٌ ﴿۲۳﴾

راخلي به دَ يو بل نه په هغې کښې کاسے دَکے نه به وي بے فائدے خبرے په هغې کښې او نه گناه.

وَيَطُوْفُ عَلَيْهِمْ غِلْمَانٌ لَّهُمْ كَاَنَّهُمْ

او ځي راځي به دَ دوي دَ خدمت دَ پاره هلکان دَ دوي گويا که دوي

لُؤْلُؤٌ مَّكْنُوْنٌ ﴿۲۴﴾ وَاَقْبَلَ بَعْضُهُمْ عَلٰى بَعْضٍ

ملغلرے پټے ساتلے شوے دي. او مخامخ به شي بعض دَ دوي په بعضو باندے

وهم دا دے چه هرکله اولاد ئې ورسره يو ځائے کړل نو کيدے شي چه دَ هغوي دَ وجے نه په نعمتونو کښې کمے راشي نو جواب اوشو چه وخت به خوراکونه زيات تيريږي او په دے کښې ترتيب پشان دَ سورة واقعه دے چه په ۲۰ ۲۱ کښې راغلے دي يعني اول ميوے او بيا غوښے په خلاف دَ ترتيب دَ دُنيا نه او وجه داده چه په جنت کښې خوراک دَ غوښے هم دَ تفکه او دَ مزے دَ پاره دے نه دَ لوږے دَ وجے نه.

۲۳ يَتَنَازَعُوْنَ تنازع په اصل کښې دَ يو بل نه څيز راښکل دي مراد دَ دے نه يو بل ته ورکول دي ليکن راښکل ئې هم راښکل دَ مزے او خوشطبعي دي دَ حرص او دَ جگړے په طريقے سره نه دي. كَاْسًا هغه لوښے دے چه ډک وي، چه تش وي نو هغې ته کاس نه ويلے کيږي. لَا لَغْوٌ فِيْهَا دا ضمير راجع دے جنت ته يا راجع دے کاس ته ځکه هغه مؤنث او مذکر دواړه مستعمليږي يا راجع دے تنازع ته په تاويل دَ حالت. لَغْوٌ هغه کلام دے چه هيڅ فائده پکښې نه وي اگرچه نقصان هم پکښې نه وي. تَاْثِيْمٌ هغه کلام دے چه په هغې کښې گناه وي لکه چه دَ دنيا په شرابو څښلو سره نشه راځي او بيا کنځل او فحش کارونه کوي دا سے به دَ جنت په مشروباتو کښې نه وي. او تاثيم تهمت ته هم ويلے کيږي.

۲۴ هرکله چه خوراک او څښاک ذکر شول نو اوس دَ هغې دَ پاره دَ خادمانو ذکر کوي او سورة واقعه ۱۷ او سورة دهر ۱۹ کښې وِلْدَانٌ ذکر کړے دي. نو هلته مراد دَ دوي اولاد دے چه دَ دوي سره به په جنت کښې وي او دَ دوي په خوا کښې به هر وخت گرځي او دلته مراد خدمتگاران دي چه دا به په جنت کښې پيدا شوي وي لکه دَ حورو پشان يا دا چه غلمان ئې ورته اُويل په اعتبار دَ خدمت کولو او ولدان ئې ورته اُويل په اعتبار دَ نابالغ کيدلو سره. لَّهُمْ کښې اشاره ده چه

يَتَسَآءَلُوْنَ ﴿۲۵﴾ قَالُوْٓا اِنَّا كُنَّا قَبْلُ فِيْٓ اَهْلِنَا

تپوسونه به کوی دَ يو بل نه - وائی به دوی يقيناً مونږ وو دَ دے نه مخکښ په خپله کورنئ کښ

مُشْفِقِيْنَ ﴿۲۶﴾ فَمَنَّ اللّٰهُ عَلَيْنَا وَوَقٰىنَا عَذَابَ

ډيره کوونکی دوی دَ الله تعالیٰ نه - نو احسان اوکړو الله تعالیٰ په مونږ باندے او بچ ئے کړو مونږه دَ عذاب

السَّمُوْمِ ﴿۲۷﴾ اِنَّا كُنَّا مِنْ قَبْلُ نَدْعُوْهُ ؕ اِنَّهٗ

دَ ګرمے هوا نه - يقيناً مونږ دَ دے نه مخکښ وو چه الله تعالیٰ ته به مو دعا غوختله يقيناً هغه

هُوَ الْبَرُّ الرَّحِيْمُ ﴿۲۸﴾ فَذَكِّرْ فَمَآ اَنْتَ

ډير احسان کوونکے رحم کوونکے دے - نو بيان کړه قرآن نه ئے ته

هرچا پورے به خپل غلامان خاص وی . مَكْنُوْنٌ چه په صدف کښ پټه وی يا په جنت کښ محفوظ ساتلے شوی وی او هرکله چه دَ خادمانو دا سے حال دے نو دَ مخدومانو حال خو به دَ دے نه اوچت وی -

۲۵ دا بشارت دے په بله طريقه سره يعنی په کوم سبب سره چه جنت ته راؤ رسيدل په هغے باندے خوشحالی کوی - يَتَسَآءَلُوْنَ مراد دا چه څه سبب دے چه دا نعمتونه دَ جنت مونږ ته حاصل شول يا دا چه دَ دنيا دَ ستړيوالی او عملونو دَ يو بل نه تپوسونه کوی لکه چه سورة صافات ۵۰ کښ تير شوی دی -

۲۶ دا حاصل دَ جواب دَ ټولو دے فِيْٓ اَهْلِنَا اشاره ده چه سره دَ دے نه چه دَ اهل و عيال په شغل کښ نورو خلقو دَ الله تعالیٰ دَ عذاب نه غفلت کوؤ ليکن هغه شغل زمونږ دَ پاره سبب دَ غفلت نه دے ګرځيدلے مُشْفِقِيْنَ اشفاق هغه ويره ده چه سره دَ رغبت او دَ مينے نه وی يعنی هم ويره او هم اميد ساتل -

۲۷ فَمَنَّ اللّٰهُ مراد دَ دے نه توفيق دَ هدايت دے په دنيا کښ يا جنت او مغفرة مراد دے په آخرت کښ - السَّمُوْمِ هغه ګرمه هوا چه دَ بدن په مسامانو کښ ورننوځی او دلته مراد ګرمه هوا دَ جهنم ده -

۲۸ دا علت دے دَ وَوَقٰىنَا دَ پاره يعنی دَ عذاب دَ جهنم نه بچ کيدل په دے سبب سره دی چه مونږ الله تعالیٰ ته به عاجزی کوله او په دُعا کولو کښ مو شرک نه دے کړے الْبَرُّ هغه ذات چه بخشش او انعام دَ هغه ډير فراخه دے -

بِنِعۡمَتِ رَبِّكَ بِكَاهِنٍ وَّلَا مَجۡنُوۡنٍ ﴿۲۹﴾

په نعمت د رب ستا سره ترویتی او نه لیونے۔

اَمۡ يَقُوۡلُوۡنَ شَاعِرٌ نَّتَرَبَّصُ بِهٖ رَيۡبَ الۡمَنُوۡنِ ﴿۳۰﴾

ایا دوی وائی دے شاعر دے انتظار کوؤ مونږ په دهٔ باندے د حادثے د مرګ۔

ف۲۹ دَ دے ایت نه دویم باب دے تر اخر دَ سورت پورے۔ په دے کښ تسلّی او تشجیع ده رسول الله صلّی الله علیه وسلّم ته بیا پنځلس زجرونه دی په انکار دَ رسول او په انکار دَ قران او په شرک کولو باندے۔ او تخویف دنیوی دے په ف۴۲ کښ او بیا تسلّی او امر دے دعوت کوؤنکی ته سره دَ ذکر دَ توحید نه په اخری درے ایاتو کښ۔

په دے ف۲۹ کښ ترغیب دے په بیان کولو دَ قران سره۔ فَذَكِّرۡ۔ فآء راوړل اشاره ده چه هر کله دَ متقیانو دَ بحث نه معلومه شوه چه دَ قران نه فائده اغستونکی خلق شته دے نو که بل طرف ته خلق تا ته کاهن او مجنون وائی خو دَ هغوی دَ وجے بیان دَ قران مه پریږده او په دے ایت کښ اثبات دَ صداقت دَ رسول الله صلی الله علیه وسلّم دے۔ بِنِعۡمَتِ رَبِّكَ قران نازلول په نبی باندے خاص نعمت دے۔

كَاهِنٍ هغه دے چه دعوے دَ علم دَ غیبو کوی او اکثر دروغ وی او مجنون هغه دے چه بے نظمه او بے قائدے خبرے کوی یعنی په کلام دَ نبی کښ دروغ نیشته او دعویٰ دَ علم غیب هم نه کوی او ګډے وډے خبرے هم نه کوی۔

ف۳۰ دا زجر دے منکرینو دَ رسول ته او اَمۡ په کلام دَ عربو کښ استعمالیږی دَ پاره دَ انتقال دَ یو خبرے نه بلے خبرے ته او ورسره زورنه هم وی۔ او دَ خلیل نه روایت دے چه په سورة طور کښ ام دَ استفهام (دَ زورنے) دے عطف نه دے۔

رَيۡبَ الۡمَنُوۡنِ۔ مَنُوۡن زمانے او شپه او ورځ ته ویلے کیږی ځکه چه دَ انسان عمر کمه وی او کمزورے کوی او مرګ ته هم ویلے کیږی۔ او ابن عباس رضی الله عنهما نه نقل دے چه ریب په قران کښ په نورو ځایونو کښ په معنیٰ دَ شک سره دے او په دے ځائے کښ په معنیٰ دَ حوادثو سره دے چه هغه هم دَ شک په شان په ځائے نه ټینګیږی او انسان لره پریشان کوی۔ او دوی دا دَ دے وجے نه ویل چه دَ شاعر نه به دوی ویره کوله هسے نه چه په شعرو نو جو ړ دلو زمونږ بد نامی اوکړی نو دَ هغه مرګ به یئے غوښتلو چه دَ دهٔ نه به په مرګ سره خلاصے مومو۔

قُلْ تَرَبَّصُوْا فَاِنِّيْ مَعَكُمْ مِّنَ الْمُتَرَبِّصِيْنَ ﴿۳۱﴾

ته اوايه انتظار کوئ يقيناً زهٔ تاسو سره دَ انتظار کوونکو نه يم -

اَمْ تَاْمُرُهُمْ اَحْلَامُهُمْ بِهٰذَآ اَمْ هُمْ قَوْمٌ

ايا حکم کوی دوی ته عقلونه دَ دوی په دے بانديے بلکه دوی قوم

طَاغُوْنَ ﴿۳۲﴾ اَمْ يَقُوْلُوْنَ تَقَوَّلَهٗ ۚ بَلْ لَّا

سرکشان دی - ايا دوی وائی دَ کان نه ئے جوړ کړيدے بلکه دوی

يُؤْمِنُوْنَ ﴿۳۳﴾ فَلْيَاْتُوْا بِحَدِيْثٍ مِّثْلِهٖٓ اِنْ كَانُوْا

ايمان نه راوړی - نو دوی دِ راوړی يوه خبره دَ دے پشان که چرے دوی

صٰدِقِيْنَ ﴿۳۴﴾ اَمْ خُلِقُوْا مِنْ غَيْرِ شَيْءٍ اَمْ

رشتين دی - ايا دوی پيدا کړے شويدی بغير دَ څه فاعل نه ايا

۳۱ تَرَبَّصُوْا دا امر دَ تهديد (زورنے) دَ پاره دے مَعَكُمْ په دے کښ اشاره ده چه دَ مرګ په انتظار کښ ټول برابر يو -

۳۲ دا بل زجر دے حاصل دا چه داخبرے دَ رسول الله صلى الله عليه وسلم په باره کښ دَ عقل والو خبرے نه دی بلکن سبب طغيان او سرکشی ده دويم اَمْ په معنیٰ دَ بَلْ سره عاطفه دے - اَحْلَامُ جمع دَ حُلم ده عقل ته ويلے کيږی ځکه عقل دَ انسان روستو دَ احتلام او دَ بلوغ نه او دَ حِلم (صبر) نه پوره معلو ميږی -

۳۳ ۳۴ دا بل زجر دے متعلق دے دَ انکار دَ قران سره بَلْ لَّا يُؤْمِنُوْنَ يعنی تقوّل (افتراء) نيشته ليکن سبب دَ انکار دَ قران کفر عنادی دَ دوی دے - فَلْيَاْتُوْا دا ايت دَ تحدی دے متعلق دے دَ تَقَوَّلَهٗ سره - بِحَدِيْثٍ هر کلام چه په هغے بانديے تلفظ کيدے شی که قديم او که حادث وی نو هغے ته حديث ويلے کيږی او اکثر استعمال ئے منقول کلام کښ کيږی نو دَ دے وجے نه قران ته حديث ويلے کيږی او قران کښ اطلاق دَ حديث په قران بانديے نهٔ کړے شوے دے - او حديث په معنیٰ دَ نوی بانديے په قران کښ نه دے راغلے نو قول دَ معتزلو باطل دے چه هغوی وائی چه لفظ دَ حديث نه معلومه شوه چه قران مخلوق او حادث دے -

هُمُ الْخٰلِقُوْنَ ﴿۳۵﴾ اَمْ خَلَقُوا السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضَ

دوی پیدا کوونکی (دَ ځانو) دی. آیا دوی پیدا کړیدی آسمانونه او زمکه

بَلْ لَّا یُوْقِنُوْنَ ﴿۳۶﴾ اَمْ عِنْدَهُمْ خَزَآئِنُ رَبِّكَ

بلکه دوی یقین نه کوی. آیا دَ دوی سره خزانې دَ رب ستا دی

اَمْ هُمُ الْمُصَیْطِرُوْنَ ﴿۳۷﴾ اَمْ لَهُمْ سُلَّمٌ

یا دوی مقرر کړے شویدی (دَ هغې په تقسیم باندے) آیا دوی لره پاؤړے شته دے

یَّسْتَمِعُوْنَ فِیْهِ ۚ فَلْیَاْتِ مُسْتَمِعُهُمْ بِسُلْطٰنٍ

چه غوږ ږدی په هغې کښ ورختونکی تو را دوړی دعوئ کوونکے دَ اوریدلو دَ دوی دلیل

۳۵ ۳۶ دا زجر دے په شرك دَ دوی باندے او رد دے په زعم دَ مشرکانو باندے چه گمان کوی چه موږ ته الله تعالیٰ دَ توحید او دَ رسالت او دَ قرآن دَ منلو په باره کښ امر او تکلیف نه دے راکړے او نه راکوی حاصل دَ دواړو آیاتونو دا دے چه دا گمان څوهله صحیح کیدے شی چه په دے درے خیرو کښ یوه خبره وی اول دا چه ستاسو پیدائش عبث او بے فائدے وی دویم دا چه تاسو ځان پخپله پیدا کړے وی دریم دا چه تاسو آسمانونه او زمکے وغیره پیدا کړے وی لیکن په دے درے واړو کښ یوه خبره هم نیشته نو ولے انکار کوئے. مِنْ غَیْرِ شَیْءٍ یعنی بغیر دَ دے نه چه دوی ته څه امر و نهی اوکړے شی. اَلْخَالِقُوْنَ اَمْ خَلَقُوا السَّمٰوٰتِ په دے کښ یو فرق دا دے چه "دوی مستقل پیدا کوونکی دی یا په اشتراك دَ الله تعالیٰ سره"، دویم دا چه "ځان ئے پیدا کړے دے او که آسمانونه او زمکه ئے پیدا کړے دی".

۳۷ دا زجر هم دَ مخکښ سره متعلق دے یعنی که خالق نه دی نو آیا دَ الله تعالیٰ دَ خزانو اختیارمند دی " خزانے دَ رزق باران وغیره یا خزانے دَ نبوت تقسیم کولو". اَمْ هُمُ الْمُسَیْطِرُوْنَ دا هم زجر دے یعنی که اختیارمند دَ خزانو نه دی نو آیا په هغې باندے دَ څوکئ کولو او انتظام او تقسیم کولو دَ پاره مقرر دی؟

حاصل دا چه په دے دواړو خبرو کښ یوه خبره هم نیشته نو دوی ولے دَ توحید او رسالت نه انکار کوی.

مُّبِيْنٍ ﴿۳۸﴾ اَمْ لَهُ الْبَنٰتُ وَلَكُمُ الْبَنُوْنَ ﴿۳۹﴾

ښکاره . ایا هغه لره لونړه دی او تاسو لره ځامن دی .

اَمْ تَسْـَٔلُهُمْ اَجْرًا فَهُمْ مِّنْ مَّغْرَمٍ مُّثْقَلُوْنَ ﴿۴۰﴾

ایا ته غواړې د دوی نه عوض نو دوی د وجې د تاوان نه درانه شویدی .

اَمْ عِنْدَهُمُ الْغَيْبُ فَهُمْ يَكْتُبُوْنَ ﴿۴۱﴾ اَمْ

ایا د دوی سره غیب (وحی) شته نو دوی د هغې نه لیکل کوی . ایا

يُرِيْدُوْنَ كَيْدًا ؕ فَالَّذِيْنَ كَفَرُوْا هُمُ

غواړی دوی مکر کول (چلول) نو هغه کسان چه کفریئ کړے دے هم دوی به

الْمَكِيْدُوْنَ ﴿۴۲﴾ اَمْ لَهُمْ اِلٰهٌ غَيْرُ اللّٰهِ ؕ سُبْحٰنَ

په مکر کښ کمزوری کړیشی . ایا دوی لره حقدار د بندګۍ سیوا د الله تعالی نه شته دے پاک دے

سـ۳۸ دا زجر هم متعلق دے د انکار رسالت سره . یعنی ایا دوی په څه ذریعه آسمان ته ختلے شی چه وحی او څه خبر د غیب ځان له راوړی لکه چه دے نبی صلی الله علیه وسلم ته وحی جبرئیل راوړی . مُسْتَمِعُهُمْ یعنی که یو شخص دعوی په دروغه سره او کړی چه زهٔ د آسمان خبرے اورم نو د هغه دا خبره بغیر د دلیل نه منظوره نه ده لکه د کاهنانو خبرے .

سـ۳۹ دا هم زجر دے او رد دے په مشرکین بالملائکه بانات او دا رنګ اشاره ده د دوی بے عقلئ ته .

سـ۴۰ دا زجر تعلق لری د انکار د رسالت سره مَّغْرَمٍ بالفرض که ته د دوی نه څه تاوان غواړے نو دوی برداشت نشی کولے یا د مطلق تاوان برداشت هم نه شی کولے او په دیکښ اشاره ده اخلاص د پیغمبر ته چه بے اجره تبلیغ کوی .

سـ۴۱ دا هم متعلق دے د انکار د رسالت سره او د الْغَيْبُ نه مراد وحی ده او يَكْتُبُوْنَ نه مراد لیکل دی یا د الغیب نه مراد لوح محفوظ دے او يَكْتُبُوْنَ نه مراد حکمونه او فیصلے کول دی .

سـ۴۲ كَيْدًا مکرونه کول د پاره د قتل د نبی یا د هغه نه خلق اړول (ر پاتے په بل مخ)

اللّٰهِ عَمَّا يُشْرِكُونَ ﴿۴۳﴾ وَإِنْ يَرَوْا كِسْفًا مِّنَ

الله تعالیٰ دَ هغې نه چه دوی ورله شریک جوړوی. او که چرے دوی او وینی یو ټکړه دَ

السَّمَآءِ سَاقِطًا يَقُولُوا سَحَابٌ مَّرْكُومٌ ﴿۴۴﴾

اسمان نه راپریوتونکے دوی به اوائی وریځ ده لاندے باندے.

فَذَرْهُمْ حَتّٰى يُلٰقُوا يَوْمَهُمُ الَّذِي فِيهِ

نو پریږده دوی تر دے پورے چه مخامخ به شی دَ هغه ورځ سره چه په هغې کښې به دوی

يُصْعَقُونَ ﴿۴۵﴾ يَوْمَ لَا يُغْنِي عَنْهُمْ كَيْدُهُمْ

بے هوشه کړیشی ، په هغه ورځ چه نه به شی دفع کولے دَ دوی نه مکرونه دَ دوی

او منع کول په مختلفو حیلو سره. فَالَّذِينَ كَفَرُوا دا ئے ذکر کړو دَ پاره دَ تعمیم ټول کافرانو ته. هُمُ الْمَكِيدُونَ یعنی دَ دوی دَ کیدونو دَ وا پسئ بد اثر به په دوی باندے راشی لکه چه فرمائیلے دی وَلَا يَحِيقُ الْمَكْرُ السَّيِّئُ إِلَّا بِأَهْلِهِ.

۴۳ دا زجر دے په شرك دَ دوی باندے یعنی دَ دوی اِله نیشته چه دَ مغلوب کیدلو نه ئے بچ اوساتی یا دَ دوی کیدونو لره کامیاب کړی. تر دے پورے لفظ دَ اَمْ خوارلس کرته ذکر شو دویم اَمْ په معنیٰ دَ بَلْ سره دے لکه چه مخکښ ذکر شول او باقی ټول استفهام دَ زورنے او دَ توبیخ دَ پاره دی.

۴۴ دا زجر دے په عناد کولو سره دَ تخویف دنیوی نه او دا جواب دَ هغه مطالبے دَ دوی دے چه په سورة بنی اسرائیل ۹۲ کښ ذکر شوے ده. كِسْفًا په سکون دَ سّ سره واحد دے او په فتحه دَ سّ سره جمع ده يَقُولُوا قرطبی وئیلے دی چه دا قول دَ دوی دَ وجے دَ عناد نه دے یا دَ وجے دَ تقلید نه دے او دا دواړه ځلے په هغوی کښ موجود دی. مَرْكُومٌ دا وائی په دفع دَ وهم کښ چه دا خو وریځ نه ده وریځ خو نرئے وی نو دوی اُوئیل چه دا مرکوم دے.

۴۵ دا تفریع ده په مخکښ ټولو زجرونو باندے چه بنا دی په عناد دَ دوی فَذَرْهُمْ مراد دَ دے نه زورته او تخویف دَ عذاب دے مقصد دا نه دے چه هیڅ ورته مه وایه نو دا په آیت دَ قتال سره منسوخ نه دے.

حَتّٰى يُلٰقُوا يَوْمَهُمْ مراد دَ دے نه ورځ دَ عذاب دَ دنیا ده په هغه چا باندے چه

شَيْئًا وَّلَا هُمْ يُنْصَرُوْنَ ﴿٤٦﴾ وَاِنَّ لِلَّذِيْنَ

هیڅ ضرر او نه به دَ دوی سره مدد کیدیشی - او یقینًا هغه کسانو لره

ظَلَمُوْا عَذَابًا دُوْنَ ذٰلِكَ وَلٰكِنَّ اَكْثَرَهُمْ

چه ظلم ئے کړے دے عذاب دے مخکښ دَ قیامت نه او لیکن اکثر دَ دوی

لَا يَعْلَمُوْنَ ﴿٤٧﴾ وَاصْبِرْ لِحُكْمِ رَبِّكَ فَاِنَّكَ

نه پوهیږی - او صبر کوه فیصلے دَ رب ستا ته یقینًا ته

بِاَعْيُنِنَا وَسَبِّحْ بِحَمْدِ رَبِّكَ حِيْنَ

زمونږ په سترګو کښ ئے او تسبیح وایه سرهٔ دَ حمد دَ رب ستا نه په هغه وخت

چه په دنیا کښ ئے عذاب راځی او ورځ دَ قیامت دَ عامو منکرینو عذابونو دَپاره دَه.
يُصْعَقُوْنَ دَ هیبت دَ عذاب یا دَ قیامت دَ وجے نه به بے هوشه شی یا دَ صعق نه مراد
مړ کیدل دی په عذاب دَ دنیا سره.
سلـ٤٦ په دے کښ ذکر دَ هیبت دَ ورځے دَ عذاب او دَ قیامت دے يَوْمَ دا بدل دے
دَ يَوْمَهُمْ نه.
سلـ٤٧ دا هم تخویف دے دُوْنَ ذٰلِكَ. دُوْنَ په معنیٰ دَ مخکښ یا په معنیٰ دَ سیوا سره دے
ذٰلِكَ اشاره ده یوم ته چه په مخکښ ایت کښ ذکر دے او دَ دے عذاب نه مراد دَ دنیا
نور عذابونه دی لکه لوږه مرضونه قحطونه دَ ژوند تنګ والے وغیره او دا رنګ
عذاب قبر مراد دے لکه چه قرطبی او خطیب شربینی وئیلے دی.
وَلٰكِنَّ اَكْثَرَهُمْ لَا يَعْلَمُوْنَ یعنی چه عذابونه دَ دنیا ورباندے راشی لیکن دوی
نه پوهیږی چه دا عذاب دے او دَ څه مقصد دَپاره دے لکه چه حدیث کښ
وارد دی چه منافق ناجوړه شی او بیا جوړ شی نو دَ دهٔ مثال دَ اوښ دے نه پوهیږی چه
دَ څه دَپاره ئے دے تړلے وو او دَ څه دَپاره ئے پرانستلو.

تَقُوْمُ ﴿۴۸﴾ وَمِنَ الَّيْلِ فَسَبِّحْهُ وَاِدْبَارَ النُّجُوْمِ ﴿۴۹﴾

چه اودریږې، او دَ شپې نه هم تسبیح وایه او په وخت دَ شاګرځولو دَ ستورو کښې۔

۴۸ ۴۹ دا عطف دے په قدرهم باندے۔ لِحُکْمِ رَبِّکَ فیصله دَعذاب ده چه مخکښې ایت کښې ذکر شوه۔

فَاِنَّکَ بِاَعْیُنِنَا دا صفت دَ الله تعالیٰ په ظاهری معنٰی باندے دے او کیفیت باندے یې الله تعالیٰ پوهیږی خو اشاره ده چه الله تعالیٰ تا لره دینی او ستا حفاظت هم کوی نو ویره مه کوه۔

وَسَبِّحْ بِحَمْدِ رَبِّکَ دا دَپاره دَ دفع کولو دَحزن دے لکه چه دَ سورة حجر په ۹۷ ۹۸ کښې تیر شویدی او په دے کښې دعوىٰ دَتوحید هم ده۔

حِیْنَ تَقُوْمُ دا عام دے هر قیام ته شامل دے که دَخوب نه بیداریدل دی او که دَ یو مجلس نه پاسیدل دی او که موځ ته اودریدل دی او که دعوت او تبلیغ ته اودریدل دی په دے ټولو حالتونو کښې مسنون اذکار نقل کړے شویدی۔

وَمِنَ الَّیْلِ فَسَبِّحْهُ، تسبیح عام دے موځ کول تلاوت دَ قرآن او تسبیح ویل او توحید بیانول ټولو ته شامل دے لفظ دَ مِنْ په بعض (تکړه) باندے دلالت کوی ما شام او ماسخوتن او وخت دَ تهجد ته اشاره ده۔

وَاِدْبَارَ النُّجُوْمِ ادبار مصدر دے یعنی وخت دَ شاګرځولو دَ ستورو او هغه وخت دَصبا ښکاره کیدلو دے چه په دغه وخت کښې ستوری په پټیدلو باندے شروشی او مراد دَ دے نه دوه رکعتونه سنت دَ فجر دی او دا په حدیث دَ ترمذی کښې وارد دی یا مراد ترینه سنت او فرض دَ فجر دی۔

تنبیه لفظ دَ اِدبار مصدر دے او مفرد دے نو یو وخت ترینه مراد دے او ادبار السجود (ق ۴۰) کښې ادبار جمع ده ډیر وختونه ترینه مراد دی لکه په تفسیر دَ سورة ق کښې تیر شویدی۔

(الحمد لله چه ختم شو تفسیر دَ سورة الطور په فضل دَ الله تعالیٰ سره)

| سُوْرَةُ النَّجْمِ ۵۲ مَكِّيَّةٌ ۲۳ | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | اٰيَاتُهَا ۶۲ | ۳ رُكُوْعَاتُهَا |
| --- | --- | --- | --- |

وَالنَّجْمِ اِذَا هَوٰى ① مَا ضَلَّ صَاحِبُكُمْ

او قسم دے په ستورى کله چه راکوزشى (دَ څپل ځائے نه)۔ نه دے بے لارے شوے ستاسو ملګرے

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

## سورة النجم

ربط دَ دے دَ مخکښ سورت سره په دیرو وجوهو سره دے۔ اوله وجه دا ده چه په مخکښ سورت کښ دیر زجرونه وو په منکرینو باندے نو په دے سورت کښ زجر دے دَ هغوى په دلیل باندے چه اتباع دَ ظن او دَ هوٰى ده۔ دویمه وجه دا ده مخکښ سورت کښ وقوع دَ عذاب ذکروه نو په دے کښ سبب دَ عذاب ذکر کوى۔ دریمه وجه دا ده مخکښ سورت کښ زجرونه په انکار دَ رسول باندے نو په دے سورت کښ اثبات دَ صداقت دَ رسول دے۔

دعوىٰ دَ سورت۔ اثبات دَ صداقت دَ رسول دے چه دا رسول په شرکیاتو باندے ردکوى په دلیل دَ وحى سره او مشرکان دلیل نیسى په ګمان او په خواهش سره۔ او رد دے په مشرکین بالملائکه والجن او انس او ستورو باندے او په شرک فى العلم او عبادت او شفاعت شرکیه باندے او دعوى دَ توحید په ۶۲ کښ ذکر ده۔

خلاصه دَ سورت۔ دا سورت تقسیم دے دوه بابونو ته اول باب تر ۲۹ پورے دے په دیکښ شهادت دے په صدق دَ رسول صلى الله علیه وسلم په ذکر دَ ټیه احوالو دَ هغه سره دَ نهه حالاتو دَ جبرئیل علیه السلام۔ بیا زجر دے په مشرکینو باندے په نهه طریقو سره او رد دے په مشرکین بالملائکه او جن او انس باندے او رد دے په دلیلونو دَ مشرکانو باندے۔

تفسیر ۱۔ وَالنَّجْمِ دا قسم دے دَ پاره دَ شهادت ذکرکولو دَ مابعد دَ پاره۔ په دیکښ دیر اقوال دى اول قول دا دے چه النجم ثُرَيَّا (رتلے پیروته) ستورى دى چه هغه اوه ستورى دى په یو ځائے راجمع وى۔ دویم قول مراد ټول ستورى دى۔ په دے دواړو قولونو کښ النَّجْمِ مفرد جنس دے او مراد تری جمع ده۔ دریم قول هغه خاص ستورے چه شیطان په هغے سره اُویشتلے شى۔ (رپاڼے په بل مخ)

وَمَا غَوٰى ﴿۲﴾ وَمَا يَنْطِقُ عَنِ الْهَوٰى ﴿۳﴾

او نه دَ حق نه تیر وتلے دے ۔ او خبرے نه کوی دے دَ خواهش نه ۔

او الف لام په النجم کښ عهدِ ذهنی دی خلورم قول نجم قرآن دے ځکه چه نجم قِسط (حصه) ته وییلے کیږی او قرآن په ډیرو قسطونو سره نازل شوید ے او په ډیرو حصو باندے مشتمل دے ۔ اِذَا هَوٰى په اول او دویم سره مراد دَ دے نه غائب کیدل دی. او په دریم قول سره مراد دَ دے نه ښکته راویشتل دی په شیطانانو پسے او په خلورم قول سره مراد دَ دے نه نازلیدل دَ قرآن دی ۔ او مناسبت دَ قسم دَ مقسم له سره دا دے، هر کله چه مراد ترینه ثریا ستوری شی نو ثریا په ټولو ستورو کښ لیدونکو ته ښه ښکاریږی او دا ما سخوتن ښکاره کیږی کله چه میوے پخے شی. نو دا رنګ آخری نبی په ټولو انبیاؤ کښ ډیر ښکاره دے خصوصًا په معجزه دَ قرآن سره میوے دَ حکمتونو پورهٔ پخے شوے او دَ شکونو شبهاتو بیخ او تلو ۔ او هر کله چه مراد ټول ستوری شی نو مناسبت دا دے چه ټول ستوری غائب شی نو رڼا دَ صبا او بیا نمر ښکاره شی دا رنګ نور رسولان دَ الله تعالٰی غائب شول او آخری رسول دَ صبا او دَ نمر دَ رڼا پشان ښکاره شو ۔ او په دریمه توجیه سره مناسبت دا دے چه ستوری ویشتلے کیږی دَ پاره دَ شړلو دَ شیطانانو دَ دے دَ پاره چه کاهنان په قرآن کښ تلبیس پیدا نه کړی او دَ دے رسول صداقت پورهٔ ښکاره شی او دا نښه (چه شیطانان تړلے کیږی دَ آخری رسول دَ راتللو په زمانه کښ) په سورة جن کښ هم ذکر کړے شوید ه ۔ او په خلورمه توجیه باندے مناسبت ښکاره دے یعنی چه قرآن نازل شو نو دَ دے نبی صلّی الله علیه وسلّم په باره کښ دَ ګمراهئ او سرکشئ هیڅ تصوّر او ګمان پاتے نه شو ۔

۲ دا جوابِ قَسم دے ۔ فرق په مینځ دَ ضلال او غوایت کښ په ډیرو وجوهو سره دے اوله وجه دا ده چه ضلال دا دے چه مقصد ته دَ رسیدلو بالکل لاره موندی او غوایت دا دے چه مقصد ته طریقِ مستقیم نه وی ۔ دویمه وجه دا ده چه ضلال عام دے عقیدے او عملونو دواړو ته شامل دے او غوایت خاص دے په عقیده فاسده پورے ۔ دریمه وجه دا ده چه ضلال دا دے چه دَ لارے نه خطا شی او غوایت دا دے چه دَ مقصد نه محرومه شی ۔ خلورمه وجه دا ده چه ضلال ګمراه کیدل دی په بے علمئ سره او غوایت ګمراهی ده سرهٔ دَ علم نه عنادًا ۔

۳ دا دویم جوابِ قَسم دے یعنی کلام دَ دے رسول دَ هر قِسم دَ خواهشاتو نفسانیو

إِنْ هُوَ إِلَّا وَحْيٌ يُوحَىٰ ﴿٤﴾ عَلَّمَهُ شَدِيدُ

نه دہ دا مګر وحي چه وحي کيدلشي، خود نه کړيده ده ته سخت

الْقُوَىٰ ﴿٥﴾ ذُو مِرَّةٍ فَاسْتَوَىٰ ﴿٦﴾ وَهُوَ

قوتونو والا، خائست والا نو برابر شو، او حال دا چه دے

بِالْأُفُقِ الْأَعْلَىٰ ﴿٧﴾

وؤ په اوچته غاړه بانسي ے۔

نه پاک دے۔ يَنْطِقُ هر هغه خبره چه دَ خُلے نه راوځي، او دا شامل دے قرآن ته په وخت دَ تلاوت کولو کښې او شامل دے احاديثو ته چه دا دواړه دَ اتباع هوی نه نه دي صادر شوي۔

سے۔ دا دريم جواب قَسم دے او هُوَ نه مراد ټول هغه کلام دے چه نبي صلّى الله عليه وسلّم يې دَ خپلے خُلے نه را اوياسي" قرآن او احاديث" بلکه دَ هغه افعالو او احوالو ته هم شامل دے لکه چه په سراج المنير کښې ليکلي دي۔ بعض اهل علمو دَ دے آيت نه دليل ذکر کړے دے چه نبي صلى الله عليه وسلّم لره اجتهاد کول منع وؤ ليکن جواب دا دے چه دَ هغه دَ اجتهاد (چه عمل په ورباندے کيدے شو) به هم په وحي سره تائيد کيدے شو نو هغه هم په وحي کښې داخل وؤ۔

سے سے په دے کښې ذکر دَ صداقت دَ رسول الله صلّى الله عليه وسلّم دے په بله طريقه چه دَ هغے حاصل په غوره تفسير سره دا دے چه دے رسول ته جبرئيل عليه السلام تعليم ورکړيدے او دَ هغه سره ليدل هم شويدي۔

مراد دَ شديد القوى نه جبرئيل عليه السّلام دے په دليل دَ سورة تکوير سے سره او بعض مفسرينو دَ دے نه الله تعالى مراد اخستے دے ليکن هغه قول صحيح نه دے۔

ذُو مِرَّةٍ ۔ مِرّه صحت او قوت دَ بدن ته ويلے کيږي لکه چه په حديث کښې راغلے دي (لا تحلّ الصدقة لغنيّ ولا لذي مِرّةٍ سويّ) او مرّه خائسته صورت ته هم ويلے کيږي۔

وَهُوَ بِالْأُفُقِ الْأَعْلَىٰ دا ضمير هم جبرئيل عليه السلام ته راجع دے او په دے کښې واقعه دَ ابتداء دَ وحي ته اشاره ده چه رسول الله صلى الله عليه وسلّم ته جبرئيل عليه السّلام په مکه کښې ابطح مقام کښې په اصلي شکل کښې (يا تے په بل مخ)

ثُمَّ دَنَا فَتَدَلّٰى ﴿۸﴾ فَكَانَ قَابَ قَوْسَيْنِ

بیا نزدے شو نو ښه نزدے شو نو شو په مقدار د پاتو د دوه لیندو

اَوْ اَدْنٰى ﴿۹﴾ فَاَوْحٰۤى اِلٰى عَبْدِهٖ مَاۤ اَوْحٰى ﴿۱۰﴾

بلکه زیات نزدے۔ نو وحی ئې اوکړه بنده د الله تعالیٰ ته هغه چه وحی ئې اوکړه۔

ښکاره شو چه د هغه شپږ سوه وزرے وے او د آسمان کنارے ئې پټ کړے وے
الاُفُق هغه طرف د آسمان ته وئیلے کیږی چه صبا او نمر تر ینه ښکاره کیږی.
ابن جریر وئیلے دی چه دا ضمیر محمد صلی الله علیه وسلم ته راجع دے او په یکښې
اشاره ده واقعے د معراج سماوی ته چه دواړه د معراج په شپه د زمکے نه ملګری
شول او د آسمان افق ته اورسیدل. بیا ابن کثیر په دے قول باندے رد کړے
دے لیکن د توجیه په لحاظ سره دا قول صحیح دے۔
ـــ دنا ضمیرونه په اول تفسیر جبرئیل علیه السلام ته راجع دی او په دویمه توجیه
رسول الله صلی الله علیه وسلم ته راجع دی او نزدیکت الله تعالیٰ ته مراد دے۔
فَتَدَلّٰى په اصل کښې د بره طرف نه کوز طرف ته اویزان کیدلو ته وئیلے کیږی یعنی
جبرئیل علیه السلام راکوز شو د افق نه او په معنیٰ د ښه نزدیکت سره هم استعمالیږی.
قَابَ قَوْسَيْنِ. قاب په عرف د عرب کښې د قوس (کمان) د مقبض (د نیولو ځائے)
نه تر سره پورے ته وئیلے کیږی. او نیول خو په مینځ کښې وی نو هر طرف ته
یو یو قاب شو نو معلومه شوه چه په هر قوس کښې دوه قابَ دی لکه لسان العرب
کښې هم داسے وئیلے دی نو په دے مقام کښې د دوه قوسونو یو یو طرف مراد دے نو په
اصل کښې قابا قوسین وو او بعضو وئیلے دی چه په عبارت کښې قلب دے یعنی قابا
قوس د یو قوس دوه قابونه. بل قول دا دے چه قاب دلته په معنیٰ د فقط مقدار
سره دے لکه چه ابن اثیر وئیلے دی بیا دا تشبیه عرب د نزدیکت د پاره
استعمالوی په دے وجه چه د دوه دشمنانو صلحه به اوشوه نو هر یو به خپل
قوس راوړلو او د دواړه قوسونو قابونه به ئې د یو بل سره پیوست کړل نو مطلب
به ئې داوو چه آئنده د یاره به مونږ د مخالف دشمن په مقابله کښې د یو طرف ته
حمله کوو او مونږ به یو یو.
ـــ عبدهٖ ضمیر الله تعالیٰ ته راجع دے برابره خبره ده که اوحیٰ ضمیر جبرئیل

مَا كَذَبَ الْفُؤَادُ مَا رَاٰى ⑪ اَفَتُمٰرُوْنَهٗ

انکار نه دے کړے زړه، دَ هغه ته چه لیدلے دے. آیا تاسو جګړه کوئ د ده سره

عَلٰى مَا يَرٰى ⑫ وَلَقَدْ رَاٰهُ نَزْلَةً اُخْرٰى ⑬

په هغه څیز باندے چه ده لیدلے دے. او یقینًا ده لیدلے دۀ هغه لره بل ځل،

نه راجع وی او که الله تعالیٰ راجع وی. په اوله توجیه سره مراد د وحی نه ابتداء د سورة مدثر ده یا نور اقوال هم دی او په دویمه توجیه سره وحی مبهم ده۔

سلا سلا په دیکښ صداقت دَ رسول الله صلی الله علیه وسلم په رؤیت سره ذکرکوی برابره خبره ده چه رؤیت (لیدل) دَ جبریل علیه السلام دی لکه چه دا غوره او ظاهره توجیه ده یا لیدل دَ الله تعالیٰ مراد دی لکه چه روستو تحقیق کیږی. هرکله چه جبریل مراد شی نو مراد دَ رؤیت نه لیدل په سترګو سره دی او مَا كَذَبَ الْفُؤَادُ مطلب دا دے چه زړه هم دَ سترګو سره موافقت کړیدے یعنی لیدل ئې یقینی دی. او اَفَتُمٰرُوْنَهٗ کښ خطاب مشرکانو ته دے چه دَ جبرئیل علیه السّلام په لیدلو کښ دَ دے نبی صلی الله علیه وسلم سره جنګ مه کوئ. او هرکله چه مراد لیدل دَ الله تعالیٰ وی نو دَ عبد الله بن عباس رضی الله عنهما دَ قول مطابق مراد دَ دے نه لیدل دی په زړه سره دا روایت امام مسلم په روایت دَ ابو العالیه سره دَ ابن عباس رضی الله عنهما نه نقل کړیدے په دیکښ ویلے دی راٰه بفؤاده مرتین (په زړه سره ئې دوه کرته لیدلے دے) او په روایت دَ ترمذی کښ دَ ابن عباس رضی الله عنهما نه راٰی محمد ربّه مطلق ذکر کړیدے او ترمذی ویلے دی چه دا حدیث حسن غریب دے او مراد دَ دے مطلق نه مقید (په زړه سره) دے او فرّاء بغوی دَ انس رضی الله عنه او دَ حسن او عکرمه نه دا لفظ نقل کړے دے چه راٰه بعینه چه الله تعالیٰ ئې په سترګو سره لیدلے دے او ابن کثیر دَ هغے باره کښ ویلے دی چه وفیه نظرٌ۔

حاصل دا دے چه لیدل دَ الله تعالیٰ په شپه دَ معراج کښ مسئله اختلافیه ده غوره دا ده چه یقینی ثبوت ئې نیشته۔ ابن کثیر او ډیرو محدثینو غوره کړیده چه لیدل ئې نه دی شوی او خطیب شربینی او بعضو مفسرینو دویم قول غوره کړیدے او قرطبی دَ مَارَاٰی او عَلٰی مَا یَرٰی په تفسیر کښ دا قول هم نقل کړیدے چه مراد دَ دے نه هغه ټول آسمانی حالات او بیت المقدس دے چه رسول الله صلی الله علیه وسلم دَ معراج په شپه کښ لیدلی وُو او په هغے کښ مشرکانو شک او جدال کوؤ.

سلا په دیکښ هم دوه قولونه دی اول دا چه ضمیر راجع دے (پاتے په بل مخ)

عِنۡدَ سِدۡرَةِ الۡمُنۡتَهٰى ﴿۱۴﴾ عِنۡدَهَا جَنَّةُ الۡمَاۡوٰى ﴿۱۵﴾ اِذۡ يَغۡشَى السِّدۡرَةَ مَا يَغۡشٰى ﴿۱۶﴾

دَ سدرة المنتهٰى په خواکښ - چه دَ هغې سره نزدے جنت الماوٰى دے - کوم وخت چه پټ کړو بیرے لره هغه څیزونو چه پټ ئے کړو ،

جبرئیل علیه السلام ته دویم داچه الله تعالیٰ ته راجع دے او نَزۡلَةً په معنٰی دَمَرَّةً سره دے لیکن تعبیر ئے په نَزۡلَةً سره کړیدے (یعنی راکوځیدل) نو مراد داچه نبی صلّی الله علیه وسلّم دَ عرش دَ طرف نه راکوز شو او دَ هغه په هغه شپه کښ ختل راکوځیدل په اسمانونو کښ ډیر کرته وو لکه چه په حدیث معراج کښ دی چه موسٰی علیه السلام (د شپږم اسمان) نه ډیر کرته تلے راغلے دے. یا مراد دَ دے نه راکوځیدل دَ جبریل دی. یا مراد دَ دے نه نزول دَ الله تعالیٰ دے او نزول صفت دَ الله تعالیٰ په صحیح حدیث کښ راغلے دے (چه دَ شپے په اخر کښ الله تعالیٰ نزدے اسمان ته نزول کوی) لیکن دَ کیفیت په لحاظ سره متشابه دے په هغے باندے الله تعالیٰ عالم دے او که هر یو احتمال شی خو په ایت کښ اسمانی معراج ته اشاره ده ځکه دَ سدرة المنتهٰى سره لیدل او دَ هغے حالات کتل په شپه دَ معراج پورے خاص دی په سبب دَ احادیثو دَ معراج سره ، نو څوک چه وائی چه اسمانی معراج دَ قران نه ثابت نه دے نو هغوی جاهلان دی .

۱۴ ۱۵ ۱۶ ظاهر داده چه دا ظرف دَ رائ دے یعنی لیدلے وو ئے (چه رسول الله صلی الله علیه وسلّم وو) دَ سدرة المنتهٰى سره وو او دَ مرئ (یعنی جبریل یا الله تعالیٰ) سره دَ تعلق هم احتمال لری سِدۡرَةِ الۡمُنۡتَهٰى اضافت دے مکان ته یعنی په منتهٰى مکان کښ دغه اونه ده یا اضافت دَ محل دے حال ته یعنی دَ اونے سره منتهٰى ده - او دَ دے وجه تسمیه کښ ډیر اقوال دی یو داچه دَ ملائکو دَ ختلو دَ پاره منتهٰى ده دویم داچه ارواح دَ مؤمنانو هغے ته ور رسیږی دریم دا چه منتهٰى دَ علمونو ده او دَ ماوردی نه نقل کړے شویدی چه تخصیص دَ بیرے ئے دَ دے وجے نه کړیدے چه په هغے کښ درے صفتونه دی ۱ اوګدا سورے ۲ مزیدار خوند ۳ خاسته بوئی ، نو دا رنګ ایمان هم مشتمل دے په قول او عمل او نیت باندے نو بوئی دَ دے په شان دَ قول دَ ایمان دے او سورے دَ دے

مَا زَاغَ الْبَصَرُ وَمَا طَغٰی ﴿۱۷﴾ لَقَدْ رَاٰی مِنْ اٰیٰتِ

نه دے کوږ شوے نظر دۀ او نه دَحد نه تیر شوئے - یقیناً دۀ اولیدلے دَ ښځنیو دَ قدرت

رَبِّهِ الْکُبْرٰی ﴿۱۸﴾ اَفَرَءَیْتُمُ اللّٰتَ

دَ رب خپل نه لوئے ښځنیے - ایا تاسو سوچ کړے دے په حال دَ لات

پشان دَ عمل دَ ایمان دے او خوند دَ دے پشان دَ نیت دَ ایمان دے دَ دے وجے نه دا محل د ارواحو دَ مؤمنانو دے ۔ عِنْدَهَا جَنَّةُ الْمَاْوٰی دا تعریف دَ مکان دَ جنت دے چه جنت اوس په اُوم آسمان کښ دَ سدرة المنتهٰی سره دے اگرچه وسعت دَ جنت خو دَ آسمانونو او زمکے نه لوئے دے لکه چه سورة آل عمران ۱۳۳ او سورة حدید ۲۱ کښ ذکر دی لیکن الله تعالٰی قادر دے چه په لږ ځائے کښ لوئے خیز ځائے کړی لکه چه په یوه سترګه کښ ډیره دُنیا په نظر کولو کښ ځائے کولے شی یعنی په یو وړه سترګه یا ندے بنده ټوله دنیا ته نظر کولے شی ۔ اِذْ یَغْشَی السِّدْرَةَ مَا یَغْشٰی په حدیث صحیح کښ راغلے دی چه هغه پتنګان دَ سرو زرو وو او اکثر اهلِ علم وائی چه مراد دَ دے نه ملائک دی او په حدیث دَ معراج کښ وارد دی چه په شپه دَ معراج کښ څه سدرة المنتهٰی ته بوتلے شوم نو دَ هغے پانړے پشان دَ غوګونو دَ هاتیانو وے او دَ هغے بیرے پشان دَ منګو دَ هجر مقام وے او هرکله چه امر دَ الله تعالٰی هغے لره پټه کړه نو داسے بدله شوه چه هیڅوک دَ مخلوق دَ الله تعالٰی نه دَ هغے دَ ستائینے کولو طاقت نه لری۔ او لفظ دَ مَا یَغْشٰی مبهم دے چه دلالت کوی په عظمت دَ هغه څیزونو باندے۔ ۱۷ په دے کښ صفت دَ نبی صلی الله علیه وسلم دے چه هغه دَ دغه مقام ډیر ادب کړے دے او دَ خپل مقصد نه علاوه بل طرف ته نظر نه دے کړځولے۔ دَ مقصد نه نظر بل طرف ته په ګرځولو دوه طریقے دی یو دا چه دَ هغه مقصد نه ښی طرف یا کس طرف ته اوګوری یا دَ مقصد دَ ځائے نه نظر وړاندے کړی دَ نبی صلی الله علیه وسلم نه ئے دَ دے دواړو نفی کړیده، په مَا زَاغَ سره دَ اول قسم نفی ده او په مَا طَغٰی سره دَ دویم قسم نفی ده۔

۱۸ مِنْ لفظ دلالت کوی چه په ټولو آیاتو ئے احاطه نه ده کړے بلکه بعض ئے لیدلے دی او اٰیٰتِ الْکُبْرٰی لفظ عام دے هغه ټولو (پاتے په بل مخ)

وَالْعُزّٰى ﴿١٩﴾ وَمَنٰوةَ الثَّالِثَةَ الْاُخْرٰى ﴿٢٠﴾

او دَ عزیٰ ، او دَ منات چه دریم ئے دوستو دے .

حالتونو ته شامل دے چه په شپه دَ معراج کښ ئے لیدلے وو ، دَ انبیاء علیهم السّلام سره ملاقات کول ، جنت او جهنم لیدل او په هغے دواړو کښ دَ هغے اهل متشکل کیدل او دَ هغوی لیدل او جبرئیل علیه السلام په شکل دَ رفرف (شین فرش) کښ لیدل او نور ملائک لیدل . او ابن کثیر ویلے دی چه مِنْ اٰيٰتِ رَبِّهٖ لفظ دلیل دے چه الله تعالیٰ ئے نه دے لیدلے . لیکن څوک چه دَ الله تعالیٰ لیدل ثابتوی نو دَ تیر شوی (ما کذب الفواد ما رای) ایت نه ثابتوی او په دے ایت کښ دَ هغے نفی صراحتًا نیشته .

فائده : هرکله چه صداقت دَ نبی صلّی الله علیه وسلّم ذکر کړو چه دَ دهٔ خبرے ټول له وحی ده دَ الله تعالیٰ دَ طرف نه په واسطه دَ جبرئیل سره نو اوس مقصد دَ وحی ذکر کوی چه هغه رد دے په شرک دَ مشرکانو باندے یعنی دَ مشرکانو دلیل په شرک کولو ظن او اتباع دَ هوی دے او دلیل دَ نبی صلّی الله علیه وسلّم وحی ده .

اَفَرَءَيْتُمُ دا زجر دے مشرکانو ته یعنی تاسو سره علم او دلیل شته دے چه دا معبودان ستاسو مالک دَ نفع او دَ ضرر دی او حقدار دَ الوهیت دی ؟

اللّٰتَ دَ دے دریو تخصیص ئے دَ دے وجے نه او کړو چه دوی دَ مشرکانو په نیز ډیر مشهور او لوئے معبودان وو . امام بخاری دَ ابن عباس رضی الله عنهما نه روایت ذکر کړے دے چه لات یو سړے وو چه دَ حاجیانو دَ پاره به ئے ستوان دَ غوړو یا او بو سره لړل او هغوی ته به ئے دَ خوراک دَ پاره ورکول یعنی سخی او بزرګ وو . او قرطبی ویلے دی ، هرکله چه مړ شو نو مشرکانو به دَ هغه دَ قبر عبادت کوو او هغه چه په کومه ګټه باندے ناست وو او ستوان به ئے اوړه کول نو ثقیف قبیلے دَ هغه ګټے عبادت شورو کړو او دَ هغے دَ پاره ئے یو کوټه جوړه کړه او هغه به ئے په غلافونو باندے پټه کړے وه او طوافونه به ئے دَ هغے کول او هرکله چه طائف فتح کړے شو نو رسول الله صلی الله علیه وسلّم مغیره بن شعبه رضی الله عنه او ابو سفیان اولیږلو او هغه ئے اونړولو او کوټه ئے اوسیزله او لات په شد دَ تا سره دے او تخفیف پکښ هم جائز دے .

وَالْعُزّٰى امام نسائیٰ روایت نقل کړے دے چه هرکله مکه فتح کړے شوه نو

رسول الله صلی الله علیه وسلم خالد بن الولید نخله مقام (په مینځ د مکه او طائف کښ) ته اولیږلو چه هغه ځائے کښ عزّی وه نو خالد ورته راغے او په هغه ځائے کښ د کیکر درے اونے وے او یو کوټه وه (چه په هغے کښ به د عزّی عبادت کیدلو) هغه اونے ئے پریکړے او کوټه ئے او نړوله او بیا راغے رسول الله صلی الله علیه وسلم ته ئے خبر ورکړو هغه ورته اوفرمائیل واپس لاړ شه تا هیڅ کار نه دے کړے (یعنی عزّی درنه پاتے شویده) هرکله چه واپس راغے نو منجوران د عزّی ورته راجمع شول او چغے کړے یا عزّی یا عزّی (یعنی خالد بن الولید ئے په هغے سره وُ یرولو) ناسا په یو زنانه بربنډه بېرسرے راښکاره شوه او په سر ئے ځان له خاورے اچولے نو خالد رضی الله عنه هغه په توره باندے قتل کړله بیا واپس راغے نو رسول الله صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل دغه عزّی وه او بیا به ئے عبادت او نکړے شی نو معلومه شوه چه دا پیرے وه او قریش او بنی کنانه دا په دویمه مرتبه کښ معبوده ګڼړله او د هغے د کوټے ته به ئے طوافونه کول او د هغے په نوم باندے ئے نذرونه ورکول. نو په دے لفظ کښ رد دے په مشرکین بالجن باندے.

وَمَنٰوةَ دا هم د یو انسان نوم وُ (چه د دوی په نیز باندے بزرګ وُ) او په قدید مقام کښ اوس او خزرج د هغه په نوم یوه کوټه جوړه کړے وه او په هغے باندے غلافونه اچولے وُ د هغے طوافونه ئے کول او په هغه ځائے کښ ډیر ځاروی د منات په نوم سره ذبح کول.

رسول الله صلی الله علیه وسلم ابوسفیان یا علی بن ابی طالب اولیږلو او هغه ئے او نړوله.

الثَّالِثَةَ دا صفت د دے وجے نه ذکر کړلو چه جاهلیت والو منات په دریمه درجه کښ معبود ګڼړلو.

الْأُخْرٰى سوال:- عادت د عربو دا دے چه اخری د دویم په صفت کښ ذکر کوی او دلته خو د دریم په صفت کښ ذکر کړے شوے دے؟

جواب:- اخری په معنیٰ د متاخره سره دے یعنی دے د مخکښو دواړو نه په مرتبه کښ روستو دے. اُخرٰی د عدد مراد نه دے، نو رجوا بونه هم شته لیکن هغه غوره نه دی په ذکر د لات او منات سره رد دے په مشرکین بالانس باندے.

أَلَكُمُ الذَّكَرُ وَلَهُ الْأُنثَىٰ ﴿۲۱﴾ تِلْكَ إِذًا قِسْمَةٌ

ایا تاسو له دے نارینه بچی وی او هغه لره دے لور وی - دا خو تقسیم دے

ضِيزَىٰ ﴿۲۲﴾ إِنْ هِيَ إِلَّا أَسْمَاءٌ سَمَّيْتُمُوهَا

نقصانی - نه دی دا مگر نوم دی چه کیخودلے دی

أَنتُمْ وَآبَاؤُكُم مَّا أَنزَلَ اللَّهُ بِهَا مِن

تاسو او ستاسو پلارانو نه دے نازل کړے الله تعالیٰ په دے باندے هیڅ

سُلْطَانٍ ۚ إِن يَتَّبِعُونَ إِلَّا الظَّنَّ وَمَا تَهْوَى

دلیل تابعداری نه کوی دوی مگر دَ گمان او دَ هغه څیز چه غواړی

الْأَنفُسُ ۖ وَلَقَدْ جَاءَهُم مِّن رَّبِّهِمُ الْهُدَىٰ ﴿۲۳﴾

نفسونه او یقیناً راغلے دے دوی ته دَ طرف دَ رب دَ دوی نه هدایت -

۲۱ تا ۲۲ دارد دے په مشرکین باندے چه دوی الله تعالیٰ ته نسبت کوؤ چه ملائک دَ هغه لونړه دی او دَ هغوی عبادت ئے هم کوؤ او ځان دَ پاره یے لور بده گنړله - او بعض مفسرینو لیکلی دی چه لات عزّیٰ منات هم مؤنث نومونه دی او دوی به الله تعالیٰ ته نسبت کوؤ چه دا دَ الله تعالیٰ لونړه دی -

قِسْمَةٌ ضِيزَىٰ یعنی دا سے تقسیم که چرے دَ بندګانو په مینځ کښ او کړے شی نو هغوی به ورته ظلم او دَ نقصان تقسیم اوائی نو څه رنګ دا سے تقسیم دَ رب العزت جل شانهٔ سره کوئے ځکه چه تاسو پریکښ دَ ډیر انقص او ادنیٰ (چه ستا سو په نیز دی) څیز نسبت لوئے او اعلی او اکبر ذات ته کوئے -

۲۳ روستو دَ زجر نه ردّ شوید دے په دلیلونو دَ مشرکانو باندے - اسماء مراد دَ دے نه نومونه دَ الوهیت دی اصلی نومونه مراد نه دی هغه خو مور او پلار ایخودلے وی - نومونه دَ الوهیت دا سے وی چه دا فلان بزرګ مشکل کشا دے او فلان غوث اعظم دے او فلانے دَ فلانی مرض ذمه وار دے او فلانے دَ فلانی حاجت پوره کولو دَ پاره دے لکه چه مشرکانو دَ خپلو معبودانو باطلو دَ پاره دا سے نومونه (صفتی) کیخودلے وی - وَآبَاؤُكُمْ کښ اشاره ده چه دوی په دے کښ دَ مشرانو تقلید کوی -

أَمْ لِلْإِنسَانِ مَا تَمَنَّىٰ ﴿۲۴﴾ فَلِلَّهِ الْآخِرَةُ

ایا شته دے دپاره د انسان هغه چه ارمان کوی - نو خاص الله تعالی لره دے آخرت

وَالْأُولَىٰ ﴿۲۵﴾ وَكَم مِّن مَّلَكٍ فِي السَّمَاوَاتِ

او دنیا - او ډیر ملائک شته په اسمانونو کښ

مَا أَنزَلَ اللَّهُ بِهَا مِن سُلْطَانٍ اشاره ده چه د عقیدے د اثبات دپاره منزل دلیل ضروری دے. إِن يَتَّبِعُونَ إِلَّا الظَّنَّ مراد د دے نه حسن ظن دے په خپلو مشرانو باندے لکه چه ابن کثیر ویلے دی یا د ظن نه مراد ظنی دلیلونه دی چه په هغے سره عقیدے نه ثابتیږی. وَمَا تَهْوَى الْأَنفُسُ رومبے په باطلو عقیدو کښ استعمالیږی او دا په باطلو عملونو کښ استعمالیږی یعنی شرکی عملونه د دوی د نفسونو په خواهشاتو باندے بنا دی او دا رنګ ظن کله د دلیل نه حاصل شویوی چه په هغے باندے بعض مسائلو کښ عمل کیدے شی نو مَا تَهْوَى الْأَنفُسُ د دے دپاره ذکر کړو چه دا ظن صرف په خواهشاتو د نفسونو د دوی باندے بنا دے. وَلَقَدْ جَاءَهُم اشاره ده چه د دوی عذر الله تعالی زائله کړے دے چه قرآن او سنت د رسول ﷺ رالیږلی دی۔

۲۴ یعنی هر کله چه معلومه شوه چه د دوی دپاره هیڅ دلیل شرعی نیشته نو اوس په طریقه د زجر سره فرمائی چه ایا بے دلیله خبرو پسے تلل د انسان دپاره جائز دی (استفهام انکاری دے) یعنی نه دی جائز! او بعض د تمنا د انسان نه دا ده چه د غیر الله عبادت کوی او وائی چه دا د خیر کار دے او نور بدعات او رسمونه کوی او وائی چه دا ثواب دے. دا رنګ په دے کښ عجز د انسان ته اشاره ده هغه دا چه انسان ډیر ارمانونه کوی د مال و جاه وغیره لیکن هغه نه حاصلیږی۔ (مَا كُلُّ مَا يَتَمَنَّى الْمَرْءُ يُدْرِكُهُ)۔

۲۵ دا رد دے په ټولو مشرکانو باندے یعنی متصرف د دنیا او آخرت صرف الله تعالی دے. لات منات عزی وغیره لره تصرف او اختیار نیشته او دا رنګ د انسان د تمناګانو پوره کولو اختیار او تصرف خاص د الله تعالی سره دے د خپل مشیت او ارادے موافق چا لره چه اوغواړی نو تمنا پوره کړی او چا لره چه اونه غواړی نو تمنا د هغه نه پوره کوی۔

لَا تُغْنِىْ شَفَاعَتُهُمْ شَيْـًٔا اِلَّا مِنْۢ بَعْدِ

چه فائده نه شي ورکولے سفارش دَدوی هیڅ فائده مګر روستو دَ دے نه

اَنْ يَّاْذَنَ اللّٰهُ لِمَنْ يَّشَآءُ وَيَرْضٰى ﴿۲۶﴾

چه اجازت په اوکړی الله تعالیٰ هغه چاته چه اوغواړی الله تعالیٰ او رضا ئے شی ۔

اِنَّ الَّذِيْنَ لَا يُؤْمِنُوْنَ بِالْاٰخِرَةِ لَيُسَمُّوْنَ

یقیناً هغه کسان چه ایمان په آخرت باندے نه لری ضرور نوموونه اخلی

الْمَلٰٓئِكَةَ تَسْمِيَةَ الْاُنْثٰى ﴿۲۷﴾ وَمَا لَهُمْ بِهٖ

دَ ملائکو په نومونو دَ زنانو سره ۔ او نیشته دوی لره پدے باندے

مِنْ عِلْمٍ ؕ اِنْ يَّتَّبِعُوْنَ اِلَّا الظَّنَّ ۚ وَاِنَّ الظَّنَّ

هیڅ دلیل تابعداری نه کوی دوی مګر دَ ګمان او یقیناً ګمان چه دے

ف۲۶ دارد دے په مشرکین بالملائکه باندے یعنی عجز دَ ملائکو ذکر کوی چه مقربین ملائک سفارش بے دَ اجازت نه نشی کولے نو لات منات عزّٰی وغیره به ستاسو څه حاجت پوره کړے شی ۔ فِي السَّمٰوٰتِ کښ اشاره ده مقرّب ملائکو ته او دا رنګ اشاره ده چه دَ ټولو ملائکو اصل او سیدل په اسمانونو کښ دی زمکے ته په امر دَ الله تعالیٰ دَ بعض کارونو دَ پاره راکوزیږی ۔ لِمَنْ يَّشَآءُ وَيَرْضٰى مشیت اراده ده او رضا خوښه ده په دواړو کښ فرق دے نو اشاره ده چه سفارش دَ ملائکو دَ پاره یو شرط اراده دَ الله تعالیٰ ده او دویم شرط رضا ده دَ مشفوع لهٗ نه یعنی چه ایمان او توحید والا وی ۔

ف۲۷ دا بل رد دے په مشرکین بالملائکه باندے چه ملائک مؤنث ګڼړی او مؤنث نومونه ورته وائی او بنات الله ورته وائی دَ دے نه علاوه په فارسئ ژبه کښ فرشته او پښتو ژبه کښ ملائکه (ریوته) ویل منع دی هاں په عربئ ژبه کښ صیغه دَ ملائکة جمع ده په هغے سره تانیث نه لازمیږی ۔ او دا رنګ په سورة صافات ف۱۵ او سورة زخرف ف۱۹ کښ تیر شوی دی ۔

لَا يُغْنِىْ مِنَ الْحَقِّ شَيْئًا ﴿۲۸﴾ فَأَعْرِضْ عَنْ

فائده نه ورکوی دَ حق (دَ ثابتولو) په باره کښ هیڅ فائده. نو مخ اوګرځوه دَ

مَّنْ تَوَلّٰى عَنْ ذِكْرِنَا وَلَمْ يُرِدْ إِلَّا الْحَيٰوةَ

هغه چا نه چه اوړی دَ ذکر زموږ نه او نه غواړی مګر ژوند

الدُّنْيَا ﴿۲۹﴾ ذٰلِكَ مَبْلَغُهُمْ مِّنَ الْعِلْمِ إِنَّ

دنیوی - دا آخری مقصد دے دَ علم دَ دوی یقینًا

رَبَّكَ هُوَ أَعْلَمُ بِمَنْ ضَلَّ عَنْ سَبِيلِهٖ

تا رب ښهٔ پوهه دے په هغه چا باندے چه اوړی دَ لارے دَ هغهٔ نه

وَهُوَ أَعْلَمُ بِمَنِ اهْتَدٰى ﴿۳۰﴾ وَلِلّٰهِ مَا فِى

او هغه ښهٔ پوهه دے په هغه چا چه هدایت موی ۔ او خاص الله تعالیٰ لره اختیار دَ هغه څیزونو دے

س۲۸ دا بل زجر دے په مشرکین باملائکه باندے چه دَ دوی دغه عقیدے دَ شفاعت دَ ملائکو او دَ بنات الله کیدلو او دَ مؤنث والی دَ ملائکو بے دلیله عقیدے دی صرف ظن اوګمان دے - په س۲۳ کښ هوٰی دَ نفس ئې هم ذکر کړے وه او دلته ئې ذکر نه کړه ځکه چه هلته دَ لات منات او عزّٰی په باره کښ دَ مشرکانو په عقیدو او مشرکانه عملونو دواړو باندے تردید ووٌ او دلته خو دَ ملائکو په باره کښ دَ دوی په مشرکانه عقیده باندے رد ګڼاو په دے باره کښ دَ دوی عملونه نه ووُ - إِنَّ الظَّنَّ لَا يُغْنِىْ مِنَ الْحَقِّ شَيْئًا دا رنګ سورة یونس س۳۶ کښ تیر شویدی - په عقیده او اصولو کښ خو دلیل ظنی هر قسم هیڅ فائده نه ورکوی او په اعمالو او فروعو کښ هم هغه وخت فائده ورکوی چه دَ اصولو نه مستنبط وی -

او هر کله چه دلیل ظنی دَ باره په اصولو کښ سند صحیح نه وی نو په اعمالو کښ هم فائده نه ورکوی-

س۲۹ تا ۳۰ دَ دے ایت نه تر آخر دَ سورت پورے دویم باب دے په دے کښ امر دے په اعراض کولو سره او درے اسباب دَ اعراض کولو او درے صفات ئې دَ اعراض کوونکو ذکر کړے دی - بیا زجر دے (پائے په بل مخ)

السَّمٰوٰتِ وَمَا فِي الْاَرْضِ لِيَجْزِيَ الَّذِيْنَ

چه په اسمانونو کښې دي او هغه چه په زمکه کښې دي د دے د پاره چه بدله به ورکوی الله تعالیٰ هغه چاته

اَسَاۗءُوْا بِمَا عَمِلُوْا وَيَجْزِيَ الَّذِيْنَ

چه بدی ئې کړے ده په سبب د عملونو د دوی او بدله به ورکوی هغه کسانو ته

اَحْسَنُوْا بِالْحُسْنٰى ﴿۳۱﴾ الَّذِيْنَ يَجْتَنِبُوْنَ

چه خائسته کارونه ئې کړے دی خائسته بدله - دا هغه کسان دی چه ډډه کوی

په پریخودونکی د دین بانده اودلیل نقلی د صحف ابراهیم او موسیٰ ته ذکر کړے دے بیا لس صفتونه د الله تعالیٰ ذکر کوی په رد د شرک کښې او تخویف دنیوی په ذکر د خلورو قوامو مکذبینو سره بیا صداقت د رسول او د قیامت دے او زجر دے په انکار د قران بانده او آخر کښې تفریع د توحید ده په قول سورت بانده -

په دے (س۲۹) کښې تفریع ده په مخکښې بیان بانده چه هر کله دلیل د حق وحی ده او دلیل د مشرکانو ظن او د خواهش تابعداری ده نو لازم ده په حق والو بانده چه د هغوی نه مخ واړوی او مراد د اعراض نه د هغوی د دین او مسلک نه ځان ساتل دی. او په دے آیاتونو کښې د باطل پرستو درے قبائح ئې ذکر کړیدی او دا اسباب د اعراض دی. ذِکْرِنَا مراد د دے نه توحید او قران دے ۳۰ ذٰلِكَ مَبْلَغُهُمْ مِّنَ الْعِلْمِ یعنی دوی صرف په دنیا او د دنیا په طلب بانده پوهیږی لکه په سورة روم س۷ کښې تیر شوی دی یا دا چه د دنیا علمونه حاصلوی او په دین بانده نه پوهیږی یا دا چه د دین علم سبب د دُنیا تحصول د پاره اوګرځوی اِنَّ رَبَّكَ اه علت دے د امر د اعراض د پاره یعنی الله تعالیٰ د دواړو حالات جدا جدا پیژنی د دے وجے نه د اعراض او د جدا ئی امر ئې هدایت والو ته کړے دے.

۳۱ س۳۲ دا عطف دے په معنیٰ د اِنَّ رَبَّكَ هُوَ اَعْلَمُ اه یعنی د هر چا په حال بانده عالم دے نو دا رنګ هر څه د هغه په تصرف او اختیار کښې دی. لِيَجْزِيَ د مخکښې دواړو جملو سره تعلق لری او لام د عاقبت دے یعنی د الله تعالیٰ د دغه دواړه ذکر شوے صفتونو عاقبت او انجام دا دے چه په عدل او انصاف سره هر فریق له د هغه مناسبه جزا ورکوی او په دے آیت کښې ذکر د فریقینو دے. الَّذِيْنَ اَسَاۗءُوْا بِمَا عَمِلُوْا د دوی درے په تیر شوی آیت کښې ذکر شویدی. الَّذِيْنَ اَحْسَنُوْا دا ذکر د دویم

كَبٰٓئِرَ الْاِثْمِ وَالْفَوَاحِشَ اِلَّا اللَّمَمَ ؕ اِنَّ

دَ غټو | ګناهونو نه | او دَ بنګاره بدکارو نه سیوا دَ دے نه چه په زړه کښ یُے تیرشی یقینًا

رَبَّكَ وَاسِعُ الْمَغْفِرَةِ ؕ هُوَ اَعْلَمُ بِكُمْ

ستا رب | فراخ | بخشش والا دے | هغه ښهٔ پوهه دے | په تاسو بان دے

فریق دے او احسان نه مراد سورت کښ اتباع دَ وحی ده په مقابله دَ ظن او دهوٰی کښ. اَلَّذِیْنَ یَجْتَنِبُوْنَ دا تفسیر دَ الذِیْنَ احسنوا دے اول صفت ثبوتیه وُو او دا صفت سلبیه دے. كَبٰٓئِرَ الْاِثْمِ وَالْفَوَاحِشَ دا دواړه ګناهونه کبیره دی لیکن فرق یُے په صفت کښ دا دے چه کبائر نه مراد هغه ګناهونه دی چه قران او سنت دَ هغے نه منع کړے دی او دَ هغے سزا دنیوی یا اخروی یُے ذکر کړے وی اګرچه عقل یا طبیعت دَ هغے نه نفرت نه کوی لکه اقسام دَ شرک او لوئے بدعات شول او اَلْفَوَاحِشَ نه مراد هغه دی چه دَ هغے نه تول عقلمند او سلیم طبیعت والا نفرت کوی او په شرع کښ دَ هغے نه منع کړے شوی وی نو عقل والا یُے هم بد ګڼړی لکه زنا، دروغ، بهتان، حقوق دَ بندګانو ضائع کول ظلم په بندګانو باندے وغیره. اِلَّا اللَّمَمَ دَ دے په تفسیر کښ درے اقوال دی اول دا دے چه دا ټولو ګناهونو نه شامل دے که صغیره وی او که کبیره وی بغیر دَ شرک او کفر نه په دے شرط چه یو کرت ارتکاب اوکړی او بیا توبه اوکړی دوباره یُے نه کوی. بنا په دے قول باندے اِلَّا استثناء متصله ده او مراد دَ دے نه غیرِ انبیاء دی ځکه چه انبیاء علیهم السلام معصوم دی دَ هر قسم ګناه کولو نه. دویم قول دا دے چه اللمم نه مراد صغیره ګناهونه دی یعنی چه په قران او حدیث کښ په هغے باندے حد او عذاب نه وی ذکر کړے او په حسنا تو سره معاف کیږی بنا په دے باندے استثناء منقطع ده ځکه چه دا دَ کبائرو دَ جنس نه نه دی یا اِلَّا په معنیٰ دَ غیر سره دے او دَ دے نه هم انبیاء علیهم السلام خارج دی ځکه چه غوره قول دا دے چه هغوی دَ صغیره ګناهونو نه هم مطلقًا پاک دی. دریم قول دا دے چه مراد دَ دے نه خطراتِ قلبیه دی یعنی بے اختیاره وسوسے چه په زړهٔ کښ تیریږی لیکن عمل پرے نه کوی بنا په دے باندے هم استثناء منقطع ده او په ایت کښ انبیاء علیهم السلام هم داخل دی په قرینه دَ حدیث سره چه په هغے کښ دا شعر نقل کړے شوے دے

( پاتے په بل مخ )

إِذْ أَنشَأَكُم مِّنَ الْأَرْضِ وَإِذْ أَنتُمْ أَجِنَّةٌ

کله چه تاسو یې پیدا کړی یئ د زمکې نه او کله چه تاسو پټ وئ

فِي بُطُونِ أُمَّهَاتِكُمْ فَلَا تُزَكُّوا أَنفُسَكُمْ

په ګیډو د ماندو ستاسو کښې نو ستائنه مه کوئ د ځانونو خپلو

هُوَ أَعْلَمُ بِمَنِ اتَّقَىٰ ﴿٣٢﴾ أَفَرَأَيْتَ الَّذِي

هغه ښه پوهه دے په هغه چاچه تقویٰ کوی - ایا ته خبر یې د هغه چا په حال باندې

تَوَلَّىٰ ﴿٣٣﴾ وَأَعْطَىٰ قَلِيلًا وَأَكْدَىٰ ﴿٣٤﴾

چه مخ یې اړولے دے، او ادا کړے دے حق لږ او بند شوے دے۔

إِنْ تَغْفِرِ اللّٰهُمَّ تَغْفِرْ جَمًّا ۞ وَ اَیُّ عَبْدٍ لَّكَ لَا اَلَمَّا

إِنَّ رَبَّكَ وَاسِعُ الْمَغْفِرَةِ دا تسلی ده اصحابو لره ته یا ترغیب دے ګنهګارو ته په توبه او استغفار کولو سره۔ هُوَ اَعْلَمُ بِكُمْ روستو د ترغیب نه ترهیب دے چه خپل صفتونه مکوئ بلکه د الله تعالیٰ نه بخښنه غواړئ او دا تمهید دے د فلا تزکوا دپاره حاصل دا دے چه الله تعالیٰ هر انسان لره چه د خاورې نه جوړ کړے دے نو الله تعالیٰ ته معلومه ده چه د سختې خاورې نه دے او که د نرمې نه او د طيبې خاورې نه دے او که د خبیثې نه یعنی چه دے به نیک عمل والا وی او که بد عمل والا او نیک بخت به وی او که بد بخت به وی او کله چه د مور په خیټه کښې دا انسان د ابتدا د نطفې نه تر پیدائش پورې موجود وو او په کتاب د ملائکو کښې د ده عمر، اجل، روزی، عمل او نیک بختی او بد بختی لیکلې ده په هغې باندې صرف الله تعالیٰ عالم دے نو هر کله چه انسان د خپل حال د عاقبت نه خبر نه دے نو فَلَا تُزَكُّوا أَنفُسَكُمْ د خپلو ځانونو صفتونه مکوئ چه زهٔ لوئے مرتبې والا یم او زهٔ بخلے شوے یم او زهٔ جنتی یم دا سې ستائینې کول حرام دی۔

۳۳ ـ ۳۴ ربط دا دے لکه چه خپله ستائینه کول حرام دی نو دا رنګ امید ساتل چه لګ صالح عمل کول او بیا دین پریخودل کافی دی د نجات دپاره نو دا عقیده ساتل هم منع ده هیڅ فائده نه ورکوی او په دے ایاتونو کښې زجر دے په یو خاص صفت باندې که په هر چا کښې وی هغه دا دے که یو سجده الله تعالیٰ ته او کړی او نور

اَمۡ لَمۡ یُنَبَّاۡ بِمَا فِیۡ صُحُفِ مُوۡسٰی ﴿۳۶﴾ وَ اِبۡرٰهِیۡمَ

اَعِنۡدَهٗ عِلۡمُ الۡغَیۡبِ فَهُوَ یَرٰی ﴿۳۵﴾

ایا دَ دهٔ سره علم دے دَ پټو خبرو نو دے وینی ایا نه دے

خبر کړے شوے په هغه مضمون چه په صحیفو دَ موسٰی علیه السلام کښ دے او دَ ابراهیم علیه السلام کښ

توحید او رسالت نه منی او دا دَ نجات دَ پاره پوره گنړی لکه چه مشرکین مکه دَ دے سورت دَ تلاوت په وخت کښ د رسول الله صلّی الله علیه وسلم سره یو ځائے سجده کړے وه او حال دا چه توحید او رسالت ئے نه منلو یا یو شخص صرف موځ کوی او نور دین نه منی او دا دَ نجات دَ پاره کافی گنړی یا یو عالم دعوت دَ حق څه زمانه اوکړی او بیا ئے پریګدی او یا دعوت دَ یو مسئلے کوی او نورے مسئلے دَ حق نه بیانوی او دا پوره گنړی او شیطان انسی یا جنی ورله دهوکه ورکړے وی چه نور دین ته حاجت نیشته ازار گناه زما په غاړه دے یا ورته اوائی چه ستا پلار نیکه دیر عمل کړے دے هغه ستا دَ پاره پوره دے نو په دے ایا تو کښ دا سے انسانانو ته زورنه ورکوی او دغه دواړه شبهات هم دفع کوی . تَوَلّٰی دَ پوره دین نه مخ گرځوی . وَ اَعۡطٰی قَلِیۡلًا دَ ابن عباس رضی الله عنهما نه روایت دے چه لګ اطاعت اوکړی او بیا بند شی وَ اَکۡدٰی دا اغستلے شویدے دَ کدیة نه په طریقه دَ مثال سره یعنی چه څوک کوهی کنی او مځکه ئے کاګره راشی نو کنستل پریګدی او عاجز شی نو دا رنګ دغه انسان لګ کار دَ دین اوکړو او نور ورته سخت مشکل ښکاره شو نو پریښودلو.

۳۵ دا استفهام انکاری دے فَهُوَ یَرٰی رویة په معنیٰ دَ علم سره دے یعنی دهٔ ته دَ غیب او دَ وحی نه معلومه شویده چه لږ دین کښ نجات دے ټول دین ته حاجت نیشته خو دا سے نه دهٔ.

۳۶ ، ۳۷ صحف موسٰی نه مراد تورات دے ځکه چه هغه مشتمل وؤ په مختلفو حصو باندے لکه چه قرآن ته هم صحف مکرّمه ویلے شویدے یا مراد دَ دے نه نور واړه کتابونه وؤ چه موسٰی علیه السّلام ته دَ تورات نه مخکښ ورکړے شوی وؤ او دَ هغے تعداد په صحیح قول سره ثابت نه دے او دا رنګ صحیفے دَ ابراهیم علیه السّلام دَ هغے هم پوره شمار معلوم نه دے په روایت صحیحه سره . اَلَّذِیۡ وَفّٰی صفت دے دَ ابراهیم علیه السّلام لکه چه سورة بقره ۱۲۴ کښ راپاتے په بل مخ )

الَّذِىْ وَفّٰىٓ ﴿۳۷﴾ اَلَّا تَزِرُ وَازِرَةٌ وِّزْرَ اُخْرٰى ﴿۳۸﴾

هغه چه پوره يې ادا کړے دے حق، چه نشي اوچتو لے يو پيټي والا پيټے دَ بل چا ۔

وَاَنْ لَّيْسَ لِلْاِنْسَانِ اِلَّا مَا سَعٰى ﴿۳۹﴾

او چه نيشته انسان دَپاره مګر هغه چه دهٔ کوشش کړے وی ۔

ذکر شويدی ياصفت دے دَ هريو دَ موسٰی او ابراهيم عليه السلام نه۔ او دواړه قسم صحيفے دَدے وجے ذکر کړے چه مشرکينو به دَ موسٰی عليه السلام دَ کتاب تصديق کوؤ دَ وجے دَ دوستانے او دَ اعتماد نه په يهوديانو باندے او دَ ابراهيم عليه السلام دَ تابعدارئ خو دعوه دار وؤ۔ نو په دے دواړو کښ په دوی باندے الزام حجت دے۔

۳۸ دَ دے ايت نه تر ۵۵ پورے مضمون دَدے صحيفو دے او بل قول دا دے چه تر ۴۲ پورے دے او په دے جمله کښ ترديد دے دَ اولے وسوسے چه هغه خوک چه دين يې نيمګړے پرېخودلو هغه ته شيطان انسی او جنّی وسوسه ورکړيدهٔ چه دَ باقی دين پرېخودلو کښ څه ګناه وی نو زهٔ دَ هغے ذمه واريم او داسے تير شويدی په سورة انعام ۱۶۴ او سورة اسراء ۱۵ او سورة فاطر ۱۸ او سورة زمر کښ.

۳۹ په دے کښ جواب دے دَ دويمے وسوسے هغه دا چه عمل دَ مشرانو پوره دے نو په هغے سره کشران به کيدے شی نو دَ کشرانو عمل کولو ته څه ضرورت نيشته نو په دے جمله کښ دَدے ترديد دے او ترغيب دے چه انسان د دَ ځان دَ فائدے دَپاره دَ عمل کولو کوشش اوکړی۔

فائده ۱: په دے ايت سره معتزلو استدلال کړے دے چه هيڅ بنده دَ خپل عمل ثواب بل چا لره نشي ښخلے او نه هغه بل ته په دے سره څه فائده رسيږی. ليکن دا قول يې باطل دے او خطيب شربينی دَ ابن تيميه رحمة الله عليه نه يو ويشت وجوه نقل کړے دی چه انتفاع په عمل دَ غير سره ثابت ده يو دَ هغے نه حديث دے چه نبی صلی الله عليه وسلم دَ خپل امت دَطرف نه اضحيه (قربانی) کړے وه دويم دَ هغے نه حديث دَ سعد دے چه دَ مور دَ طرف نه يې صدقه کړے وه په امر دَ نبی صلی الله عليه وسلم سره دريم انتفاع دَ اولاد په عمل دَ پلار سره ده لکه چه سورة طور کښ تير شويدی او داسے په واقعه دَ خضر عليه السلام په باره دَ يتيمانو کښ په سورة کهف کښ تير شويدی). نو دَدے وجوهو په بنا باندے

په دے ایت کښې دَ اهل سنت والجماعت یو څو توجیهات دی. اول دا چه دَ سعی نه مراد ایمان دے او دَ عمل دَ غیر نه فائده هم مؤمن ته رسیږی دَ ایمان دَ وجے نه نو دا سے شوه لکه چه دا عملونه دهٔ پخپله کړی وی. دویمه وجه دا چه دا ایت خاص دے په یهودو او نصاریٰ پورے. دریمه دا چه لام په معنیٰ دَ ملکیت او اختیار سره دے یعنی هر انسان لره په خپل عمل کښې ملکیت او اختیار دے که پخپله تربیه فائده اخلی او که بل چا ته یئے ثواب بخی. څلورمه دا چه دلته دَ انسان نه مراد کافر دے. پنځمه دا چه حکم دَ دے ایت په اعتبار دَ عدل دَ الله تعالیٰ سره دے او دَ بل چا دَ عمل فائده یا زیات دَ عمل نه ثوابونه په فضل دَ الله تعالیٰ سره دی. شپږمه دا چه سعی په معنیٰ دَ نوی سره دے یعنی دارومدار په نیت سره دے. اُومه توجیه دا ده چه ایت خاص دے په باره دَ گناهونو کښې دا توجیهات تفسیر روح المعانی او قرطبی او سراج المنیر وغیره کښې ذکر کړے دی.

فائده ع۲:- دَ امام شافعی او امام مالک رحمهما الله مسلک دا دے چه عبادتِ مالیه بل چا ته فائده ورکولے شی لیکن دَ عبادت بدنیه (مونځ، روژه، تلاوت) ثواب بل چا ته نشی بخلے کیدے ځکه چه دَ هغوی په نیز دَ عبادت مالیه په باره کښې صحیح احادیث شته لیکن دَ عباداتِ بدنیه په باره کښې صحیح احادیث نه دی ثابت. او دَ امام ابوحنیفه رحمة الله په نیز دَ عباداتِ بدنیه ثواب هم غیر ته بخلے کیدے شی یو دلیل عمومات دی چه انتفاع په عمل دَ غیر سره ثابت ده لکه چه مخکښې دَ تفسیر سراج المنیر حواله هم ورکړے ده دویم حدیث دَ خثعمیه دے په باره دَ حج عن الغیر کښې چه حج عبادتِ بدنیه او مالیه دواړو ته مرکب دے دریم قیاس کول دی په عبادتِ مالیه باندے څلورم قرطبی روایت کړے دے چه عائشه رضی الله عنها اعتکاف کړے وو دَ طرف دَ رور نه او دَ دے سند یئے نه دے ذکر کړے پنځم حدیث دَ مسند احمد دے چه عمر رضی الله عنه ته رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمائیلی وو که ستا پلار اقرار دَ توحید کړے وے او تا دَ هغه دَ طرف نه روژه نیولے وے او تصدق دِ کړے وے نو هغه له به یئے نفع ورکړے وه دا روح المعانی نقل کړے دے پنځم حدیث دَ ابوداؤد دے چه ابوهریره رضی الله عنه اهلِ ابلّه ته ویلی وو څوک شته چه زما دَپاره په مسجد عشار کښې دوه رکعته یا څلور رکعته مونځ اوکړی او اُوائی چه دا دَ ابوهریره دَپاره دی دا مشکوٰة باب الملاحم کښې راورے دے (پاتے په بل مخ)

وَأَنَّ سَعْيَهُ سَوْفَ يُرَىٰ ﴿۴۰﴾ ثُمَّ يُجْزَاهُ

او یقینا کوشش دَ دهٔ زر دے چه او به لیده لے شی - بیا به بدله ورکیده لے شی

الْجَزَاءَ الْأَوْفَىٰ ﴿۴۱﴾ وَأَنَّ إِلَىٰ رَبِّكَ

بدله بشپړه پوره ۔ او یقینا ستا رب ته

او البانی ویلی دی چه اسناد دَ دے ضعیف دی۔

فائده ۳ :- په عبادتِ بدنیه کښ تلاوت دَ قرآن کریم هم داخل دے دَ هغے ثواب یل چاته د. مخلو دَ پاره هم خصوصی نص صحیح نیشته صرف په عموما تو کښ دَ احنافو په نیز باته ے داخل دے لیکن دَ ختم قرآن دَ کولو دَ پاره خاص هئیت جوړول چه ډیر کسان جمع شی او سپارے تقسیم کړی او په جمع سره قرآن لولی څوک یې په اوچت آواز سره لو لی او څوک په پټه سره دا هئیت جوړول دَ ختم دَ پاره په هیڅ نص سره ثابت نه دے لکه چه فتاوی بزازیه هم لیکلی دی۔ وَيُكْرَهُ اِتِّخَاذُ الطَّعَامِ فِي الْيَوْمِ الْأَوَّلِ وَالثَّالِثِ وَبَعْدَ الْأُسْبُوعِ وَالْأَعْيَادِ وَنَقْلُ الطَّعَامِ إِلَى الْقَبْرِ فِي الْمَوَاسِمِ وَاِتِّخَاذُ الدَّعْوَةِ لِقِرَاءَةِ الْقُرْآنِ وَجَمْعِ الصُّلَحَاءِ وَالْقُرَّاءِ لِلْخَتْمِ أَوْ لِقِرَاءَةِ سُوْرَةِ الْأَنْعَامِ اوالْإِخْلَاصِ۔ ملا حاشیه دَ عالمگیری ( ترجمه او مکروهه دے طعام تیارول په مړی پسے په اوله او دریمه ورځ او روستو دَ هغے نه او په اخترونو کښ او طعام اوړل قبر ته په موسم دَ اخترونو کښ او مکروهه دے دعوت جوړول دَ پاره دَ قرآن لوستلو او جمع کول دَ نیکانو او قاریانو دَ ختم دَ پاره یا سورة انعام او اخلاص دَ لوستلو دَ پاره ) او ابن کثیر ویلی دی چه دَ هغے عبارت ترجمه دا ده "او دَ دے آیت نه امام شافعی او دَ هغه تابعدارو دلیل نیولے دے چه قراءة چه دے دَ هغے ثواب مړو ته نه رسیږی ځکه دا عمل او کسب دَ صحابه کرامو نه دے او دَ دے وجے نه نبی صلی الله علیه وسلم دیته خپل امت نه بللے او نه یې ترغیب ورکړے او نه یې دیته په نص او اشاره سره ارشاد کړے او دَ هیڅ یو صحابی نه نقل نه دے شوے او که دا دَ خیر کار وے نو صحابه کرامو په زمونږ نه مخکښ کړے وے او په باب دَ عباداتو کښ په نصوصو باندے اقتصار کیدے شی او نه هغے ته په قیاسونو او اراؤ سره گرځیدل کیدے شی" او په روح المعانی کښ لیکلی دی چه هر کله قراءت په اجرت سره وی لکه چه اوس یې اکثر خلق کوی حافظانو ته اجرت ورکوی دَ دے دَ پاره چه دَ دوی په مړو پسے قرآن او لولی نو دَ دے ثواب هغوی ته نه رسیږی ځکه چه دَ هغے ثواب نیشته دَ وجے دَ حرام والی دَ اجرت اخستلو نه په قراءة

ښه ۲ لکه چه سورة زلزال کښ راغلی دی او ظاهر دَ آیت نه دا ده چه عملونه (په خاص شکل کښ) لیده لے کیده ے شی۔

الْمُنْتَهٰى ﴿۴۲﴾ وَاَنَّهٗ هُوَ اَضْحَكَ وَاَبْكٰى ﴿۴۳﴾ وَاَنَّهٗ

آخری رسیدل دی، او یقیناً هغه خندا پیدا کوی او ژړا پیدا کوی، او یقیناً هغه

هُوَ اَمَاتَ وَاَحْيَا ﴿۴۴﴾ وَاَنَّهٗ خَلَقَ الزَّوْجَيْنِ

مره کول کوی او ژوندی کول کوی، او یقیناً هغه پیدا کړیدی جوړے

الذَّكَرَ وَالْاُنْثٰى ﴿۴۵﴾ مِنْ نُّطْفَةٍ اِذَا تُمْنٰى ﴿۴۶﴾

نارینه او زنانه، د نطفے نه کله چه واچولے شی په رحم کښں۔

وَاَنَّ عَلَيْهِ النَّشْاَةَ الْاُخْرٰى ﴿۴۷﴾ وَاَنَّهٗ هُوَ

او یقیناً د هغه په ذمه بانديے پیدائش بل دے، او یقیناً هغه

۴۲ د دے ایت نه صفات د الله تعالیٰ ذکر کیږی د پاره د اثبات د توحید په دے ایت کښں یو صفت ذکر کړے دے۔ الْمُنْتَهٰى یعنی رجوع د ټولو خلقو او د ټولو عملونو الله تعالیٰ ته ده د پاره د حساب کولو او د جزا ورکولو۔ یا انتها د امید ونو یو الله تعالیٰ ته ده د بل هیچا نه امید د نفع او نقصان نیشته۔ یا انتها د فکرونو الله تعالیٰ پورے ده یعنی هر خیز ته فکر کیدے شی لیکن د الله تعالیٰ په ذات کښں فکر نه چلیږی یعنی هر کله چه شیطان وسوسه شورو کړی چه الله تعالیٰ چا پیدا کړے دے او څنګه دے نو د غه وخت اعوذ بالله او ائی او منع شئ د فکر کولو نه او دا په حدیث صحیح کښں راغلے دی۔

۴۳ نه تر ۵۴ پورے په دے ایاتونو کښں نهه صفتونه د الله تعالیٰ ذکر کوی د پاره د اثبات د توحید۔ او په دے کښں دوه دوه متضاد خیزونه ذکر کوی دے ته په علم بدیع کښں الطِّبَاقُ الْمُتَضَادّ ویلے کیږی۔ او په یکښں مفعول نه دی ذکر کړی ځکه مراد د دینه تخصیص په یو مفعول پورے نه دے بلکه ذکر د صفتونو د قدرت د الله تعالیٰ مراد دے۔ فائده: په دے صفتونو کښں چه په کومو کښں هیڅ وهم د شرکت د غیر الله نیشته نو په هغے کښں هو ضمیر فصل یئ نه دے ذکر کړے لکه خَلَقَ مذکر او مونث د نطفے نه مشرکانو هم د دے اقرار کوؤ او په کومو صفتونو کښں چه وهم د شرک وو نو په هغے کښں هو ضمیر فصل یئ د پاره د تاکید د توحید ذکر کړے دے۔ اَضْحَكَ وَاَبْكٰى یعنی خندا او ژړا او د دے اسباب (غمونه او خوشحالئ) الله تعالیٰ پیدا کوی۔ اَمَاتَ وَاَحْيَا د بعض منکرینو سرکشانو دعویٰ دا ده چه دا ( پاتے په بل مخ )

أَغْنٰى وَأَقْنٰى ﴿٤٨﴾ وَأَنَّهٗ هُوَ رَبُّ الشِّعْرٰى ﴿٤٩﴾

مالدارجوړوی اوغریب جوړوی، او یقیناً هغه رب د شعریٰ ستوری دے،

تصرف او اختیار زما دے چه څوک مړکوم او څوک ژوندے پریږدم لکه نمرود چه دعویٰ کړے وه او ابراهیم علیه السلام په هغه باندے حجت قائم کړو سورة بقره کښ تیرشویدی۔

أَغْنٰى وَأَقْنٰى په دے کښ ډیر اقوال دی ۱ أَغْنَاء په مطلق مال ورکولو سره او أَقْنَاء په هغه مال سره چه خزانه کیږی اوساتلے کیږی۔

۲ أَغْنَاء په نقودو سره او اقناء په خاروؤ سره۔

۳ اغناء په مالونو ډیرو سره او اقناء په خادمانو او نوکرانو ورکولو سره۔

۴ اغناء مال ورکول او اقناء راضی کول۔

۵ اغناء مالدارکول او اقناء فقیرکول۔

۶ اغناء دَ ځان او اقناء فقیرکول دَ مخلوق۔

رَبُّ الشِّعْرٰى۔ شعری دوه دی یو شعری القبور دے او دیته مرزم الجوزاء او شعری یمانیه او کلب الجَبَّار هم ویلے کیږی او دویم قسم شعری الغمیصا او شعری الشامیه دے اول قسم دَ جوزاء میاشت ته روستو دَ گرمئ په موسم کښ ښکاره کیږی۔ حمیر او خزاعه قبیلو دَ اول قسم شعری عبادت شورو کړے وو او دَ دے اوله ابتداء ابوکبشه کړے وه چه هغه دَ رسول الله دَ مور دَ طرف نه لرے نیکه وؤ او ماسیوا دَ خزاعه او حمیر نه نورو قبیلو دَ عربو دَ هغه نه مخالفت کوؤ او ویل ئے چه دے صابی دے نوے دین ئے ایجاد کړے دے او دَ دے وجے نه په قریش مکه رسول الله صلی الله علیه وسلم ته هم ابن ابی کبشه ویل یعنی دهٔ هم دَ هغه پشان نوے دین راوړے دے او رسول الله صلی الله علیه وسلم او دَ هغه صحابو ته به دوی صابیان ویل۔ او دَ شعری دَ عبادت خاص کولو وجه دوی داسے ذکرکوله چه نور ستوری په اسمان کښ په عرض (پلن والی) باندے مزل کوی او شعری پکښ په طول (اوگد والی) سره مزل کوی او ویل ئے چه دے په دنیا کښ تاثیر کوؤنکے دے! خو الله تعالیٰ دَ هغوی په رد کښ اوفرمائیل چه په شعری کښ تاثیر اچولو والا او دَ هغه چلوؤنکے خو الله تعالیٰ دے نو شعریٰ مربوب دے نو تاسو دهٔ لره معبود ولے گنړے؟۔

وَاَنَّهٗٓ اَهْلَكَ عَادَا الْاُوْلٰى ﴿۵۰﴾ وَثَمُوْدَا۟ فَمَآ

او یقینًا هغه هلاک کړیدی عادیان زاړه ، او ثمودیانو نو

اَبْقٰى ﴿۵۱﴾ وَقَوْمَ نُوْحٍ مِّنْ قَبْلُ ۭ اِنَّهُمْ كَانُوْا

باقی ئې نه دی پریخودلے هیڅوک، او تباه کړیدے قوم دَ نوح علیه السّلام دَ دوی نه مخکښ یقینًا دوی دوُ

هُمْ اَظْلَمَ وَاَطْغٰى ﴿۵۲﴾ وَالْمُؤْتَفِكَةَ اَهْوٰى ﴿۵۳﴾

ډیر ظلم کوؤنکی او ډیر سرکش او مؤتفکه کلے دَ برے نه ئې او غورځولو هغه،

فَغَشّٰىهَا مَا غَشّٰى ﴿۵۴﴾ فَبِاَيِّ اٰلَاۗءِ رَبِّكَ

نو پټ کړو هغې لره هغه څیز چه پټے ئې کړو . نو په کوم یو دَ نعمتونو دَ رب ستا بانده

تَتَمَارٰى ﴿۵۵﴾ هٰذَا نَذِيْرٌ مِّنَ النُّذُرِ الْاُوْلٰى

شک کوئے . دا ډیره ورکوؤنکے دے دَ ډیره ورکوؤنکو

ت۵۰ ت۵۱ ت۵۲ ت۵۳ ت۵۴ په دے ایاتونو کښ هم ذکر دَ تصرف دَ الله تعالیٰ دے په اهلاک دَ لویو قومونو سره او ورسره تخویف دنیوی دے په ذکر دَ عذاب دَ څلورو قومونو چه تکذیب دَ انبیاء علیهم السّلام ئې کړے وو الْاُوْلٰى قبیله عاد دوه دوُیو اولی یعنی عادِ ارم او بل عاد ثمودیانو ته ویلے کیدلو . یا اولی نه مراد هغه دی چه ډیر مخکښ تیر شویدی چه دَ هغوی نه وړاندے بل عاد نه وؤ. اَظْلَمَ وَاَطْغٰى دا خاص دے په قوم دَ نوح علیه السلام پورے یا متعلق دے په ماقبل درے واړو پورے. اَظْلَمَ په عقیده کښ او اَطْغٰى په عمل کښ یا اول په حقوقو الهیو کښ او دویم په حقوقو دَ بندګانو کښ . وَالْمُؤْتَفِكَةَ په سورة الحاقة ت۹ کښ جمع ذکر کړے ده ځکه چه ډیر کلی وو او دلته مفرد په معنیٰ دَ جنس دے. مَا غَشّٰى ابهام ئې اوکړو اشاره ده ډیر والی دَ کاڼړو ته چه دَ انسانانو په شمار کښ او په علم کښ نشی راتللے. او دلته ئې پنځم قوم یعنی قوم فرعون ذکر کړے نه دے کیدے شی چه مخکښ صحف موسیٰ کښ هغه قوم ته اشاره وه نو دَ دے وجے نه ئې بیا ذکر نه کړو.

ت۵۵ هر کله چه مخکښ بعضے نعمتونه ذکر کړے شو (پاتے په بل مخ)

الْاُوْلٰى ﴿۵۶﴾ اَزِفَتِ الْاٰزِفَةُ ﴿۵۷﴾ لَيْسَ لَهَا مِنْ

مخکنو نه - رانژدے شو نژدے راتلونکے آفت - نیشته هغے لره سیوا

دُوْنِ اللّٰهِ كَاشِفَةٌ ﴿۵۸﴾ اَفَمِنْ هٰذَا الْحَدِيْثِ

دَ الله تعالی نه هیڅوک ښکاره کوونکے - آیا د دے خبر نه

تَعْجَبُوْنَ ﴿۵۹﴾ وَتَضْحَكُوْنَ وَلَا تَبْكُوْنَ ﴿۶۰﴾

تاسو تعجب کوئے ، او خندا کوئے او نه ژاړئے ،

نو اوس زجر ورکوی انسان مکذب ته لکه چه دا سے سورة رحمٰن کښ هم راغلے دی یا استفهام انکاری دے او عام خطاب دے یعنی کوم نعمت دَ الله کښ شک کیدے شی ؟

سے ۵۶ دا صداقت دَ رسول دے او اشاره ده تخویف دَ منکرینو ته یعنی څنګه چه دَ مخکنو رسولانو په تکذیب کوونکو عذاب راغے نو دا سے به دَ دے رسول په منکرینو هم عذاب راځی یا دنیوی یا اخروی۔ هٰذَا اشاره ده محمّد رسول الله صلی الله علیه وسلم ته یا اشاره ده تیر شوی ذکر دَ رسولانو او دَ قومونو دَ هغوی ته او بنا په دویمه توجیه سره نذیر مصدر دے په معنیٰ دَ انذار سره۔

سے ۵۷ سے ۵۸ دا تخویف اخروی دے اَلْاٰزِفَةُ نوم دے دَ نومونو دَ قیامت نه په معنیٰ دَ الساعة او الآفة القریبة یعنی نژدے راتلونکے دے او نژدے دے خلقو ته۔ كَاشِفَةٌ اسم فاعل دے او موصوف ئے حذف دے یعنی نفس كاشفة او دَ كاشفة معنیٰ ښکاره کوونکے (واقع کوونکے دے) یا په معنیٰ دَ تفصیلی بیان کوونکے یا په معنیٰ دَ لرے کوونکے دَ خلقو ته کله چه په دوی باندے راشی۔ یا كاشفة په معنیٰ دَ مصدر سره دے او اوله معنیٰ مراد ده۔

سے ۵۹ سے ۶۰ سے ۶۱ دا زجر دے په انکار دَ قرآن سره مراد دَ حدیث نه قرآن دے او خلوص قباحتونه دَ منکرینو ئے ذکر کړے دی۔ تَعْجَبُوْنَ تعجب په طریقه دَ انکار سره دَ لکه سورة یونس سے ۲ او سورة ص سے ۵ کښ۔ وَتَضْحَكُوْنَ دا په طریقه دَ استهزاء سره مراد دے خوشحالی مراد نه ده۔ وَلَا تَبْكُوْنَ ژړا کول په دے سره دَ نیکانو خلقو صفت دے لکه سورة اسراء سے ۱۰۹ کښ دی یا مراد دَ حدیث نه خبر دَ ازفت الآزفة دے۔

وَاَنْتُمْ سَامِدُوْنَ دَ سمود معنے اعراض، غفلت، استکبار لهو ولعب کول او غزلے

وَاَنْتُمْ سٰمِدُوْنَ ﴿۶۱﴾ فَاسْجُدُوْا لِلّٰهِ وَاعْبُدُوْا ﴿۶۲﴾

او تاسو غفلت کوونکي يئ. نو سجده کوئ الله تعالیٰ ته او بندګي کوئ دَهغه.

شعرونه ويل په طريقه دَ سرود ونو سره". اشاره ده چه دَ قرآن په مقابله کښ سرودونه ويل دَ کافرانو کار دے او دا جمله حاليه ده. يا جمله مستانفه مستقله ده.

سـ۶۲ـ دا تفريع ده په ټول سورت باندے يعني هرکله چه ثابت شوه چه دَ دے رسول دليل وحي ده او تاسو سره صرف ظن او اتباع دَ هوئ ده بيا ثابت شوه چه الله تعالیٰ انعامات کوونکے دے او رسول او قرآن ئې حق راليږلے دی نو فرض ده په تاسو باندے چه سجده او تمام عبادات الله تعالیٰ لره خاص کړئ. اول امر ئې دَ سجدے اوکړو دَ ډيرو وجوهو نه اول دا چه سجده په ټولو ارکانو دَ مونځ کښ ډير اهم رکن دے. دويم دا چه دَ سجدے په وخت کښ الله تعالیٰ ته قربت ډير حاصليږی دريم دا چه دا سجده دَ تلاوت ده او هغه مستقل عبادت دے.

لِلّٰهِ لام دَ پاره دَ تخصيص دے ځکه چه الله تعالیٰ ته سجده خو مشرکانو هم کوله ليکن دَ الله تعالیٰ نه سيوا نورو خپلو معبودانو ته ئې هم کوله.

وَاعْبُدُوْا دا تعميم بعد التخصيص دے او لفظ دَ لِلّٰهِ په دے کښ هم مراد دے په قرينه دَ معطوف عليه سره دَ دے امر دَ ذکر کولو وجه دا ده چه صرف سجده مشرکانو هم کوله لکه چه حديث کښ راغلے دی چه دَ دے سورت په تلاوت سره رسول الله صلی الله عليه وسلم او مؤمنانو او مشرکانو او پيريانو ټولو سجده اوکړه ليکن نور عبادتونه ئې نه کول نو امر ورته اوکړے شو چه ټول عبادتونه الله تعالیٰ لره خاص کوئ.

ختم شو تفسير دَ سورة نجم په توفيق دَ الله تعالیٰ سره

| سُوْرَةُ الْقَمَرِ ۵۴ مَکِّیَّةٌ ۳۷ | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِیْمِ | اٰیَاتُهَا ۵۵ رُکُوْعَاتُهَا ۳ |
|---|---|---|

اِقْتَرَبَتِ السَّاعَةُ وَانْشَقَّ الْقَمَرُ ① وَاِنْ یَّرَوْا

ډیر نزدے شو قیامت او اوچود له سپوږمئ۔ او که چرے اُوینی دوی

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِیْمِ

## سورة القمر

ربط دَ دے سورت دَ مخکښ سورت سره په څو وجوهو سره دے اوله وجه داچه مخکښ زجرونه دَ مشرکانو په عقیده او دلیل باندے نو په دے سورت کښ تخویف اخروی دے. دویمه وجه داچه اول ذکر شو چه مشرکان دَ خواهش تابع داروی په عقیده کښ نو اوس ذکر کوی چه دَ وجے دَ خواهش نه دَ معجزاتو انکار کوی. دریمه وجه داچه تیر شوی سورت کښ دَ اقوام مکذبو ذکر اجمالی وو نو په دے سورت کښ دَ هغوی ذکر تفصیلی دے. څلورمه داچه دَ هغه سورت په اخر کښ ازفت او دَ دے سورت په اول کښ اقتربت الساعت دے.

دعوی دَ دے سورت تخویف اخروی په ذکر دَ اقتراب دَ ساعت او سبب دَ تخویف تکذیب دے او هغه سبب دَ عذابونو وو په پنځه قومونو مکذبینو باندے. او په سورت کښ رد دَ شرک فی الدعاء او فی التصرف او سے کښ ایمان بالتقدیر ذکر دے او په هغے کښ رد دے په شرک فی البرکات باندے یعنی دَ الله تعالی مقرر اندازه هیڅوک نشی بدلولے.

خلاصه دَ دے سورت. تخویف اخروی سره دَ معجزے نه بیا زجر دے دَ منکرینو په ذکر کولو دَ پنځه حالتونو دَ هغوی او تخویف اخروی دے په ذکر دَ پنځه هیبتونو دَ قیامت سره بیا تخویف دنیوی دے په ذکر دَ پنځه قومونو تیر شوؤ سره بیا زجر دے په پنځه حالاتو دَ موجوده منکرینو سره بیا تخویف اخروی دے په پنځه احوالو سره بیا ذکر دَ قدرت دَ الله تعالی دے په پنځه طریقو سره دَ پاره دَ اثبات دَ قیامت او اخر کښ بشارت دے په پنځه طریقو سره.

تفسیر سا دا تخویف اخروی دے اِقْتَرَبَتِ باب افتعال په ډیر نزدیکت باندے

اٰیَةً یُّعْرِضُوْا وَ یَقُوْلُوْا سِحْرٌ مُّسْتَمِرٌّ ﴿۲﴾

نښه نو مخ اړوی او وائی دوی دا جادو پوخ دے.

وَكَذَّبُوْا وَاتَّبَعُوْٓا اَهْوَآءَهُمْ وَكُلُّ اَمْرٍ

او دروغژن گڼړی حق لره او تابعداری کوی دَ خواهشاتو خپلو او هر کار

دلیل دے اَلسَّاعَةُ نوم دے دَ نومونو دَ قیامت نه اومراد دَ دے ساعت نه فنا کیدل دَ عالم دی یا ساعت دَ بعث بعد الموت دے په شپیلئ وهلو سره.

وَانْشَقَّ الْقَمَرُ دا جمله حالیه ده یعنی انشقاق دَ قمر دلیل دے په صداقت دَ دے رسول صلی الله علیه وسلم باندے اوراتلل دَ دۀ دنیا ته اوله نښه ده دَ قرب دَ ساعت او دارنګ انشقاق دَ قمر دلیل دے په قدرت دَ الله تعالیٰ باندے چه دا رنګ هغه قادر دَے دَ تول عالم په فنا کولو باندے.

او انشقاق القمر معجزه وه چه ښکاره کړے شوے وه مکے والو ته او دا حدیث امام بخاری، امام مسلم، ترمذی بیهقی او ډیرو محدثینو په صحیح اسانیدو سره ذکر کړے دے او دَ انس او ابن عباس او ابن عمر او ابن مسعود او جبیر بن مطعم رضی الله عنهم نه روایت کړے شویدے انکارکول دَ دے نه بد عقیدۍ اعتقادیه دے نوکه په دے ایت کښې مفسرین نور اقوال ذکرکوی دَ دے لفظ دَ عموم دَ وجے نه نو جائز دی او که چا دَ معجزے دَ انکار دَ وجے نه نور اقوال ذکر کړے وی نو هغه مردود دے. په دَے کښې دویم قول دادے چه فعل ماضی په معنیٰ دَ مضارع ده یعنی دَ قیامت قائم کیدلو په وخت کښې به سپو ره ئے اوچوی دریم قول دا دے چه دا ښکاره شو حال دَ صداقت دَ دے پیغمبر لیکن دوستوا ایا تونهم ښکاره دلالت کوی چه دلته بحث دے په باره دَ معجزه کښې.

۲ دَ دے ایت نه تر ۸ پورے زجرونه دی او دَ منکرینو پنځه حالات ذکرکوی په دَے ایت کښې زجر دے او دَ منکرینو دوه حالتونه ذکر کړے دی.

مُّسْتَمِرٌّ په دے لفظ کښې دَ اختلاف دَ مادے دَ وجے نه ډیر اقوال دی.

دَ مِرَّة نه په معنیٰ دَ قوی محکم سره دے دَ مرور نه په معنیٰ دَ زائل کیدونکے او ختم کیدونکے سره دے دَ مرارة نه په معنیٰ دَ تریخ والی سره دے یعنی ډیر تیز اثر کوونکے دے دَ اِسْتِمْرَارٌ نه دَ دوام او همیش والی په معنیٰ سره دے (پاتے په بل مخ)

مُسْتَقِرٌّ ﴿۳﴾ وَلَقَدْ جَآءَهُمْ مِّنَ الْاَنْۢبَآءِ مَا فِيْهِ

په یو وخت کیدونکے دے. او یقیناً راغلی دے دوی ته دَ خبرو نه هغه چه په هغے کښ

مُزْدَجَرٌ ﴿۴﴾ حِكْمَةٌۢ بَالِغَةٌ فَمَا تُغْنِ النُّذُرُ ﴿۵﴾

پوره زورنه دی ، پخے خبرے انتها ته رسیدونکی دی نو څه فائده به ورکړی ویره ورکوونکی .

اودا رنګ په معنیٰ دَ مشابه ذریو یل سره او په معنیٰ دَ تیریدونکے دَ زمکے نه اسمان ته.

۳ په دے کښ هم دَ منکرینو دوه حالتونه په زجر سره ذکر دی. كَذَّبُوْا یعنی دوی اُویل چه دا انشقاق دَ قمر دلالت نه کوی په صداقت دَدے نبی باندے.

وَاتَّبَعُوْا اَهْوَآءَهُمْ یعنی دوی اویل چه دا سحر دے یا دا نظر بندی ده.

مُسْتَقِرٌّ یعنی قیامت به په خپل وخت قائم کیږی اوجنت والا به په جنت کښ اوجهنم والا به په جهنم کښ قرارے اومومی یا مرادَ استقرار نه واقع کیدل دَ هرڅیز دی پخپله نیټه مقرره باندے.

۴ دا هم زجر دے چه دوی ته دَدے معجزے نه مخکښ هم انباء راغلے دی اودوی ترینه انکار کړے دے او ترغیب دے قرآن ته.

مُزْدَجَرٌ مصدر میمی دے او دال بدل دے دَ تا نه اومادہ دَ دے زجر دے یعنی منع کول دَ دوی دَ کفر او شرك او تکذیب نه.

۵ مراد دَ دے نه قرآن دے او خبر دے دَ مبتدا محذوف یعنی هو حكمة يا بدل دے دَ حرف دَ مَا نه په تیر شوی ایت کښ. بَالِغَةٌ یعنی انتها ته رسیدلے دے په مواعظو او دلیلونو او لطائفو او احکامو او فصاحت و بلاغت کښ .

فَمَا تُغْنِ ما نافیه او استفهامیه دواړه کیدے شی تُغْنِ په اصل کښ تغنی دے یا حذف کړے شوے دے په رسم خط دَ قرآن کښ اګرچه دَ دے دَ حذف کیدلو ظاهری سبب نیشته او په دے کښ اشاره ده لکه چه دَ دے لفظ دَ اخر نه یا حذف شوے ده داسے دَ دے خلقو نه فائده دَ انذار ختم شوے ده او په دے جمله کښ زجر دے او بخم حالت دَ دوی ذکر کوی.

النُّذُرُ مصدر دے په معنیٰ دَ انذار یا جمع دَ نذیر ده او دَ دے مثال په سورة یونس ۱۰۱ کښ تیر شوے دے.

فَتَوَلَّ عَنْهُمْ ۘ يَوْمَ يَدْعُ الدَّاعِ إِلَىٰ شَيْءٍ

نو مخ واړوه ته د دوی نه · په هغه ورځ کښې چه آواز به اوکړی آوازکوونکے یو څیز

نُّكُرٍ ۝٦ خُشَّعًا أَبْصَارُهُمْ يَخْرُجُونَ مِنَ

ناکاره ته (سخت) کوزے به وی سترګے د دوی · راوځی به دوی · د

الْأَجْدَاثِ كَأَنَّهُمْ جَرَادٌ مُّنتَشِرٌ ۝٧ مُّهْطِعِينَ

قبرونو نه · ګویاکه دوی · ملخان دی خواره واره · منډے به وهی

إِلَى الدَّاعِ ۖ يَقُولُ الْكَافِرُونَ هَٰذَا يَوْمٌ عَسِرٌ ۝٨

آوازکوونکی طرف ته · وائی به · کافران · دا · ورځ · سخته ده ۔

سے سک سے هرکله چه دَ منکرینو قبائح ذکر شول نو اوس په حرف دَ فا سره تفریع ذکرکوی او تسلی ورکوی رسول صلی الله علیه وسلم ته او مراد په دے سره دَ دوی نه بے پرواه کیدل دی۔ یَوْمَ یَدْعُ دَ دے نه تخویف اخروی ذکرکوی په بیان دینځه حالتونو سره۔ دَ یَوْمَ نه مخکښې لفظ دَ اذکر پټ مراد دے اَلدَّاعِ نه مراد اسرافیل علیه السلام دے او دَ دعوت نه مراد شیلئ وهل دی دَ پاره دَ بعث بعد الموت۔
شَیْءٍ نُّکُرٍ په دے کښې حشر،حساب،میزان ټولو حالتونو ته اشاره ده۔خُشَّعًا اَبْصَارُهُمْ ذلت او عاجزی دَ سترګو نه معلومیږی چه دَ شرم نه خکته ګوری دَ دے وجے نه دَ اَبْصَارُ تخصیص ئے اوکړو لکه په سورۃ قلم ۴۳ او سورۃ شوریٰ ۴۵ کښې ذکر دی۔
جَرَادٌ مُّنْتَشِرٌ تشبیه دَ ملخانو سره په ډیر والی کښې او جمع کول دَ لویو وړو کښې مُنْتَشِرٌ کښې اشاره ده چه په صفونو او قطارونو سره به نه وی۔
فائده:۔ سورۃ القارعه کښې تشبیه دَ پتنګانو سره ده او دلته دَ ملخانو سره نو په دے کښې دوه حالتونو مختلفو ته اشاره ده اول حال دا چه دَ قبرونو نه راوځی نو اول به ډیر پریشان وی نو ورتللو طرف به ورته معلوم نه وی لکه چه دَ پتنګانو یو طرف نه دے او لګ وخت روستو به په یو طرف (دَ داعی) پاندے راشی لکه ملخان چه په یو طرف پاندے الوځی مُّهْطِعِیْنَ په دیکښې ډیرے معانی دی ، تیز تلونکی ، سترګو نه اوچتوونکی ، قصد کوونکی ، سیدها نظر کوونکی ، غوږونه دَ پاره دَ آواز ایښودلو کیښودونکی۔ او دا یو بل ته نژدے معانی دی۔ هَٰذَا یَوْمٌ عَسِرٌ لکه سورۃ فرقان ۲۶ او سورۃ مدثر ۹ ۱۰ کښې دی۔

كَذَّبَتْ قَبْلَهُمْ قَوْمُ نُوحٍ فَكَذَّبُوا عَبْدَنَا

تکذیب کړے وو د دوی نه وړاندے قوم د نوح علیه السلام نو دروغژن ئے اوګڼلو بنده زمونږ

وَقَالُوا مَجْنُونٌ وَّازْدُجِرَ ۝ فَدَعَا رَبَّهُ أَنِّي

او دوی اوویل لیونے دے او او زورلے شو. نو دُعا ئے اوغوښتله د رب خپل نه چه یقیناً زهٔ

مَغْلُوبٌ فَانْتَصِرْ ۝ فَفَتَحْنَا أَبْوَابَ السَّمَاءِ

کمزورے یم نو ته بدله واخله د دوی نه. نو را پرانستلی مونږ دروازے د اسمان

ف د دے ایت نه پنځه واقعات ذکر کوی د پاره د تخویف دنیوی یعنی تکذیب د قیامت سبب د عذاب دے نو دا متعلق دے د ٣ سره. کَذَّبَتْ دا اوله واقعه ده د قوم د نوح علیه السلام.

کَذَّبَتْ، فَكَذَّبُوا دوه کرته ئے تکذیب ذکر کړو اشاره ده کثرت د تکذیب او استمرار ته یا د اول نه مراد تکذیب د توحید او د قیامت دے او دویم نه تکذیب د رسالت د هغهٔ دے.

وَازْدُجِرَ دا د زجر نه ماخوذ دے او دال په اصل کښ تا وه د تاکید او مبالغے د زجر د پاره صیغه د باب افتعال او صیغه د فعل مجهول ئے ذکر کړے ده او دا عطف دے په قَالُوا باندے نو دا قول د الله تعالیٰ دے یعنی دوی منع کړے وو هغه لره د دعوت کولو نه لکه په سورت شعراء ١١٦ کښ دی یا عطف دے په مجنون باندے او قول د منکرینو دے یعنی جناتو د دهٔ دماغ خراب کړے دی.

ف دا اجمالی دُعا ده او تفصیلی دعا د هغه په سورت نوح کښ ذکر کړے ده.

مَغْلُوبٌ سوال:- دا خلاف دے د سورة مجادله ٢١ او سورة صافات ١٧٣ نه؟

جواب ١- دا دے چه دعا ئے تونه روستو د نصرت د الله تعالیٰ نه دی او په دے کښ مخکښ د نصرت نه مغلوبیت مراد دے.

دویم جواب دا دے چه په هغه ایاتو نو کښ غلبه د حجت او د دلیل مراد ده او په دے ایت کښ غلبه د قوت او د زور مراد ده او دریم جواب ابن عطیه کړے دے چه مغلوب نه مراد دا دے چه دُعاءِ شر غوښتلو کښ مجبور یم.

بِمَآءٍ مُّنۡهَمِرٍ ﴿۱۱﴾ وَّفَجَّرۡنَا الۡاَرۡضَ عُيُوۡنًا فَالۡتَقَى

په اوبو را بېدونکو سره. او را او بستلے مونږ د زمکے نه چينے نو يو ځائے شوے

الۡمَآءُ عَلٰٓى اَمۡرٍ قَدۡ قُدِرَ ﴿۱۲﴾ وَحَمَلۡنٰهُ عَلٰى

ټولے اوبه په هغه کار چه مقرر کړے شوے وؤ. او سور کړو مونږ دهٔ لره په

ذَاتِ اَلۡوَاحٍ وَّدُسُرٍ ﴿۱۳﴾ تَجۡرِىۡ بِاَعۡيُنِنَا ۚ جَزَآءً

(کشتئ) تختو والا او ميخونو والا، روانه وه په سترګو زمونږ بدل اخستل دې

لِّمَنۡ كَانَ كُفِرَ ﴿۱۴﴾ وَلَقَدۡ تَّرَكۡنٰهَاۤ اٰيَةً فَهَلۡ

د پاره د هغه چا چه ناشکرى کړے شوې وه. او يقينًا پرېخودله مونږ دغه قصّه نښه نو آيا

۱۱ تا ۱۲ په دے کښ قبوليت د دُعا ته اشاره ده اَبۡوَابَ السَّمَآءِ په حقيقت باندے حمل دے چه دا اوبه ئے د آسمان نه را او وَرولے يا کنايه ده د ډيرو وريځو نه. مُّنۡهَمِرٍ چه ډيرے وى او په تويونو سره رابهيږى اَلۡاَرۡضَ مراد د دے من الارض دے ليکن د مبالغے د پاره ئے مِنۡ حذف کړے دے فَالۡتَقَى الۡمَآءُ مراد د دے نه جنس ماء دى يعنى اوبه د آسمان او د زمکے ځکه چه التقاء په مينځ د دوؤ يا ډيرو کښ راځى.
عَلٰٓى اَمۡرٍ قَدۡ قُدِرَ، اَمۡرٍ نه مراد مقدار د اوبو دے يا مراد د دے نه حال دے يعنى هلاکت د دغه قوم چه په تقدير کښ د مخکښ نه ليکلے شوے وؤ چه دوى به په دا سے طوفان سره تباه کولے شى او دا اشاره ده مسئلے د تقدير ته.
۱۳ تا ۱۴ په دے کښ طريقه د نجات د نوح عليه السّلام او د هغه د ملګرو مراد ده. دُسُرٍ جمع د دسار ده هغه څيزونه چه په هغے سره کشتئ کلکيږى ميخونه، او سپينه لرګى، رسے ګانے وغيره. او دا رنګ سيپنه د کشتئ چه په هغے سره اوبه دفع کيږى او شليږى. بِاَعۡيُنِنَا دا د متشابهاتو نه دے او اشاره ده حفاظت ته د الله تعالى د طرف نه. جَزَآءً لِّمَنۡ كَانَ كُفِرَ د مَنۡ نه مراد نوح عليه السّلام دے چه د هغه نه انکار کړے شويوؤ او هغه ډير صبر کړے وؤ نو جزاء په معنى د ثواب يا د بدله اخستلو ده يا مراد د دے نه الله تعالى دے چه د هغه د احکامو نه کفر کړے شوے وؤ او جزاء په معنى د عقاب او سزا ده او لام په معنى د مِن سره دے.

مِنْ مُّدَّكِرٍ ﴿١٥﴾ فَكَيْفَ كَانَ عَذَابِيْ وَنُذُرِ ﴿١٦﴾

شته څوک نصیحت قبلونکے. نو څه رنګ شو عذاب زما او ویرول زما.

وَلَقَدْ يَسَّرْنَا الْقُرْاٰنَ لِلذِّكْرِ فَهَلْ مِنْ مُّدَّكِرٍ ﴿١٧﴾

او یقینًا آسان کړے دے موږ قرآن دپاره د نصیحت اخستلو آیا شته دے څوک نصیحت قبلونکے.

۱۵ ۱۶ ۱۷ په دے آیاتونو کښ تنبیه ده دپاره د نصیحت اخستلو د واقعے د نوح علیه السلام نه په عذاب د متکبرینو او په نجات د مؤمنانو. تَرَكْنَاهَا دا ضمیر راجع دے قوله قصے ته یا راجع دے کشتۍ ته او په دویم احتمال سره مراد د کشتۍ نه امثال د هغے دی لکه په سورة یٰس ۴۲ کښ دی یا هغه کشتۍ چه د دے امت څخکنو خلقو لیدلے وه او روستو هم د هغه کشتۍ تختے په کوهستان ارارات کښ لیدلے شویدی. مُّدَّكِرٍ دا صیغه د اسم فاعل ده د باب افتعال نه په اصل کښ مذتکر وو تا په دال سره بدل شوه بیا ذال په دال کښ مدغم کړے شو او په دے تبدیل او ادغام کښ اشاره ده مبالغے ته په نصیحت اخستلو هغه داچه په ځان کښ انقلاب پیدا کړی په عقیده او عمل کښ پښان د تبدیلے د دے صیغے. فَكَيْفَ دا استفهام تقریری دے سره د تعظیم نه. عَذَابِيْ وَنُذُرِ اول دپاره د متکبرینو د قوم نوح علیه السلام او دویم دپاره د روستو خلقو او نذر مصدر دے په معنیٰ د انذار سره دے.

وَلَقَدْ يَسَّرْنَا الْقُرْاٰنَ لِلذِّكْرِ مراد د ذکر نه نصیحت اخستل دی او آسانتیا دا ده چه واقعات د تیر شوو قومونو او رسولانو په آسان لفظونو سره بار بار په مختلفو طریقو سره ذکر کړے شوے دی چه هر ذی لسان (چه په عربۍ ژبه پوهیږی) هغه ترینه نصیحت اخستلے شی او دا آیت ئے د ټولو قصو سره ذکر کړے دے اشاره ده چه هره قصه د دے قصو نه د تذکر دپاره آسانه کړے شویده. نو د الْقُرْاٰنَ نه مراد هره قصه ده چه د قرآن په عبارت سره لوستلے کیږی. یا مراد د ذکر نه حفظ دے ځکه د سلف صالحینو نه نقل دی چه تورات انجیل او زبور سیوا د انبیاء علیهم السلام نه امتیانو په یادو سره نه شو یاد ولے دا د قرآن کریم خصوصیت دے چه واړه لوئے او ناریته زنانه ئے ټول یا بعضے سورتونه او آیاتونه یاد ولے شی. لکه سورة عنکبوت ۴۹ کښ تیر شوے دی.

كَذَّبَتْ عَادٌ فَكَيْفَ كَانَ عَذَابِىْ وَنُذُرِ ﴿١٨﴾

تکذیب کړے وؤ عادیانو نو څه رنګه وؤ عذاب زما او یره ورکول زما۔

إِنَّآ أَرْسَلْنَا عَلَيْهِمْ رِيحًا صَرْصَرًا فِى يَوْمِ

یقیناً را اولیږله مونږ په دوی باندے سیلئ تیزه په ورځ

نَحْسٍ مُّسْتَمِرٍّ ﴿١٩﴾ تَنزِعُ النَّاسَ كَأَنَّهُمْ

سپیره همیشه کښ ۔ را ښکل یئ خلقو لره ګویا دوی دی

أَعْجَازُ نَخْلٍ مُّنقَعِرٍ ﴿٢٠﴾ فَكَيْفَ كَانَ عَذَابِىْ

تنے د کجورو د بیخه وتلی شوے۔ نو څه رنګ وؤ عذاب زما

۱۸ دا دویمه واقعه ده چه قوم عاد دَ هود علیه السّلام تکذیب کړے وؤ هر کله چه دَ تکذیب دَ قوم نوحؑ اوګډه زمانه وه نو هغه تکذیب یئ مکرر ذکر کړے وؤ تو دَ عادیانو تکذیب دَ هغوی په نسبت سره لګه زمانه وه نو مختصر ذکر یئ اوکړیشو۔ اوکذبت یئ مؤنث ذکر کړے ځکه چه قبیله دَ عادیانو مراد ده او اشاره ده دَ دوی توهین او تذلیل ته۔

۱۹ تر ۲۰ دا تفصیل دَ عذاب دَ عادیانو دے او دا سے په سورة حٰم سجده ۱۶ کښ هم تیر شوے دے۔ صَرْصَرًا تیز آواز (شغار) والا یا سخته یخه یا ډیر وخت چلیدونکے سیلئ۔ يَوْمِ هغه اوؤ شپے او اته ورځے دے لکه په سورة الحاقه ۷ کښ دی نو دلته دَ يوم نه مراد جنس ورځ یا مطلق وخت مراد دے۔ نَحْسٍ نحوست یئ په دوی پورے خاص وؤ دَ دوی دَ عذاب دَ وجے نه۔ مُّسْتَمِرٍّ یعنی دَ دے عذاب اثر تر برزخ پورے او بیا حشر پورے همیشه دے۔ او دَ نحوست دَ ورځ دَ شورو (چارشنبه) په باره کښ حدیث صحیح مرفوع متصل ثابت نه دے۔

تَنزِعُ النَّاسَ په دیکښ اشاره ده چه دوی داسے مضبوط وؤ او را ویستلے شول لکه چه او نه په جرړو سره په زمکه کښ کلکه اولاړه وی او بیا دَ جرړو سره دَ بیخ نه را اویستلے شی۔ أَعْجَازُ نَخْلٍ عَجُز دَ څیز دَ بدن لاندے حصے ته ویلے کیږی نو په دے کښ اشاره ده چه دَ هغوی نه سرونه جدا شول او په سیلئ سره والوتل او صرف ویخونه پاتے شول۔ نَخْلٍ دا لفظ اسم جمع ده (رباتے په بل مخ)

وَنُذُرِ ﴿۲۱﴾ وَلَقَدْ يَسَّرْنَا الْقُرْاٰنَ لِلذِّكْرِ فَهَلْ

او ډېرول زما. او يقينًا آسان کړی دے موږ قرآن دَپاره دَ نصيحت نو آيا

مِنْ مُّدَّكِرٍ ﴿۲۲﴾ كَذَّبَتْ ثَمُوْدُ بِالنُّذُرِ ﴿۲۳﴾

شته دے نصيحت قبلوونکے. دروغژن ګڼړلے وو ثمود يانو ويره ورکوونکو لره.

فَقَالُوْٓا اَبَشَرًا مِّنَّا وَاحِدًا نَّتَّبِعُهٗٓ اِنَّآ اِذًا لَّفِيْ

نو دوی اوويل آيا يو بنده لره چه زموږ نه دے تابعداری دَ اوکړو دَ هغه يقينًا موږ به دغه وخت ضرور

ضَلٰلٍ وَّسُعُرٍ ﴿۲۴﴾ ءَاُلْقِيَ الذِّكْرُ عَلَيْهِ مِنْۢ

ګمراهئ او ليونتوب کښ يو. آيا رااليږلے شو يده وحی په دهٔ باندے دَ

بَيْنِنَا بَلْ هُوَ كَذَّابٌ اَشِرٌ ﴿۲۵﴾ سَيَعْلَمُوْنَ

مينځ زموږ نه بلکه دے دے ډير دروغژن لويئ کوونکے. زر دے دوی ته به معلومه شی

مذکر او مؤنث دواړه ئے استعماليږی دَ دے وجے نه دَ دے صفت کله مذکر او کله مؤنث راځی.

ف ۲۱ ف ۲۲ په دے قِصّه کښ ئے اوله جمله مکرره راوړے ده دَپاره دَ اظهار دَ عظمت دَ عذاب دَ دوی يا اول ئے ذکر کړے دے دَ سبب (تکذيب) سره او دويم ئے ذکر کړو روستو دَ تفصيل دَ عذاب نه دَپاره دَ نصيحت اخستلو.

ف ۲۳ دا دريمه قِصّه ده نُذُرِ جمع دَ نذير په معنیٰ دَ رسول نو ځکه چه تکذيب دَ يو رسول په شان دَ تکذيب دَ ټولو رسولانو دے لکه سورة شعراء ف ۱۰۵ کښ تير شويدی يا نذير په معنیٰ دَ مصدر دے هغه انذارات ترے نه مراد دی چه صالح عليه السّلام وخت په وخت دوی ته بيان کړے وو.

ف ۲۴ ف ۲۵ دا تفصيل دَ تکذيب دَ هغوی دے او اووه تعبيرونه دَ تکذيب دی اول دا چه دے بشر دے دَ جنس زموږ نه، دويم دا چه وَاحِدًا يعنی په مقابل کښ ډير خلق دی او دے يو ائے دے، دريم دَ دهٔ تابعداری سبب دَ ضلال دے، څلورم دا چه سبب دَ ليونتوب دے په دنيا کښ او سبب دَ اور دَ جهنم دے په آخرت کښ.

پنځم ءَاُلْقِيَ الذِّكْرُ عَلَيْهِ مِنْۢ بَيْنِنَا يعنی موږ دَ دهٔ نه مالدار او غوره يو نو دے ولے

غَدًا مَّنِ الْكَذَّابُ الْأَشِرُ ﴿۲۶﴾ إِنَّا مُرْسِلُوا

صبا چه څوک دے ډیر دروغژن لوئي کوونکے - یقیناً موږ لیږدونکي یو

النَّاقَةِ فِتْنَةً لَّهُمْ فَارْتَقِبْهُمْ وَاصْطَبِرْ ﴿۲۷﴾

او ښه د پاره د ازمائش د دوی نو انتظار اوکړه د دوی او صبر اوکړه -

وَنَبِّئْهُمْ أَنَّ الْمَاءَ قِسْمَةٌ بَيْنَهُمْ ۚ كُلُّ

او خبر ورکړه دوی لره چه اوبه تقسیم دی د دوی په مینځ کښې هر

شِرْبٍ مُّحْتَضَرٌ ﴿۲۸﴾ فَنَادَوْا صَاحِبَهُمْ فَتَعَاطَىٰ

نمبر د اوبو ته به حاضری کیدلے شي - نو دوی اواز ورکړو خپل ملګري ته نو راواغستله ئې توره

خاص کړے شو په وحی سره شپړم دے کذاب دے اووم دا چه اشر دے اشر تکبر کوونکے او بے پرواهۍ سره خیرے کوونکي ته وائي -

۲۶ دا زجر او تخویف دے غَدًا مراد د دے نه راتلونکے وخت دے یعنی عذاب د دنیا یا ورځ د قیامت -

۲۷ نا ۲۸ دا ذکر د معجزے دے د پاره د اثبات د صدق د صالح علیه السلام فِتْنَةً امتحان دے چه په هغې سره د مصدّق او د مکذّب فرق معلومیږي او دا رنګ تکذیب د دے د سبب د عذاب وی - وَاصْطَبِرْ باب افتعال کښې اشاره ده تاکید د صبر کوولو ته او هرکله چه ارتقاب (انتظار) کول ډیر وخت غواړی او په ډیر وخت کښې د دشمنانو د طرف نه مصیبتونه هم ډیر وی د دے وجې نه ارتقاب نه روستو ئې امر د اصطبار ذکر کړو -

وَنَبِّئْهُمْ دا هم طریقه د فتنے (امتحان) ده او طریقه د دے تقسیم سورة شعراء ۱۵۵ کښې ذکر شویده او د دے تقسیم یو وجه دا وه چه اوبه لږ وے په یو ورځ د اوښې او د نورو حیواناتو ته رسیدلے دویمه وجه دا وه چه د دوی حیوانات به د هغه اوښې نه ویریدل د هغې سره یو ځائے کیدلے نه شو.

كُلُّ شِرْبٍ مُّحْتَضَرٌ دا هم دلالت کوی په دویمه وجه یا نے چه هر یو به خپل نمبر ته حاضری کوی د بل په نمبر کښې شرکت نه شی کولے.

فَعَقَرَ ﴿٢٩﴾ فَكَيْفَ كَانَ عَذَابِي وَنُذُرِ ﴿٣٠﴾ إِنَّا

نو قتل یې کړه (اوښه) نو څه رنګ وو عذاب زما او ویره وَل زما - یقیناً

أَرْسَلْنَا عَلَيْهِمْ صَيْحَةً وَاحِدَةً فَكَانُوا

مونږ رالیږله په دوی باندې چغه یوه نو شول

كَهَشِيمِ الْمُحْتَظِرِ ﴿٣١﴾ وَلَقَدْ يَسَّرْنَا الْقُرْآنَ

پشان د ذرې ذرې شوی شپول جوړوونکی - او یقیناً آسان کړے دے مونږ قرآن

لِلذِّكْرِ فَهَلْ مِنْ مُدَّكِرٍ ﴿٣٢﴾ كَذَّبَتْ قَوْمُ

د پاره د نصیحت آیا شته دے څوک نصیحت قبلوونکے - دروغژن کړے وو قوم

۲۹ نه ۳۰ په دے کښې ذکر د سبب د عذاب د هغوی دے فَنَادَوْا په دے کښې اشاره ده چه دوی په دے سبب کښې شریک وو د یو بل سره یې مدد کوو - صَاحِبَهُمْ او هغه ته اشقیٰ ویلے شوے دے په سورة الشمس ۱۲ کښې او مشهور دے په قُدار څوئي د سالف سره -

فَتَعَاطٰی زړه ورتیا یې اوکړه په نیولو د اوښې سره یا ده او نیوله توره لره د پاره د ټکړے کولو د هغه اوښې۔

فَكَيْفَ د دے نه وړاندے فَعَاقَبْهُمْ پټ دے (یعنی دوی له ما سزا ورکړه) او دا تپوس د پاره د عظمت د عذاب دے۔

۳۱ نه ۳۲ دا تفصیل د عذاب د هغوی دے . كَهَشِيمِ الْمُحْتَظِرِ محتظر د حظیرة نه ماخوذ دے او حظیره هغه ځائې ته ویلے کیږي چه راګیر کړے شي په شپول د غنو یا په دیوال سره او محفوظ وي او اکثر د ګډو بیزو جاړے ته ویلے کیږي نو محتظِر د هغې جوړوونکی ته ویلے شي۔

هَشِيمِ د هشم نه دے او هشم ماتول او ذرّے ذرّے کولو ته ویلے کیږي نو هشیم په معنیٰ د مهشوم سره دے یعنی هغه اوچے غنې د شپول د جاړے چه ګډے بیزے یې په خپلو خپو سره ذرّے ذرّے کړي - په دے کښې اشاره ده چه په دغه چغه د عذاب سره د دوی اړدوکې یوره اوچ شول او بیا د یو بل نه جُدا جُدا شول۔

كَذَّبَتْ قَوْمُ لُوطٍۭ بِالنُّذُرِ ﴿۳۳﴾ إِنَّآ أَرْسَلْنَا عَلَيْهِمْ حَاصِبًا

دَ لوط علیه السلام ویره ورکوونکی ۔ یقیناً را اولیږلو مونږ په دوی باندے باران دَ کانړو

إِلَّآ ءَالَ لُوطٍۭ نَّجَّيْنَٰهُم بِسَحَرٍ ﴿۳۴﴾ نِّعْمَةً مِّنْ

سیوا دَ کورنئ دَ لوط علیه السلام نه ، بچ کړل مونږ هغوی په وخت دَ پیشمنی کښ ، دَ وجے دَ احسان دَ طرف

عِندِنَا ۚ كَذَٰلِكَ نَجْزِى مَن شَكَرَ ﴿۳۵﴾ وَلَقَدْ

زمونږ نه دغه شان بدله ورکوؤ هغه چاته چه شکر کوی ۔ او یقیناً

أَنذَرَهُم بَطْشَتَنَا فَتَمَارَوْا۟ بِالنُّذُرِ ﴿۳۶﴾

ویره ئے ورکړے وه دوی ته دَ نیولو زمونږ نه نو دوی شک اوکړو په ویرولو کښ ۔

وَلَقَدْ رَٰوَدُوهُ عَن ضَيْفِهِۦ فَطَمَسْنَآ أَعْيُنَهُمْ

او یقیناً دوی غوختنے کړے وے دَ هغه نه په باره دَ میلمنو دَ هغه کښ نو ورانے کړے مونږ سترگے دَ هغوی

۳۳ تا ۳۴ ۳۵ دا څلورمه قصه ده دَ پاره دَ تخویف دنیوی په سبب دَ تکذیب سره بِالنُّذُرِ هغه امور مراد دی چه په هغے سره دَ دوی انذار کړے شوے وؤ یا دا جمع دَ نذیر ده مراد دَ دے نه رسولان دی ځکه چه تکذیب دَ یو رسول پشان دَ تکذیب دَ ټولو رسولانو د ے ۔ إِلَّآ ءَالَ لُوطٍ دا استثناء منقطع ده ځکه چه په دوی باندے عذاب نه وؤ نازل شوے او دَ دوی درے حالتونه ذکر کوی اول نجات دویم نعمت دریم جزا دَ شکر کولو بِسَحَرٍ دَ شپے اخری شپږمے حصے ته ویلے شی او دغه وخت دَ برکاتو دے او دائے نکره ذکر کړے ده اشاره ده چه هغه شپه مونږ ته معلوم نه ده نو سحرهم معلوم نه دے ۔ نِّعْمَةً اشاره ده چه دَ دوی نجات دَ الله تعالی دَ طرف نه احسان وؤ په الله تعالی باندے دَ هغے هیڅ زور نه وؤ نو دا دلیل دے چه جزا دَ نیک اعمالو په الله تعالی باندے واجب نه ده لکه چه معتزله دا سے وائی ۔

مَن شَكَرَ مراد دَ شکر نه توحید او پوره اطاعت دے او دا سبب دَ نجات دے په هر زمانه کښ دَ دے وجے نه كَذَٰلِكَ ئے اوفرمائیل ۔

---

۳۶ تا ۳۷ ۳۸ په دے کښ درے حالات دَ منکرینو ذکر کوی ۔ وَلَقَدْ أَنذَرَهُمْ په یکښ دَ فع دَ عذاب دَ منکرینو ده فَتَمَارَوْا دا دَ دوی اول حال دے رپاتے په بل مخ )

فَذُوْقُوْا عَذَابِیْ وَنُذُرِ ﴿۳۷﴾ وَلَقَدْ صَبَّحَهُمْ

نو اوڅکئ عذاب زما او ویرول زما - او یقیناً صبا راغے دَ

بُكْرَةً عَذَابٌ مُّسْتَقِرٌّ ﴿۳۸﴾ فَذُوْقُوْا عَذَابِیْ

وختہ پہ دوی باندے عذاب چہ همیشہ وؤ - نو اوڅکئ عذاب زما

وَنُذُرِ ﴿۳۹﴾ وَلَقَدْ يَسَّرْنَا الْقُرْاٰنَ لِلذِّكْرِ

او ویرول زما - او یقیناً آسان کړے دے مونږ قرآن دَپاره دَ نصیحت

فَهَلْ مِنْ مُّدَّكِرٍ ﴿۴۰﴾ وَلَقَدْ جَآءَ اٰلَ فِرْعَوْنَ

آیا شته څوک نصیحت قبلوؤنکے - او یقیناً راغلے وؤ فرعونیانو ته

اودَ مریۃ نه ماخوذ دے په معنیٰ دَشک کولو یا دَ مِراءٌ نه دے په معنیٰ دَجګړے کولو. وَلَقَدْ رَاوَدُوْهُ دا دویم حال دے. ضَیف اسم جنس دے په معنیٰ دَجمع سره دے او مراد دَ دے نه ملائک دی او دا دَ دوی لوئے خباثت وؤ. ابن کثیر ذکر کړیدی چه جبریل میکائیل او اسرافیل په شکل دَ خائسته ځوانانو کښ راغلل نو شیخ دَلوط علیه السّلام هغه قوم لره خبر ورکړو نو هغوی راغلل دَلوط علیه السلام ته دَهغه میلمنو طلب ئے شورو کړو دَپارہ دَبد فعلے کولو نو هغه دروازه بنده کړه نو دوی اراده اوکړه چه هغه دروازه ماته کړی نو جبریل علیه السّلام طرف دَ وزر دَ دوی په مخونو باندے راکاڼلو نو سترګے دَ دوی ړندے شوے. فَذُوْقُوْا دا خطاب دے دوی ته په ژبه دَ ملائکو سره یا دا امر په معنیٰ دَ اخبار سره دے یعنی اَذَقْتُهُمْ (او څکوؤ ما دوی ته) او تعبیر په لفظ دَ ذوق (څکلو) سره اشارہ ده د رد دَعذاب ته چه دَدوی په ټول بدن باندے احاطه ئے اوکړه وَنُذُرِ مراد دَ دے نه تاوان او ناکاره عاقبت دَ انذار دے. وَلَقَدْ صَبَّحَهُمْ دا دریم حال دَدوی دے هر کله چه صباح راتلونکے تولے ورځے ته هم ویلے کیږی نو بُكْرَةً ئے اوفرمائیل چه صبا وختی تړیته مراد دے. مُّسْتَقِرٌّ دوام او همیش والے دَ عذاب دا دے چه په دغه عذاب سره هلاک شول او ورپسے متصل عذاب دَبرزخ دے او په هغے پسے متصل عذابونه دَجهنم دی چه دَ هغے انتها نیشته.

۳۹ سَتَک اوله جمله (فذوقوا) دَعذاب دَطمس سره متعلق ده او دا جمله دَعذاب مستقر سره متعلق ده چه هغه په ټولو باندے احاطه کوؤنکے عذاب وؤ زمکه

النُّذُرُ ﴿۴۱﴾ كَذَّبُوا بِاٰيٰتِنَا كُلِّهَا فَاَخَذْنٰهُمْ

ویرہ ورکوونکی - دروغژن اوګڼل دوی ایاتونه زمونږ ټول نو اونیول مونږ دوی

اَخْذَ عَزِيْزٍ مُّقْتَدِرٍ ﴿۴۲﴾ اَكُفَّارُكُمْ خَيْرٌ مِّنْ

په نیولو دَ زورا ورذات چه پوره قدرت والا دے - ایا کافران ستاسو دَ زمانے غوره دی

اهول - چغه - کاتړی راودیدل - وَلَقَدْ يَسَّرْنَا اه دَ دے په تکرار کښ اشاره ده چه هره يوه قصّه دَ دے قصّو نه دَ عبرت او نصیحت اخستلو دَ پاره کافی ده او اسانه ده -
فَهَلْ مِنْ مُّدَّكِرٍ کښ اشاره ده چه دلته نصیحت قبول کړی چه په هغے سره دَ عذاب دَ تیر شوی منکرینو نه بچ شی - معلومه شوه چه سبب دَ بچ کیدلو دَ عذاب نه صرف تذکر دَ قرآن دے -
۴۱-۴۲ په دے کښ پنځمه واقعه ذکر کوی دَ هلاکت دَ فرعونیانو په سبب دَ تکذیب سره - په اول ایت کښ په دوی باندے الزام حجت ذکر کوی په رالیږلو دَ منذرینو سره او په دویم ایت کښ سبب دَ عذاب او بیا ئے عذاب ذکر کړے دے - النُّذُرُ مراد تربیه موسٰی او هارون علیهما السلام دی او دَ جمع اطلاق په تثنیه باندے کیدے شی یا مراد دَ دے نه انذارات دی - كَذَّبُوا په واو عاطفه سره نه دے ذکر کړے ځکه چه په اوله جمله او دویمه کښ په مضمون کښ مخالفت دے او په فاء سره هم نه دے ذکر کړے ځکه چه اول سبب دَ دویم نه دے - بِاٰيٰتِنَا كُلِّهَا مراد دَ دے نه هغه نهه معجزات دی چه په سورة اعراف کښ ذکر شویدی - عَزِيْزٍ مُّقْتَدِرٍ په دے کښ اشاره ده چه فرعون دَ ځان دَ پاره دَ عزت او اقتدار دعوىٰ کوله لیکن هغه دعوىٰ باطله وه ځکه چه مغلوب او تباه شو نو معلومه شوه چه عزت والا (غالب) قدرت والا صرف الله تعالىٰ دے -
فائده:- په دے قصه پسے ولقد یسرنا القرآن اه نه دے ذکر کړے ځکه چه دَ مخکنو څلورو قومونو نه هیڅوک نه دی پاتے شوی نو دَ هغوی قصّے صرف تاریخی او ګرځیدلے چه دَ قرآن کریم نه په اسانه سره معلومیږی او دَ قوم دَ موسٰی علیه السّلام نه بنی اسرائیل پاتے وو چه هغوی دَ هلاکت دَ فرعون اقرار کوؤ دَ هغے دَ تفصیل او دَ تذکیر دَ پاره دَ کتاب ضرورت نیشته (والله اَعْلَمُ بِمَا فِی کِتَابِه) -

اُولٰٓئِكُمْ اَمْ لَكُمْ بَرَآءَةٌ فِي الزُّبُرِ ﴿٤٣﴾ اَمْ يَقُولُونَ

دَ دغه تیر شوی کافرانو نه آیا شته تاسو لره بچ والے دَ عذاب نه په کتابونو کښ. بلکه دوی وائی

نَحْنُ جَمِيعٌ مُّنْتَصِرٌ ﴿٤٤﴾ سَيُهْزَمُ الْجَمْعُ

مونږ غټه دله یو بدله اخستونکی. زر دے شکست به ورکړیشی دے دلے ته

وَيُوَلُّونَ الدُّبُرَ ﴿٤٥﴾ بَلِ السَّاعَةُ مَوْعِدُهُمْ

او دوی به اوګرځوی شاګانے. بلکه قیامت وخت مقرر شوے دے دَ دوی

۴۳ تا ۴۵ په دے آیاتونو کښ دَ روستنو منکرینو پنځه حالات ذکر کوی او حاصل دا دے چه په مخکنو قومونو دَ عذابونو ذکر تاسو واوریدلو نو په دے موجود و باندے دَ عذاب دَ راتللو سبب خو شته چه کفر دَ دوی دے لیکن دَ عذاب دَ راتللو نه هیڅ مانع نیشته په اول آیت کښ نفی دَ دوه موانعو ذکر کړے ده یا به دوی دَ مخکنو نه غوره وی یا به په مخکنو کتابونو منزلو کښ دَ دوی دَ پاره براءت (امن دَ عذاب) ذکر کړے شوے وی لیکن دا دواړه خبرے نیشته او استفهام انکاری دے. خَيْرٌ مراد دَ خیریت نه قوت دَ مال او دَ ید نونو او دَ حکومت دے. او په دویم آیت کښ یو مانع په طریقه دَ زجر سره ذکر کړے دے یعنی دوی وائی مونږ غټه جماعت یو او دَ دشمن نه بدله اخستلے شو آیا دَ دے وجے نه په دوی عذاب نشی راتللے نو دَ دے ګمان رد په دریم آیت کښ دے په دوه طریقو سره اول هزیمت (شکست) دَ دوی دویم شاګانے ګرځول یعنی عاجز کیدل دَ مقابلے نه. جَمِيعٌ په معنی دَ جماعت سره دے مبالغه ده په جمع او یوځائے کیدلو کښ دَ یو بل سره چه په هیڅ طریقے سره نه جدا کیږی او دا دَ دوی دعویٰ وه لکه فرعون چه دعویٰ کړے وه سورة شعراء ۵۶ کښ. سَيُهْزَمُ الْجَمْعُ په لفظ دَ الجمع کښ رد دے دَ دوی په دعویٰ باندے یعنی جماعت دے لیکن دَ یو بل سره داسے انضمام نیشته چه دَ یو بل نه نه جدا کیږی بلکه قلوبهم شتّٰی. او په دیکښ تخویف دنیوی دے په طریقه دَ پیشنګوئی سره او دا پیشنګوئی په ورځ دَ بدر کښ رشتیا شوله لکه حدیث بخاری کښ راغلے دی چه نبی صلی الله علیه وسلم په ورځ دَ بدر په قبه (دَ خرمنے خیمه) کښ وو او دعائے اوغوښتله چه یا الله غواړم ستا عهد او وعده اے الله که ته غواړے چه ستا بندګی دِ او نه شی دَ نن نه روستو هیچرے، نو ابوبکر رضی الله عنه دَ هغه لاس اونیوو

وَالسَّاعَةُ أَدْهٰى وَأَمَرُّ ﴿٤٦﴾ إِنَّ الْمُجْرِمِيْنَ فِيْ

او قیامت ډیر هیبت ناک او ډیر ترخ دے . یقیناً مجرمان په

ضَلٰلٍ وَّسُعُرٍ ﴿٤٧﴾ يَوْمَ يُسْحَبُوْنَ فِي النَّارِ عَلٰى

گمراهئ او په اور کښې دی . په هغه ورځ چه را ښکلے کیږی په دوی په اور کښې په

وُجُوْهِهِمْ ۚ ذُوْقُوْا مَسَّ سَقَرَ ﴿٤٨﴾ إِنَّا كُلَّ

مخونو خپلو باندے او ځکئ خوند د سقر (سوځیدلو) . یقیناً مونږ هر

اول ئے پوره دا تاکره اے رسول د الله تعالیٰ او پروا کښې ډیر زور اوکړو نو رسول الله صلی الله علیه وسلم را اوتلو تو پوته ئے وهل (خوشحالیدلو) په زغره کښې او دا ایت ئے اولوستلو سیهزم الجمع ویولون الدبر او ابن عباس رضی الله عنه نه نقل دے چه د دے ایت د نزول نه تر واقعے د بدر پورے اووه کاله فاصله وه .

۴۶ ۴۸ په دے ایاتو کښې تخویف اخروی دے په اول ایت کښې خاص د بدر مشرکانو د پاره او روستو دوه ایاتو کښې د ټولو مجرمانو د پاره او دا تخویف هم په پنځه طریقو سره دے . اَدْهٰى وَاَمَرُّ اسم تفضیل په نسبت د عذاب د بدر دے او دارنګ د دنیا د ټولو مصیبتونو او عذابونو په نسبت سره دا تفضیل دے . اَدْهٰى د داهیه نه ماخوذ دے هغه مصیبت ته ویلے کیږی چه د هغے لرے کولو هیڅ علاج او تدبیر نه وی او فرق د ادهی او امرّ یو دا دے چه د اول اثر باطنی او روحانی دے او د دویم اثر ظاهری او بدنی دے دویم دا دے چه د اَمر اثر په خوراک څښکاک کښې دے او د ادهی اثر په نورو حواسو باندے دے .

اِنَّ الْمُجْرِمِيْنَ ابن کثیر ویلے دی چه دا هر کافر او بدعتی ته شامل دے .

ضَلٰلٍ وَّسُعُرٍ ضلال په دنیا کښې دے او سُعُرٍ جمع د سعیر په اخرت کښې دے یا سعر په معنیٰ د جنون دے نو دواړه په دنیا کښې دی یا ضلال په معنیٰ او ریدل د لارے د جنت نه په اخرت کښې نو دواړه په اخرت کښې دی .

مَسَّ سَقَرَ مسّ سبب د رد دے نو ذکر د سبب مراد مسبب دے سَقَرَ په اصل کښې سوځولو ته ویلے شی او دا نوم د جهنم دے . او ذُوْقُوْا نه مخکښې يُقَالُ لَهُمْ پټ دے .

شَیْءٍ خَلَقْنٰهُ بِقَدَرٍ ﴿۴۹﴾ وَمَآ اَمْرُنَآ اِلَّا وَاحِدَةٌ

خیز پیدا کړیدے مونږ هغه په تقدیر سره۔ او نه دے حال دَ قیامت مګر یوه شیبهٔ ده

۴۹ دَ دے ایت نه تر ۵۳ پورے دَ الله تعالیٰ دَ تصرف او قدرت نه پنځه نمونے ذکر کیږی او دا ټول دَ سورت دَ دعوے سره تعلق لری چه هغه اثبات دَ قیامت دے۔ او دَ دے ایت ربط دَ مخکښ سره دا دے چه ساعت (قیامت) کښ دَ دے منکرینو شک دے نو زر وړ لے نه راځی حاصل دَ جواب دا دے چه الله تعالیٰ دَ دنیا دَ وجود او دَ فنا او دَ قیامت دَ راتللو دَ پاره تقدیر دَ اوقاتو کړے دے دَ هغے نه خلاف نه واقع کیږی۔

اِنَّا كُلَّ شَیْءٍ دَ کل شئ دَ پاره فعل مخکښ پټ دے نو دلالت کوی په خَلَقْ مطلق او عام خلق باندے خلقناه بقدر دا اشاره خلق ته ده چه مقید دے په تقدیر سره نو معلومه شوه چه خلق دَ تقدیر نه غیر دے۔ دا ایت صریح نص دے په مسئله دَ تقدیر کښ ابن کثیر وئیلی دی چه تقدیر علم دَ الله تعالیٰ په ټولو خیزونو باندے مخکښ دَ وجود دَ هغے نه او لیکل دَ هغے دی مخکښ دَ پیدا کیدلو نه او خطیب شربینی وئیلی دی چه قَدَرٍ قضاء او حکم مضبوط او تقسیم محدود او پوره قوت او کلک تدبیر په وخت معلوم او مکان معین دے چه لیکلے شویدی په لوح محفوظ کښ مخکښ دَ واقع کیدلو نه۔ او كُلٌّ فِىْ كِتٰبٍ مُّبِيْنٍ او كُلَّ شَیْءٍ اَحْصَيْنٰهُ فِیْٓ اِمَامٍ مُّبِيْنٍ او داسے نور ایات ښکاره دلیل دے چه تقدیرات لیکلے شویدی او صحیح احادیث په کثرت سره ابن کثیر دَ دے ایت په تفسیر کښ لیکلی دی چه په هغے کښ لیکل دَ مقدراتو ثابت دی نو معلومه شوه چه چا وئیلی دی چه تقدیر صرف دَ علم دَ الله تعالیٰ مخکښ دَ وجود دَ خیزونو نه عبارت دے یا څوک وائی چه تقدیر صرف پیدا کول دی دا اقوال غلط دی او دا رنګ دَ دے ایت په تفسیر کښ عام مفسرینو دَ سلفو صالحینو دَ اقوالو نه ثابت کړیده چه دا ایت نازل شوے دے په رد دَ منکرینو دَ تقدیر کښ چه هغه معتزله وو او په دے زمانه کښ منکرین حدیث (پرویزیان) او دهریان خلق دی۔ لیکن سره دَ تقدیر نه الله تعالیٰ انسانانو ته څه قدرت دَ کسب ورکړیدے او توفیق هم ورکوی چه دَ هغے دَ وجے نه جزاء او سزاء به ورکوی او په دے باندے هم ډیر نصوص دَ قرآن او سنت شاهد دی۔

كَلَمْحٍۭ بِالْبَصَرِ ﴿۵۰﴾ وَلَقَدْ اَهْلَكْنَآ اَشْيَاعَكُمْ

په شان د رپ د سترگې - او یقیناً هلاک کړیدی موږ ملګری ستاسو

فَهَلْ مِنْ مُّدَّكِرٍ ﴿۵۱﴾ وَكُلُّ شَیْءٍ فَعَلُوْهُ

نو آیا شته دے نصیحت قبلوونکے - او هر څیز (کار) چه کوی دا خلق

فِی الزُّبُرِ ﴿۵۲﴾ وَكُلُّ صَغِيْرٍ وَّكَبِيْرٍ مُّسْتَطَرٌ ﴿۵۳﴾

نو په صحیفو د ملائکو کښ دی او هر وړوکے عمل او لوئے عمل لیکلے شویدے -

اِنَّ الْمُتَّقِيْنَ فِیْ جَنّٰتٍ وَّنَهَرٍ ﴿۵۴﴾ فِیْ مَقْعَدِ

یقیناً متقیان به په باغونو او نهرونو کښ وی - په مجلس

سنه دا هم ذکر د تصرف کلی د الله تعالیٰ دے وَمَآ اَمْرُنَآ دا عام دے هر یو کار ته او قیام د قیامت ته هم شامل دے لکه سورة نحل سنه کښ تیر شویدی - اِلَّا وَاحِدَةٌ یعنی امر د یو کار د کیدلو د پاره یو ځل کوؤ بیا بیا تاکید ته حاجت نه وی نو هغه کار په اراده د الله تعالیٰ پسے دا سے زر موجود شی لکه د سترگے رپ نو واحدة نه مراد مرّة واحدة دے یا مراد د دے نه کلمهٔ واحدة ده چه هغه کلمه د کُنْ ده په نورو آیاتونو کښ ذکر شویده -
او په باره د قیام د قیامت کښ خو ډیره مبالغه مقصد وه نو سورة نحل کښ اقرب هم ذکر کړے دے -
سله دا ذکر د بل تصرف الٰهی دے او تخویف دنیوی دے اَشْيَاعَكُمْ په معنی د اشباه یعنی ستاسو په شان تیر شوی کافران او مشرکان - او اتباع مراد اخستل د دے نه خطا دی -
سله سله په دے کښ د الله تعالیٰ دوه تصرفات نور ذکر کړے دی - فَعَلُوْهُ ضمیر ټولو انسانانو ته راجع دے یا اشیاعکم ته راجع دے او د زُبُر نه مراد صحیفے د ملائکو (کراماً کاتبین) دی دا غوره قول دے او صَغِیْرٍ وَّكَبِیْرٍ مراد د دے نه ټول انسانان او عملونه او گناهونه دی بلکه ټول څیزونه دی چه په هر یو کښ لوئے او وړوکے شته دے مُّسْتَطَرٌ لیکلے شوے دے په لوح محفوظ کښ چه کتاب د تقدیر دے د دے نه تقدیر ثابت شو -
سله سله روستو د تخویف او د ذکر د حال د متکرینو نه حال د متقیانو ریاتے په بل مح)

فِي مَقْعَدِ صِدْقٍ عِنْدَ مَلِيكٍ مُّقْتَدِرٍ ﴿۵۵﴾

دَ رشتیاؤ کښې په نیز دَ لوئې بادشاه پوره قدرت والا -

او بشارت دَ هغوی ذکر کوی په پخه طریقو سره. نَهَرٍ اسم جنس دے مراد تری ډیر انهار دی خو ډیر اتصال دَ هغه نهرونو دَ یو بل سره په شان دَ یو نهر دی نو مفرد ئے ذکر کړو یا دَ نهر نه معنیٰ لغوی مراد ده یعنی وسعت او فراخی -

مَقْعَدِ مجلس او مکان ته ویلی کیږی. مجلس صرف دَ کیناستلو ځائے ته ویلے کیږی او مَقْعَدِ هغه ځائے دے چه ډیر وخت پکښ حصاروی نو په دے لفظ کښ مبالغه ده په نسبت دَ لفظ مجلس سره.

صِدْقٍ دا صفت دَ مکان او قول او فعل ټولو دَ پاره استعمالیږی. دلته مراد دَ دے نه جنت دے چه لغو او گناهونه پکښ نیشته او حاصلیږی په سبب دَ صدق سره نو اضافت دَ مسبب دے سبب ته.

عِنْدَ مَلِيكٍ مُّقْتَدِرٍ دا دواړه صیغے دَ مبالغے دی یعنی پوره بادشاهے او پوره تصرف او قدرت والا چه هیڅ قسم نقصان او عجز وریاندے نه راځی او دغه ذات صرف الله تعالیٰ دے.

ختم شو تفسیر دَ سورة قمر په توفیق او فضل دَ الله تعالیٰ سره -

| سُوْرَةُ الرَّحْمٰنِ ۵۵ مَدَنِيَّةٌ ۹۷ | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | اٰيَاتُهَا ۷۸ رُكُوْعَاتُهَا ۳ |
|---|---|---|

اَلرَّحْمٰنُ ۝١ عَلَّمَ الْقُرْاٰنَ ۝٢ خَلَقَ الْاِنْسَانَ ۝٣

| هغه رحمان دے | تعلیم ئے ورکړے دے د قرآن | پیدا کړیدے انسان |
|---|---|---|

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

## سورة الرحمٰن - او بل نوم ئے سورة عروس القرآن دے

ربط د دے د ماقبل سره په ډیرو وجوهو سره دے اوله وجه دا ده چه مخکښ سورت کښ د الله تعالیٰ خاص او عام تصرفات ئے ذکر کړل دلته په هغے باندے تفریع کوی د اثبات رحمانیة د الله تعالیٰ. دویمه وجه دا ده چه په هغه سورت کښ تخویف او بشارت اجمالی ذکر کړے وو نو په دے سورت کښ د هغے دواړو تفصیل دے.
دریمه وجه دا چه په هغه سورت کښ تفسیر د قرآن ئے ذکر کړو نو په دے سورت کښ د هغے وجه ذکر کوی په تعلیم د قرآن او د بیان سره. څلورمه وجه دا ده چه د هغه سورت اختتام وو په ملیک مقتدر سره نو ګویا که سوال اوکړے شو چه هغه څوک دے نو د دے سورت په اول کښ جواب اوشو چه الرحمٰن.
دعویٰ د سورت دا ده. اثبات د رحمانیت د الله تعالیٰ سره د رد د شرک فی البرکات نه په اول او اخر کښ په ذکر د ډیرش لویو نعمتونو دنیوی سره تفصیلاً او په ذکر د لفظ الآء سره یو دیرش کرته اجمالاً. ځکه چه الآء غټو غټو نعمتونو ته ویلے کیږی.
خلاصه د سورت دا ده. اول دعویٰ د سورت ده په الرحمٰن سره په ذکر د دیرش انعاماتو دنیویه باطنی روحانی او ظاهری سره او دا عقلی دلیلونه هم دی او په دیکښ فبأی الآء ربکما تکذبان جمله اته کرته ذکر کړے ده بیا په تخویف اخروی سره ذکر د انعاماتو دے او په هغے کښ دغه جمله اووه ځله ذکر کړے ده بیا په بشارت اخرویه سره ذکر د انعاماتو اخرویو دے او په هغے کښ شپاړس کرته دغه جمله ذکر شوے ده.
فائده اوله دا ده : چه حدیث کښ راغلی دی (د ابن کثیر د کلام نه معلومیږی چه حدیث حسن دے) چه رسول الله صلی الله علیه وسلم (پاتے په بل مخ)

دا سورت پیر یانو ته لوستلے وؤ او هغوی د هرے جملے ( فَبِأَيِّ آلَاءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبَانِ )
سره دا جواب کوؤ چه ( لَا بِشَيْءٍ مِنْ نِعَمِكَ رَبَّنَا نُكَذِّبُ فَلَكَ الْحَمْدُ ) چه په هیڅ
یو نعمت د نعمتونو ستا نه اے ربه زمونږ انکار نه کوؤ مونږ نو ستا د پاره صفتونه د
الوهیت دی. نو بیا ئے صحابه کراموته هم د دے جواب کولو ترغیب ورکړو. د دے
وجے د دے جملے د لوستلو په وخت کښ دا جواب کول سنت دی لیکن په مونځ
کښ هر کله که موقع مومی چه په ژبه ویلے شی نو ښه ده او که نه نو زړه کښ دِے وائی.
دویمه فائده: دا جمله یو دیرش کرته په دے سورت کښ راغلے ده اګرچه د لفظ په
لحاظ سره تکرار دے لیکن د مقصد په لحاظ سره تکرار نیشته ځکه چه په هر
ځائے کښ د دے جملے جدا جدا مقصد دے لکه چه روستو به معلومه شی.
دریمه فائده: دا جمله د نعمتونو سره اته کرته ذکر کړے ده ځکه چه اصول د
نعمتونو اته قسمونه دی. ۱ باطنی ۲ ظاهری ۳ انفسی ۴ آفاقی ۵ بری ۶ بحری
۷ علوی ۸ او سفلی. او دا ټول قسمونه دلته ذکر شوی او دا جمله د تخویف اخروی سره
اُوه ځله ذکر کړے ده اشاره ده چه د جهنم اُوه دروازے دی د ټولو نه د بچ کیدلو
سبب د تکذیب نه ځان ساتل دی او د بشارت سره ئے اولاً اته کرته او ثانیاً هم
اته کرته ذکر کړے ده اشاره ده چه د جنت اته دروازے دی. که اول قسم جنتونه
دی او که دویم قسم دی.
څلورمه فائده: دا سورت د لفظ رحمان تفسیر دے او د دے په وجه سره دا
صفت په الله تعالیٰ پورے داسے خاص دے چه لفظی اطلاق ئے هم په غیر الله باندے
منع دے لکه چه دا تحقیق په تفسیر د سورة فاتحه کښ ډیر مفسرینو ذکر کړے دے
تفسیر ۱ دا خبر دے د مبتدا محذوف یعنی هو الرحمٰن او دا دعوی د سورت
ده. یا الرحمٰن مبتدا ده او روستو آیاتونه ئے خبر دے لیکن هر کله چه الرحمٰن
په نیز د اکثرو قراؤ باندے آیت مستقله دے نو معلومه شوه چه اول قول غوره
دے او دا رد دے په مشرکینو باندے چه هغوی به مسیلمة الکذاب ته
رحمان ویل.
۲ دا ذکر د اول نعمت دے. دا نعمت دینیه روحانیه دے او د ټولو نعمتونو نه
ډیر لوے نعمت دے. او تعلیم د قرآن د الله تعالیٰ د طرف نه نازلول او آسانول
د پاره د لوستلو او نصیحت اخستلو دی.

# عَلَّمَهُ الْبَيَانَ ④ اَلشَّمْسُ وَالْقَمَرُ بِحُسْبَانٍ ⑤

| | |
|---|---|
| خودلے ده هغه ته طریقه دَ مقصد ښکاره کولو۔ نمر | او سپوږمۍ (چلوی) دَ پاره دَ حساب۔ |

(سوال) په قرآن کښ بعض متشابهات شته چه دَ هغې په حقیقت صرف الله تعالیٰ پوهیږی لکه سورة آلعمران کښ تیر شوی دی نو دَ دے ایت سره دَ هغې څه موافقت دے؟ جواب اول دا دے چه دَ چا په اکثره حصّه دَ کتاب باندے علم حاصل شی نو ویلے کیدیشی چه فلان شخص په هغه کتاب باندے عالم دے نو قرآن کریم کښ اکثر محکمات دی دَ هغې علم ته علم دَ قرآن ویلے کیدیشی۔ دویم جواب دا دے چه متشابهات هم الله تعالیٰ دَ لوستلو او دَ معنیٰ په لحاظ سره آسان کړیدی اگر چه کیفیت ئې معلوم نه وی او اشکال په مسلک دَ هغه چا باندے دے چه معنیٰ دَ متشابهاتو مجهوله گنړی۔

ف۳ په دے کښ دوه نعمتونه ذکر دی۔ خَلَقَ په ماقبل باندے عطف نه دے ځکه چه دا کلام متسانف دے جواب دَ سوال دے! چه څوک اهل دَ قرآن دے نو جواب اوشو چه جنس انسان۔ او بله وجه دَ نه عطف کولو دا ده چه دا دَ تعداد دَ نعمتونو په طریقه دے او په تعداد کښ حرف عطف نه راځی۔ الْإِنْسَانَ ظاهر دا ده چه جنس انسان دَ دے نه مراد دے آدم علیه السّلام او نبی صلی الله علیه وسلم پکښ هم داخل دی۔ عَلَّمَهُ الْبَيَانَ مراد دَ بیان نه قوت دَ نطق کیخودل په ژبه او شونډو او مرئ دَ انسان په داسے طریقه چه خپل مقصد ښکاره کولے شی او قرآن هم لوستلے شی او بیانولے شی۔ په انسانی صفتونو او قوّتونو ئې دا صفت په ذکر کولو سره دَ دے وجے نه خاص کړو چه تمیز دَ انسان دَ نورو حیواناتو نه په قوت دَ بیان سره دے او دَ دے وجے نه ئې په عطف سره نه دے راوړے دیکښ اشاره ده چه پیدا کَشْحِ انسان په حقیقت کښ عبارت دے دَ هغه دَ قوةِ ناطقه نه، دَ دے وجے نه ویلے شویدی چه که ژبه نه وی نو انسان نه وی مگر څاروے یا بُت وی۔

ف۵ په دیکښ ئې دوه انعامات ذکر کړے دی۔ تیر شوی انعامات باطنیه سبب دَ نُورِ باطنی وو او دا انعامات ظاهریه سبب دَ نُورِ ظاهری دے۔ بِحُسْبَانٍ دا مصدر دے او په نیز دَ اخفش جمع دَ حساب ده او حسبان په ډیر معنو سره دے حساب کول، اندازه، عذاب، دلته اوله یا دویمه معنیٰ مراد ده او په دیکښ رد دے په هغه مشرکینو باندے چه دَ نمر یا سپوږمۍ عبادت کوی۔

وَّالنَّجْمُ وَالشَّجَرُ يَسْجُدٰنِ ۝ ٦ وَالسَّمَآءَ رَفَعَهَا

او بوټي او ونې سجدے کوی - او آسمان الله تعالیٰ پورته کړیدے

وَوَضَعَ الْمِيْزَانَ ۝ ٧ اَلَّا تَطْغَوْا فِي الْمِيْزَانِ ۝ ٨

او ایښے دہ تله (وېلے دی) چه ډحد نه مه تیریږئ په تول کولو کښې -

سے دا هم دوه انعامات دی - نَجْمُ هغه بوټی دے چه پنډے یاندے ولاړ نه وی او شجر هغه بوټی دے چه په خپلے پنډے تنے باندے ولاړ وی - نو دا دواړه دَ زمکے نعمتونه دی روستو دَ ذکر کولو دَ اسمانی نعمتونو نه - او په النَّجْمُ کښې دویم احتمال هم شته چه ستوری ترینه مراد کړے شي او دا رد دے په هغه مشرکانو چه عبادت دَ ستورو او دَ اونو کوی - يَسْجُدٰنِ سجده کول دَ هر مخلوق دَ هغوی دَ شان سره مطابق وی او دلالت کوی په انقیاد او تابعداری کولو دَ حکمونو دَ الله تعالیٰ - او په دے دواړه آیاتونو کښې تقدیر دَ عبارت دے یعنی بحسبانٍ - يسجدان له ضمیر دَ دواړو الرحمٰن ته راجع دے -

سے دا نور دوه انعامات ذکر کوی - رَفَعَهَا رفع مکانی مراد ده لکه سورة غاشیه سے ۱۸ کښې دی او رفع دَ مرتبے کیدے شي - وَ وَضَعَ الْمِيْزَانَ - مِيْزَانَ په معنیٰ مشهور سره دے یعنی تله - او په معنیٰ دَ عدل - او په معنیٰ دَ شریعت او په معنیٰ دَ قرآن سره هم مفسرینو ذکر کړے دے او میزان دَ آخرت ترینه هم مراد کیدے شي هرکله چه په معنیٰ دَ شریعت او دَ قرآن سره وی نو مناسبت ئے دَ آسمان سره ظاهر دے ځکه چه آسمان محل دَ وحی او دَ شریعت دے او دَ هغے نه نازلیږی - او په نورو معنو سره مناسبت بعید دے هاں مناسبت دَ پاره دا کافی ده چه حکم دَ عدل او دَ وزن کولو دَ څیزونو دَ آسمان نه نازل شوید ے او دَ دے دَ رجے تول اهل عقل دَ دے په حسن باندے اتفاق کوی که عمل پرے کوی او که نه کوی -

سے ۹ په دیکښې په باره دَ میزان کښې درے آداب ذکر کوی اول اَلَّا تَطْغَوْا په دیکښې امر کم پټ دے یا لام اجلیه پټ دے - هرکله چه مراد دَ میزان نه قرآن او شریعت وی نو طغیان په هغے کښې تحریف کول دی او مخالفت کول دَ په طریقه دَ انکار تر دے پورے چه عنادی او دهری کافر شي - او چه دَ میزان نه

وَأَقِيمُوا الْوَزْنَ بِالْقِسْطِ وَلَا تُخْسِرُوا

او برابر ونئ تلل (تول کول) په انصاف سره او کمے مه کوئ په

الْمِيزَانَ ⑨ وَالْأَرْضَ وَضَعَهَا لِلْأَنَامِ ⑩

تول کولو کښ - او زمکه الله تعالیٰ ایخے ده دَ پاره دَ خلقو

فِيهَا فَاكِهَةٌ وَالنَّخْلُ ذَاتُ الْأَكْمَامِ ⑪

په هغے کښ میوے دی او کجورے کسورو والا -

عدل مراد دی نو طغیان په هغے کښ جور او ظلم کول دی او چه مراد دَ میزان نه تله وی نو طغیان په هغے کښ زیاتے کول دی دَ پاره دَ ګټان په دهوکے کولو سره۔

او دویم ادب وَأَقِيمُوا الْوَزْنَ بنا په اول بانـدے وزن دَ دلیلو نو قرآنیه دے دَ پاره دَ اثبات دَ توحید او عمل او عقیده برابر کول په ایاتو دَ قرآن او په شریعت سره۔ او بنا په دویم وزن دَ حقوقو دَ خلقو او دَ خالق دے دَ پاره دَ قائم کولو دَ عدل او بنا په دریم اقامت دَ وزن، په لاس سره تله برابر کول او قسط په زړه سره۔

دریم ادب وَلَا تُخْسِرُوا الْمِيزَانَ۔ نو بنا په اول بانـدے په دلیلو او ایاتِ قرآنیه کښ نقصان کول په طریقه دَ شرک کولو او فسق کولو، دا نقصان کول دی په حقوقو دَ الله تعالیٰ کښ او په طریقه دَ ظلم کولو نو دا نقصان دے په حقوق العباد کښ او بنا په دویم نقصان دَ عدل کښ ظلم کول دی او بنا په دریم باټ کښ (کمے) کول په تللو کښ دَ بل چا دَ پاره او میزان یئ درے کرته په اسم صریح سره ذکر کړے دے وجه نه چه ډیر تاکید ثابت شی او اخر دَ ایاتو نو هم برابر شی او بل دَ دے وجے نه چه دَ اول میزان نه آله دَ تللو یعنی تله مراد ده او دَ دویم نه معنیٰ مصدری مراد ده او دریم په معنیٰ دَ مفعول سره موزون مراد دے۔ فائده: دَ میزان په دے معانیو او درے ادابو سره رعایت کول لوئے نعمت دَ الله تعالیٰ دے چه په هر یو سره ظلمونه او جګړے دَ انسانانو ختمیږی۔

---

سـلـ سلـ په دے ایاتو کښ درے انعامات ذکر کوی وَالْأَرْضَ وَضَعَهَا لِلْأَنَامِ هر کله چه په زمکه کښ ډیرے فائدے وے ما سیوا دَ میوو او کجورو نه دَ دے وجه وضع للانام یئ مستقل ذکر کړے دے (پاتے په بل مخ)

وَالْحَبُّ ذُو الْعَصْفِ وَالرَّيْحَانُ ﴿۱۲﴾ فَبِأَيِّ

او دانے دی بوسو والا او خوشبو یئے دی . نو دَکوم یو

آلَاءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبَانِ ﴿۱۳﴾ خَلَقَ الْإِنسَانَ

دَاحسانونو دَ رب خپل انکار کوئے تاسو دواړه . پیدا کړے دے انسان (آدم علیه السلام)

اَنَام انسانانو او پیریانو دواړو ته شامل دے او ټولو ژوندو سرو ته هم ویلے کیږی ماخوذ دے دَ نوم نه یعنی هغه مخلوق چه اوده کیږی یا ماخوذ دے دَونیم نه په معنیٰ دَ آواز کولو یعنی هغه مخلوق چه آواز والا وی لکه چه خطیب شربینی ذکر کړے دی . وَالنَّخْلُ دانئے دَ فاکهة نه جدا ذکر کړو دَ دوه وجو نه اول دا چه نخل کښ فاکهه او غِذا دواړه دی دویمه دا چه نخل کښ دَ ټولو ونو او میوؤ نه زیاتے فائدے دی لرگے ځانگے او میوه دَ دے دَاول ښکاره کیدلو نه تر پوره پخیدلو پورے چه هغے ته جمار او بیا طلع بیا بسر بیا رطب بیا تمر په مختلف حالتونو کښ ویلے کیږی او مختلف فائدے ورکوی.

اَلْاَکْمَامِ هغه کسوړے دَ لستونړی په شکل سره چه په اول حالت کښ دانے دَکجورے پکښ پټے وی بیا اوچوی نو دانے (غنچکونه) تری نه ښکاره شی یا مراد په دے سره هغه نړے پوستکے دے چه دَاوتے دَکجورے دَ سانگو او دَ تنے په مینځ کښ چاپیره وی. ۱۲ : په دے کښ درے نعمتونه ذکر کړے دی . العَصْفِ هغه پانړے دَ فصلونو چه اوچے شی او څاروی یئے خوری . وَالرَّيْحَانُ رزق او کشمالو او هر بوټے چه خوشبوئی کوی او پانړے دَ بوټی چه دَتنے دَ هغے سره پیوست وی په دے ټولو کښ جدا جدا فائدے دی او دا ټولے معانی دلته مراد کیدے شی .

۱۳ تکرار دَ دے جملے دَ وجے دَ اختلاف دَ نعمتونو نه دے او دَ تاکید دَ الزام دَ حجت دَ پاره دے . او مخاطب په دے سره هغه پیریان او انسانان دی چه کفر او شرک او ناشکری کوی په قرینه دَ تکذبان سره یعنی اے خلقو داسے نعمت او ښایئے چه هغه الله تعالیٰ نه وی پیدا کړی او ستاسو معبودانو پیدا کړے وی یا الله تعالیٰ هغه نعمت په ملګرتیا دَ دے معبودانو سره پیدا کړے وی او دَ هغے وجے نه تاسو هغوی لره شریکان جوړوئ . اَلَاءِ جمع دَ اَلْیُ او اِلْیُ ده په معنیٰ دَ ښکاره نعمت سره دے او په معنیٰ دَ قدرت سره

# مِنْ صَلْصَالٍ كَالْفَخَّارِ ﴿١٤﴾ وَخَلَقَ الْجَآنَّ

ذَکر نګار کوډنګې خټې نه چه پشان دَ ټکرې ده او پیدا کړیدے جان

هم قرطبي راوړے دے او الاءِ جمع راوړلو کښې اشاره ده چه مخکښې چه کوم نعمت ذکر کړے دے هغه په اصل کښې په ډیر نعمتونو باندے مشتمل دے. رَبِّكُمَا په لفظ دَ رب کښې تاکید دے دَ احسان چه الله تعالیٰ پیدا کوونکے دَ ځیزونو دَ پالنے او پالنه کوونکے دے. او خطاب پیریانو او انسانانو دواړو ته دے ځکه چه په لفظ انام کښې دواړه داخل دی او دا رنګ روستو هم صریح خطاب راځی په ايها الثقلان او یا معشر الجن والانس سره. تُكَذِّبَانِ يو تكذيب دا دے چه هغه نعمت نعمت نه ګنړی لکه نزول دَ قرآن دویم دا چه نعمت دَ الله تعالیٰ طرف نه نه ګنړی، دریم دا چه په هغه نعمت پیدا کولو کښې دَ الله تعالیٰ سره شریک ګنړی لکه نعمتونه ظاهریه دنیویه او په عنوان دَ تکذیب سره ئې دَ دے وجے نه ذکر کړے دے چه الله تعالیٰ دا نعمتونه په جمله خبریه صادقه سره ذکر کړے دی او دَ هغې نه منلو ته تکذیب ویلے کیږی.

سکلا دا ذکر دَ خاص نعمت دے روستو دَ عام نه یعنی په سے کښې عام انسان مراد وو او په دے ایت کښې خاص آدم علیه السلام مراد دے او دلیل (نعمت) انفسی دے روستو دَ نعمتونو آفاقیو نه. صَلْصَالٍ هغه خټه چه اوچه شی کړنګ کوی. كَالْفَخَّارِ هغه اوچه خټه چه په اور کښې سره شی هغې ته ټیکرے او کودرے ویلے کیږی حرف دَ کاف کښې اشاره ده چه عین ټیکرے ترینه نه وو جوړ کړے نو معلومه شوه چه دَ اور اثر پکښې نه وو فطرت دَ انسان بالکل جدا دے دَ فطرت دَ جن نه. (تنبیه) ترتیب دَ خلق دَ آدم علیه السلام دا دے چه خاوره دَ زمکے ئې دَ مختلفو رنګونو نه راجمع کړه لکه سورة آل عمران ۵۹ کښې ذکر دی خَلَقَهُ مِنْ تُرَابٍ بیا ئې دا خاوره په اوبو سره واغږله نو خټه ئې جوړه کړه او خالصه ئې او ګرځوله لکه سورة سجدة ۷ او سورة مؤمنون ۱۲ کښې ذکر کړے دی بیا ئې څه وخت پورے پریخودله نو سلیخ پکښې پیدا شو لکه سورة صافات ۱۱ کښې دی بیا ئې ډیر وخت او ساتله نو رنګ ئې بدل شو او بنهٔ خمیره شوه لکه سورة حجر ۲۸ کښې ذکر دی بیا ئې بنهٔ اوچه کړه چه په ګوته ټکولو سره کړنګار کوی او هغې ته صلصال وائی او دا ئې آخری حالت وو لکه چه په دے رپاتے په بل مخ)

مِنْ مَّارِجٍ مِّنْ نَّارٍ ﴿۱۵﴾ فَبِاَیِّ اٰلَآءِ رَبِّکُمَا

دَ خالص لمبې دَ اور نه - نو دَ کوم یو دَ احسانونو دَ رب خپل

تُکَذِّبٰنِ ﴿۱۶﴾ رَبُّ الْمَشْرِقَیْنِ وَرَبُّ الْمَغْرِبَیْنِ ﴿۱۷﴾

انکار کوئے تاسو - رب دَ دوؤ مشرقونو او رب دَ دوؤ مغربونو دے -

فَبِاَیِّ اٰلَآءِ رَبِّکُمَا تُکَذِّبٰنِ ﴿۱۸﴾ مَرَجَ الْبَحْرَیْنِ

نو دَ کوم یو دَ احسانونو دَ رب خپل نه انکار کوئے تاسو ګډ ئے روان کړی دی دوه دریابونه

سورت کښ ذکر دے او دائے اخری حالت دے نو بیا ئے ترینه غوښه هډوکی څرمن جوړ کړه او روح ئے پکښ واچوؤ - نو دَ رحمانیت دَ مناسبت دَ وجے نه په دے سورت کښ اخری حالت ئے ذکر کړو نو معلومه شوه چه انسان دَ درے عناصرو نه جوړ کړے شوے دے خاوره - اوبه او هوا -

سـ۱۵ـ په دے کښ بل خاص نعمت ذکر کوی - الجان ابو الجن دے ظاهر داده چه دے غیر دے دَ ابلیس نه هغه خو ابو الشیاطین دے - مَارِجٍ لمبه دَ اور چه درے رنګونه پکښ بنکاره کیږی سور، زیړ او شین او دَ دے سره لوګے ګډ نه وی او دا په تیز اور کښ وی دَ دے وجے نه سورۃ حجر ۲۷ کښ دے ته نار السموم ویلے شوے دے مِنْ اول دَ پاره دَ ابتداء دے او دویم مِنْ دَ بیان یا دَ تبعیض دَ پاره دے -

سـ۱۶ـ په اٰلَآءِ کښ اشاره ده چه دواړه ایاتونو کښ ډیر نعمتونه ذکر دی - پیدا ئش دَ ادم او دَ نوع دَ انسان او دَ صلصال نه په خاص کیفیت سره پیدا کول او دا سلسله جاری ساتل - او پیدا ئش دَ جان او دَ نوع دَ جن او دَ مارج نه په خاص کیفیت سره پیدا کول - او دَ نسل جاری ساتل - او دَ دواړو په ماده دَ خلقت کښ فرق کول او دَ هغے په وجے سره دَ دوی په اخلاقو او طبیعتونو کښ فرق پیدا کول دا ټول بے شماره نعمتونه دی په انسانانو او په پیریانو دواړو باندے په دے انعاماتو کښ یو هم سبب دَ انکار او دَ شرک نشی کیدلے -

سـ۱۷ سـ۱۸ـ په اول ایت کښ مشرقین او مغربین پیدا کول او دَ هغوی جدا جدا صفات او احوال او دَ هغے ربوبیت (انتظام چلول) ذکر دے او په هغے کښ هم ډیر نعمتونه دَ الله تعالیٰ دی او پنځه امور ذکر شول ، رب دوه مشرقونه او دوه مغربونه -

يَلْتَقِيٰنِ ﴿١٩﴾ بَيْنَهُمَا بَرْزَخٌ لَّا يَبْغِيٰنِ ﴿٢٠﴾

چه یو ځائے چلیږی، په مینځ د دواړو کښ ناآشنا پرده ده چه په یو بل باندے زیاتے نه کوی.

فَبِأَيِّ آلَاءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبَانِ ﴿٢١﴾ يَخْرُجُ

نو د کوم یو د احسانونو د رب خپل انکار کوئے تاسو ۔ را اوځی

مَشْرِقَيْنِ د موسم د اوړی او د ژمی جُدا جُدا مشرق دی او دارنګ مغربونه ئے هم جُدا جُدا وی یا مشرق او مغرب د شمس جُدا دے او د قمر جدا دے یا د ایشیا د ملکونو مشرق او مغرب جُدا دے او د امریکے وغیره مشرق او مغرب جدا دے یعنی په اعتبار د اوقاتو سره چه په دے ملکونو کښ نمر ښکاره شی نو هلته کښ غروب شی او دارنګ برعکس. او په دے نظام کښ د موسمونو تبدیلی او هغه وجه سره د فصلونو پیدا کیدل او د رنړا او د تیرے پیدا کیدل داډیر نعمتونه دی۔ فائده: په دے سورت کښ اکثر خطابات په صیغه د تثنیه سره دی نو د هغے د مناسبت د وجے نه دا دواړه لفظونه هم تثنیه ذکر کړے شول۔

س۱۹ تا ۲۰ روستو د بړی نعمتونو نه بحری انعامات ذکر کوی۔ اَلْبَحْرَيْنِ خوږے اوبه چه د آسمان نه راوریږی او په زمکه کښ ئے د هغے نه نهرونه سیندونه خوړونه جوړ کړیږی او اکثر د هغے نه یو ځائے شی او آخر ئے مالګین سمندر ته اورسوی او دواړه قسمونه ئے یو ځائے روان کړی دی د دے دواړو په مینځ کښ ابتداء نه د زمکے او د آسمان پرده ده او هر چه یو ځائے روان شی نو د دوی په مینځ کښ معنوی قدرتی پرده ده او دا سے تیر شویدی ے په سورة الفرقان س۵۳ کښ او سورة فاطر س۱۲ کښ او په دے تفصیل سره ډیر اقوال د مفسرینو جمع شول او یو قول دا دے چه مراد د دے نه بحیره فارس او روم دے او التقاء د دوی نه دا ده چه اول او آخر ئے یو بل سره یو ځے دی او پردے نه مراد زمکه د حجاز ده لیکن دا قول د سورة فرقان او د سورة فاطر مخالف دے۔ لَّا يَبْغِيَانِ په یو بل باندے بغی نشی کولے د یاره د دے چه او به ئے ګډے و دے نشی او د دواړو نه چه کومے فائدے مقصود دی هغه خرابے نشی او دارنګ دوی په خلقو باندے بغی نشی کولے یعنی په ټوله دُنیا (زمکه) باندے نشی راخوریدلے اګر چه په ډیره زمکه باندے د دوی سطحه اوچته ده۔

س۲۱ آلاء په مخکښ کښ تیر شو ۔ نعمتونه ذکر شول ۔ ل پاتے په بل مخ)

مِنْهُمَا اللُّؤْلُؤُ وَالْمَرْجَانُ ﴿۲۲﴾ فَبِاَيِّ اٰلَاۤءِ

دَ دے دواړو نه ملغلرے غټے او ښـــــــرے ـ نو دَ کوم یو دَ احسانانو دَ رب

رَبِّكُمَا تُكَذِّبٰنِ ﴿۲۳﴾ وَلَهُ الْجَوَارِ الْمُنْشَئٰتُ

خپل انکار کوئے تاسو ـ او خاص دَ الله تعالیٰ په اختیار کښ دی روانے کشتئ چه اوچتے کړے شویوی

فِى الْبَحْرِ كَالْاَعْلَامِ ﴿۲۴﴾ فَبِاَيِّ اٰلَاۤءِ رَبِّكُمَا

په دریاب کښ پشان دَ غـــرونو ـ نو دَ کوم یو دَ احسانونو دَ رب خپـــل

مرج ، دوه قسمه اوبه ، التقا ، برزخ ، عدم بغی او دَ دے نه علاوه په خوږو اوبو کښ بے شماره منافع دَ مخلوق دَ پاره او په بحر مالح (مالګین) کښ هم ډیرے فائدے دی په ډیرو ملکونو کښ دَ دے نه تیل (پټرول) راوځی چه په هغے کښ بیا ډیر منافع دی۔

۲۲ تا ۲۳ په یکښ دوه انعامات ذکرکوی او دَ فائدو دَ بحرین ئے دا فائدهٔ جُدا ذکرکړه ځکه چه دَ لؤلؤ مرجان فائده ے هم دَ عام فوائدو نه جدا دی۔ دَ کانړو دَ خواصو علم لرونکی اکثر دا فائدے پیژنی او دَ دے نه دوا یانے اوکُشتے هم دَ علاج دَ بیمارو دَ پاره جوړیږی۔ مِنْهُمَا دا ضمیر تثنیه پخپله معنی باندے دے یعنی دا لؤلؤ مرجان یقیناً دَ دواړو اوبو دَ اختلاط نه پیدا کیږی مثال ئے دَ نر او دَ مادے دے۔ ابن جریر ویلی دی چه اوبه دَ باران دَ سمندر په کهلاؤ صدفونو کښ را اُوریږی او صدفونه بند شی نو په هغے کښ ملغلرے جوړے شی یوه یا ډیرے او دَ دے مشاهده هم بعض خلقو کړیده۔

او ابوحیان ذکرکړیدی چه په کوم ځایونو کښ دَ خوږو اوبو سیندونه دَ سمندر سره یوځائے کیږی نو تجربه دَ غواصانو (غوپے وهونکی خلقو) سره ثابت ده چه په دغه ځایونو کښ دا ملغلرے ملاویږی۔ دَ دے وجے نه دا توجیه (چه بعض مفسرینو) ذکرکړے ده چه دلته ضمیر تثنیه په معنیٰ دَ مفرد سره دے نو دا بے ضرورته تاویل دے او دا رنګ مخالف دے دَ ظاهر دَ سورة فاطر ۱۲ نه هم۔

۲۴ تا ۲۵ دَ بحری نعمتونه بل لوے نعمت ذکرکوی۔ لَهُ په دے کښ تخصیص دَ تصرف دَ الله تعالیٰ ته اشاره ده دَ پاره دَ اثبات دَ توحید۔ الْجَوَارِ جمع دَ

تُكَذِّبَانِ ﴿۲۵﴾ كُلُّ مَنْ عَلَيْهَا فَانٍ ﴿۲۶﴾

انکار کوئے تاسو ۔ ټول هغه څوک چه په زمکه باندے دی فنا کیدونکی دی ۔

وَّيَبْقٰى وَجْهُ رَبِّكَ ذُو الْجَلٰلِ وَالْاِكْرَامِ ﴿۲۷﴾

او باقی به وی ذات دَ رب ستا چه خاوند دَ لوئے شان او دَ عزت دے ۔

جاریت ده ۔ فلک دَ دے نوم وو مخکښ دَ جوړولو نه لکه وَاصْنَعِ الْفُلْكَ بِاَعْيُنِنَا (هود) بیا روستو دَ چلیدلو دَ دے نه په دریاب کښ او پس دَ نجات نه دَ دے نوم کیخودلے شو سفینه لکه فَاَنْجَيْنَاهُ وَاَصْحَابَ السَّفِيْنَةِ (عنکبوت) او په دریاب کښ دَ گرځیدلو په وخت کښ دَ دے نوم دے جاریت ۔ په اسے وخت کښ مؤمنان او مشرکان دواړه اقرار کوی چه دا په قدرت دَ الله تعالیٰ چلیږی دَ دے وجے نه مشرکانو به هم په اسے وخت چه خطره به پیښه شوه الله تعالیٰ ته اواز کوؤ. او دا حالت دلالت کوی په اِنعام باندے دَ دے وجے نه دَ دے تخصیص ئے اوکړو ۔ الْمُنْشَاٰتُ ماخوذ دے دَ انشاء نه په معنیٰ دَ پیدا کولو یعنی پیدا کړے شوی دی ۔ یا ماخوذ دے دَ نَشُوْءُ نه په معنیٰ دَ ارتفاع یعنی غاړے ئے اوچتے دی پشان دَ غرونو او په دیکښ اشاره ده لویو لویو بحری جهازونو ته او دا اعجاز دَ قران دے ځکه چه دا سے لوے جهازونه خو روستو زمانو کښ پیدا شول او قران دَ هغے ذکر مخکښ کړے وؤ او دا سے په سورة شوریٰ ۳۲ کښ ذکر شوی دی ۔ الآء په دیکښ پنځه نعمتونه ذکر دی ۔ له ، الجوار ، المنشئات، فی البحر ، کالاعلام او نور نعمتونه په دیکښ ډیر دی په دریاب کښ سفر کول دَ پاره دَ تجارتونو ، جهاد او حج کولو او په هغے کښ ښکار کول او دَ ملغلرو وغیره دَ راویستلو دَ پاره کشتئ استعمالول وغیره ۔

ف ۲۶ ۲۷ ۲۸ په دیکښ بله نوعه دَ نعمتونو ذکر کوی چه هغه پنځه دی ۔ فناء دَ کل ، بقاء ، وجه دَ رب ، جلال ، اکرام او په دویم ایت کښ پنځه صفتونه دَ الله تعالیٰ ذکر کړے دی ۔ كُلُّ مَنْ عَلَيْهَا مراد دَ مَنْ نه پیریان او انسانان ټول دی ځکه چه په دے سورت کښ مخاطبه دَ دوی سره ده اګر چه دَ دوی نه علاوه نور مخلوق هم فنا کیږی په دلیل دَ ۸۸ دَ سورة قصص سره په مشهور تفسیر باندے ۔ وَجْهُ رَبِّكَ دَ ابن عباس رضی الله عنهما نه روایت په یل مخ )

فَبِاَيِّ اٰلَآءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبٰنِ ﴿۲۸﴾ يَسْـَٔلُهٗ مَنْ

نو د کوم یو د احسانونو د رب خپل انکار کوئ تاسو. محتاج دی الله تعالیٰ ته هغه څوک

فِى السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ ۭ كُلَّ يَوْمٍ هُوَ فِىْ

چه په اسمانونو او زمکه کښ دی. هر وخت هغه په جدا جدا

شَاْنٍ ﴿۲۹﴾ فَبِاَيِّ اٰلَآءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبٰنِ ﴿۳۰﴾

کار کښ دے. نو د کوم یو د احسانونو د رب خپل انکار کوئ تاسو.

قرطبی نقل کړے دی چه وجه نه مراد ذات او وجود د الله تعالیٰ دے او شیخ الاسلام ابن تیمیه رحمة الله نه نقل دے چه لفظ وجه مشترک دے کله په یو معنیٰ وی او کله په بله معنیٰ سره او ټولے حقیقی معانی دی نو دے ته تاویل د متشابه نه ویلے کیږی. رَبِّكَ (سوال) په سورت کښ نور خطابات د تثنیه دی او دا خطاب ئے په مفرد سره ذکر کړو؟ (جواب) دا دے چه په دیکښ هر یو کس ته خطاب دے د پاره د دے چه هر یو شخص په خپله فنا او د رب تعالیٰ په بقا باندے عقیده اوساتی.

ذُو الْجَلٰلِ مراد د دے نه عظمت او کبریا ده چه مستلزم ده استحقاق د مدح د الله تعالیٰ لره. وَالْاِكْرَامِ دا مستلزم دے بچ کتلو الله تعالیٰ لره د شریک او د هر قسم نقصاناتو نه. اٰلَآءِ په دے کښ ډیر نعمتونه دی. ع۱ فنا چه په سبب د هغے سره مؤمنان نعمتونو د جنت ته وررسیږی. ع۲ او تذکیر په فنا سره او په هغے کښ ډیرے فائدے دی په عبادت کولو باندے ترغیب، د دُنیا محبت د زړه نه ویستل. د تکبر او ریا او حسد وغیره نه بچ کیدل. په مصیبتونو باندے صبر کول. د شرک او کفر او ګناهونو نه ویره کول ع۳ او د ټولو په فنا کښ برابروالے. ع۴ او همیشه بقاء د الله تعالیٰ چه سبب د اطمینان د زړونو دے. ع۵ او جلال او اکرام چه دلیلونه د توحید د ذات او د صفاتو دی.

س۲۹ تا ۳۰ هر کله چه د فنا د مخلوق او بقا د الله تعالیٰ ذکر شوه نو پس دے ایت کښ د الله تعالیٰ استغناء او احتیاج د مخلوقاتو هغه ته ذکر کوی. كُلَّ يَوْمٍ مراد د یوم نه هر وخت دے. شَاْنٍ مراد د دینه هغه کارونه او تصرفات د الوهیت دی چه الله تعالیٰ ئے ښکاره کوی روستو د تقدیر نه دا نه چه اوس ئے شورو کوی او دا مقصد دے د هغه قول چه (شُئُوْنٌ يُبْدِيْهَا لَا شُئُوْنٌ

سَنَفْرُغُ لَكُمْ اَيُّهَ الثَّقَلٰنِ ﴿٣١﴾ فَبِاَيِّ اٰلَآءِ رَبِّكُمَا

زر دے چه اوزګار به شم تاسو ته اے دوه درنو . نو د کوم یو د احسانونو د رب خپل

یَبْتَدِیُهَا) او هغه کارونه ، شپه او ورځ بدلول رابدلول څوک ژوندی کول څوک مړه کول، د چانه غم او مصیبت لرے کول او په چا باندے راوستل د مصیبت او غم ، د چا ګناهونه معاف کول ، چاله عزت ورکول ، چاله ذلت ورکول ، څوک فقیر کول، څوک مالدار کول ، د چا دُعا قبلول ، او د چا رد کول ، چاله ځوئے ورکول ، چاله لور ورکول ، دغه شان بے شماره کارونه چه د هغے نه هیڅ وخت خالی نه وی .

اٰلآء . د ټول مخلوق د حاجاتو د پوره کولو ذات یو دے او هر وخت د هر یو شخص څه کار کول او دا مشتمل دے په بے شماره نعمتونو باندے . او په دے کښ هم پنځه امور ذکر شول . ١ یسئله ، ٢ من فی السموات ، ٣ والارض ٤ کل یوم ، ٥ فی شان . او په دے کښ د دُنیا ټولو نعمتونو ته اشاره اوشوه .

٣١ - ٣٢ د دنیوی نعمتونو نه روستو اخروی حالات ذکر کوی چه په هغے کښ هم نعمتونه دی او وعده (تخویفات رویرے ورکول) هم دی . په دے ایت کښ وعد او وعید دواړه دی کله چه سَنَفْرُغُ معنیٰ دا شی اوشی چه ستاسو ثوابونه یا عذابونه به څه پوره درکړم ، او یا وعید دے صرف کله چه معنیٰ دا وی زر دے چه زه به ستاسو سره حساب اوکړم . او د زجاج نه نقل دے چه فراغ دوه قسمه دے یو قسم د یو شغل نه اوزګاریدل دی دا معنیٰ د الله تعالیٰ په باره کښ صحیح نه ده ځکه چه هغه لره یو کار د بل کار نه نه شی مشغول کولے هغه په یو وخت کښ په هر کار باندے قادر دے دویم قسم فراغ قصد کول او توجه کول دی یو کار ته دلته دا مراد دے .

امام بخاری ذکر کړی دی چه مراد د دے نه حساب کول دی .

الثَّقَلٰنِ مراد د دے نه جن او انس دی د دے نوم (ثقلان) دیرے وجه دی اول دا چه د دوی دواړو شان د نورو حیواناتو نه اوچت دے ځکه چه مکلف دی په عبادت کولو سره دویمه وجه دا چه د دوی د بدنونو بوج په زمکه باندے دیر دے په نسبت د نورو خیزونو سره دریمه وجه دا چه مراد د دے نه ګناهګاران دی چه په بوجونو د ګناه سره درانه دی . اٰلآء په دے کښ نعمتونه دادی . ١ خبر ورکول د پاره د دے چه حساب ته ځان تیار کړی . ٢ په اطاعت باندے وعده د ثواب ورکولو . ٣ او په ګناهونو باندے رپاتے په بل مخ )

تُكَذِّبٰنِ ﴿٣٢﴾ يٰمَعْشَرَ الْجِنِّ وَالْاِنْسِ اِنِ اسْتَطَعْتُمْ

انکار کوئ تاسو. اے ډلے دَ پیریانو او دَ انسانانو که چرے وَس لرئ تاسو

اَنْ تَنْفُذُوْا مِنْ اَقْطَارِ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ

دَ وَتلو دَ غاړو دَ اسمانونو او زمکے نه

فَانْفُذُوْا ؕ لَا تَنْفُذُوْنَ اِلَّا بِسُلْطٰنٍ ﴿٣٣﴾

نو او ځئ . نه شئ وتلے مګر په زور سره .

فَبِاَيِّ اٰلَآءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبٰنِ ﴿٣٤﴾ يُرْسَلُ

نو دَ کوم یو دَ احسانونو دَ رب خپل نه انکار کوئ تاسو . راولیږلے کیدے شی به

سزا ورکول. ٣٢ او دَ دواړو په مینځ په بدله ورکولو کښ فرق کول، ٥ او دَ دے دواړه نوعو (جن او نس) دَ نور مخلوق نه جدائی کول په مکلف کولو او په خطاب کولو سره.
سوال :. لکم جمع ده او ثقلان تثنیه ده ؟
جواب :. اشاره ده چه په دواړو نوعو کښ ډیر ډیر افراد دی . او دا رنګ دوؤ نه هم خطاب دَ جمع صحیح دے .
٣٣ ٣٣ دا خطاب به په آخرت کښ وی . او مراد دا دے چه دَ جزا نه په هیڅ طریقه نشی خلاصیدلے او اسمانونه او زمکه دَ آخرت مراد دی . یا دا خطاب اوس په دنیا کښ دے اشاره ده چه تاسو اوس هم عاجز یئ دَ الله تعالیٰ دَ قضا او تقدیر نه په ټول عالم کښ ، دَ تختیدلو هیڅ طرق نه شئ موندلے او نه دَ دے نه بهر وتلے شئ نو بیا ولے دَ الله تعالیٰ طاعت نه کوئ . اِلَّا بِسُلْطٰنٍ دا استثناء فرضی ده ځکه چه دَ انسانانو او پیریانو دَ پاره په الله تعالیٰ باندے قوت او غلبه ممتنع او محال ده ځکه دَ دے نه روستو وَاَنّٰی لکم پټ دے یا دا چه بِسُلْطٰنٍ کښ باء په معنیٰ دَ لام سره ده یعنی هر طرف ته چه اوځئ نو هلته بادشاهی دَ الله تعالیٰ ده . آلاء دلته مراد دَ نعمتونو نه . دَ ټولو انسانانو او پیریانو په عجز کښ برابرول او تنبیه محذ پروکو او سره دَ لوئے قدرت دَ الله تعالیٰ نه معافی کول . او دوی لره محدود طاقت ورکول دَ پاره دَ دے چه بغاوت او نکړی او نظام دَ دُنیا خراب نشی او ټولو لره دَ اسمان دَ لاندے او دَ زمکے دَ پاسه ځائے ورکول دی .

عَلَيْكُمَا شُوَاظٌ مِّن نَّارٍ وَنُحَاسٌ فَلَا تَنتَصِرَانِ ﴿٣٥﴾

په تاسو باندے به خالص شغله د اور نه او تور لوگے نو بیا له یه نشئ اخستلے تاسو۔

فَبِأَيِّ آلَاءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبَانِ ﴿٣٦﴾ فَإِذَا انشَقَّتِ

نو د کوم یو د احسانونو د رب خپل انکار کوئے تاسو۔ نو کوم وخت چه اوشلیږی

السَّمَاءُ فَكَانَتْ وَرْدَةً كَالدِّهَانِ ﴿٣٧﴾ فَبِأَيِّ آلَاءِ

اسمانونه نو شی به سور گلاب پشان د څرمنے رنگ کړے شوے۔ نو د کوم یو د احسانونو

رَبِّكُمَا تُكَذِّبَانِ ﴿٣٨﴾ فَيَوْمَئِذٍ لَّا يُسْأَلُ عَن

د رب خپل انکار کوئے تاسو۔ نو په دغه ورځ به تپوس نه شی کیدے د

سـ۳۵ ـ۳۶ دا مستقل تخویف اخروی دے د مکذبینو د پاره خاص دے یا متعلق دے د فَانفُذُوا سره یعنی که چرے بالفرض تاسو اوځئ نو رالیږی به په تاسو باندے لمبے د اور یعنی د ټولو طاقت نشئ لرلے۔ شُوَاظٌ شنے لمبے د اور چه لوگے ورسره خلط نه وی او سرو لمبو ته هم ویلے کیږی۔ وَنُحَاسٌ هغه لوگے تور چه لمبے ورسره نه وی او تانبه ویلے کړے شوے ته هم ویلے کیږی۔ آلَاءِ دا تهدید دے محکبن راتللو د عذاب ته او د مطیع او گناهگار جدائی په جزا سزا کښ او د مکذبینو د پاره قسما قسم عذابونه او مؤمنانو لره د هغے نه بچ ساتل او په دُنیا کښ د اور لمبے او لوگی پیدا کول د پاره د یاداشت د اور د آخرت دا ټول نعمتونه دی۔

سـ۳۷ ـ۳۸ دا هم تخویف دے په ذکر د هیبت د قیامت سره۔ او په یکښ جواب د وهم دے هغه دا چه دا اسمانونه او زمکے منع کوونکی دی انسان لره د نفوذ نه که دا لرے کړے شی نو بیا نفوذ کولے شی حاصل د جواب دا دے اسمانونه به اوچوی لیکن بیا هم دا انسانان نفوذ نشی کولے۔ فَإِذَا حرف د فَا دلالت کوی چه تیرشوی آیاتونه د دنیا سره متعلق وو لکه چه مخکښ یو تفسیر ذکر شو او اوس د دُنیا د فنا حال ذکر کوی او د آبادئ وراندل د یره طرف ته شورو کیږی د دے وجے نه ئے اول د اسمان انشقاق ذکر کړو او دا سے په سورة الحاقه سـ۱۶ او سورة فرقان سـ۲۵ او سورة انشقاق سـ کښ هم ذکر کړے دی۔ وَرْدَةً سور گلاب ته ویلے کیږی او سور اس ته هم ویلے کیږی۔ كَالدِّهَانِ سرے څرمنے ته۔ (ر پاتے په بل مخ)

ذَنْۢبِهٖٓ اِنْسٌ وَّلَا جَآنٌّ ﴿۳۹﴾ فَبِاَیِّ اٰلَآءِ رَبِّكُمَا

گناه د بو مجرم د بل انسان او نه د پیری نه ۔ نو د کوم یو د احسانونو د رب خپل

تُكَذِّبٰنِ ﴿۴۰﴾ یُعْرَفُ الْمُجْرِمُوْنَ بِسِیْمٰهُمْ

انکار کوئ تاسو ۔ پیژندلے کیدلے به شی مجرمان په نښو د هغوی سره

ویلے شی یا جمع د دُهن ده تیلو ته ویلے شی یعنی اسمانونه به سره شی پشان د گلاب او ویلے به شی او بهیږی به پشان د تیلو ۔ او سور کیدل د اسمان به د دے وجے نه وی چه اور د جهنم ته به نزدے کړے شی او ماوردی ویلے دی چه اصلی رنګ د اسمان سور دے او د لرے والی د وجے نه شین ښکاره کیږی او چه نزدے شی نو په اصل رنګ به سور ښکاره کیږی ۔ الآء ۔ تنبیه په فنا سره ۔ او د اسمانونو تر او سه پورے د فنا نه بچ ساتل او بیا د قدرت په مظاهرے سره د هغه رنګ او حالت بدلول دا تذکره ټول نعمتونه دی ۔

۳۹ تا ۴۲ دا هم تخویف اخروی دے حرف د فا دلالت کوی چه د اسمان د حالت بدلولو نه روستو به قیامت او ورځ د حساب شورو شی ۔

ابن کثیر ویلے دی چه مراد د دے نه د عذرونو دروازه بندول دی لکه په سورة مرسلات ۳۶ کښ دی یعنی د لایسئل نه مراد د عذر کولو تپوس دے یا مراد دا دے چه په اول وخت د حشر او دا رنګ په اورکښ دننه د دوی د ګناهونو تپوس نه نه کیږی بلکه په موقف د حساب کښ تپوس کیدلے شی ۔

او ابوالعالیه نه نقل دے چه د یو مجرم د ګناهونو تپوس به د بل مجرم نه نشی کیدے او اکثر مفسرینو ویلے دی چه د استعلام (یعنی د ځان خبرولو) د پاره تپوس نیشته بلکه د زورنے د پاره به تپوس نه وی او د ابن قیم رحمه الله نه نقل دے چه د ګناه د کولو تپوس به نه وی بلکه د هغے وجه او علت او د کیفیت د عمل تپوس به کیږی پدے توجیهاتو سره د ایت د فلنسئلن الذین ارسل الیهم (اعراف ۶) سره تعارض دفع کیږی او دا سے سورة قصص ۷۸ کښ هم تیر شوی دی ۔

الآء نعمتونه دا دی چه تپوس په مجرم پورے خاص دے ۔ او د غیر مجرم تپوس صرف عرض دے او بیا معاف کول دی ۔ او په تپوس کولو کښ مقصد تمییز د مجرم او د غیر مجرم دے ۔ او پدے تپوس کښ مقصد الزام دے په مجرم باندے او اظهار د صفت د عدل د الله تعالیٰ دے ۔

فَيُؤْخَذُ بِالنَّوَاصِي وَالْأَقْدَامِ ﴿٤١﴾ فَبِأَيِّ آلَاءِ

نو نیولے کیدے بہ شی دَ تندو نه او دَ خپو نه ۔ نو دَ کوم یو دَ احسانا تو

رَبِّكُمَا تُكَذِّبَانِ ﴿٤٢﴾ هَٰذِهِ جَهَنَّمُ الَّتِي

دَ رب خپل انکار کوئے تاسو ۔ دا جهنم دے هغه جهنم چه

يُكَذِّبُ بِهَا الْمُجْرِمُونَ ﴿٤٣﴾ يَطُوفُونَ بَيْنَهَا

انکار کوو دَ دے نه مجرمانو ۔ ځی راځی به دوی په مینځ دَ دے

س۴۱ س۴۲ دا تخویف اخروی دے یعنی روستو دَ سوال (حساب) نه سزا شورو کیږی۔ بِسِيمَاهُمْ یعنی هغه گناهونه به مصوّر شی دَ مجرمانو په بدنونو باندے او دا رنگ توروالے دَ مخونو لکه سورة آل عمران س۱۰۶ یونس س۲۷ ملک س۲۷ کښ او زرقت دَ سترگو لکه چه سورة طٰه س۱۰۲ کښ او روند کونړ گونگے او په مخو نتو باندے روانیدل لکه سورة اسراء س۹۷ او فرقان س۳۴ کښ دی دا ټولے دَ دوی نښے به وی۔

فَيُؤْخَذُ بِالنَّوَاصِي دا جمع دَ ناصیۃ ده هغه ویښته چه په تندی باندے اوېزان وی او دا سے ویښته سا تل طریقه دَ مجرمانو ده دَ سنت دَ نبی صلی الله علیه وسلّم نه مخالف ده او دا سے په سورة علق س۱۵ کښ دی ۔ دا نیول به زبانیه ملائک کوی یا به ناصیه او قدمونه وریو ځائے کړی او یو ملک به ئے اونیسی او جهنم ته به ئے اوغورځوی یا دا چه یو ملک به ئے دَ ناصیه نه اونیسی او بل ملک به ئے دَ قدمونو نه اونیسی لکه سورة ق س۲۴ کښ تثنیه تیره شویده کله چه هغه پخپله معنیٰ مراد کړے شی۔

آلاء نعمتونه دا دی چه دَ مجرمانو نښے ئے دَ غیر مجرمانو نه جدا کړے دی ۔ او طریقه دَ عذاب دَ مجرمانو ئے سخته کړے ده ۔ او دَ امتیاز دَ نښو دَ وجے نه ملائک به غیر مجرم لره نه نیسی۔

س۴۳ س۴۴ س۴۵ هر کله چه ذکر شو نیول دَ مجرمانو دَ سر او خپو نه نو اوس دَ کر کوی محل دَ گذارولو دَ هغه چه جهنم دے ۔ او يُقَالُ دَ دے نه مخکښ مراد دے يُكَذِّبُ بِهَا دا حکایت دَ حال ماضیه دے لیکن په مضارع راوړلو کښ اشاره ده که دوی له بیا مهلت ورکړے شی نو ائنده به هم تکذیب کوی۔ (باقی په بل مخ)

وَبَيْنَ حَمِيمٍ اٰنٍ ﴿٤٤﴾ فَبِاَيِّ اٰلَآءِ رَبِّكُمَا

او په مینځ د خوټکیدلو اوبو سختو ګرمو کښې۔ نو د کوم یو د احسانونو د رب خپل نه

تُكَذِّبٰنِ ﴿٤٥﴾ وَلِمَنْ خَافَ مَقَامَ رَبِّهٖ جَنَّتٰنِ ﴿٤٦﴾

انکار کوئ تاسو۔ او هغه چا د پاره چه ویریږی د پیش کیدلو د رب خپل نه قسما قسم باغونه دی۔

---

بَيْنَهَا وَبَيْنَ حَمِيمٍ یعنی جهنم چې طبقه د اور ده او ځائے د حمیم طبقه د خوراك څښاك ده د دے دواړو په مینځ کښې ډیر ځی راځی یعنی د اوبو ته به تږه مړیږی نو بیا بیا به ځی راځی او ارام به ورته نه ملاویږی۔ اٰنٍ په دیکښې درے توجیه دی اوّل دا چه په معنیٰ د هغه اوبو چه ډیرے سختے ګرمے به وی چه هغه به پشان د مهل ګرځیدلے وی دویمه وجه دا په معنیٰ د پخے کړے شوے په اور باندے ځکه چه اٰنِیْ پخولو ته ویلے کیږی۔ د کوم وخت نه چه جهنم پیدا کړے شویدے د هغه وخت نه دا اوبه په اور باندے پخیږی۔ دریمه وجه اٰنٍ په معنیٰ د حاضر دے یعنی دا اوبه به جهنم والو ته هر وخت حاضرے وی۔

اٰلَآءِ په دے تخویف کښې نعمتونه دا دی۔ چه په دے سره څوک نصیحت واخلی تو د شرك او کفر او ګناهونو نه ځان بچ کوی۔ او دارنګ د دے په وجه سره په طاعت کولو کښې رغبت کوی۔ او دارنګ په دیکښې ایمان بالغیب دے۔ او په دیکښې تمیز دے په مینځ د مجرمانو او غیر مجرمانو کښې او دا عدل د الله تعالیٰ دے۔ او اشاره ده چه اور د دنیا او اوبه د دنیا لوے نعمت دے لیکن د ناشکرئ کولو په وجه سره په جهنم کښې دغه نعمتونه په شکل د عذاب کښې دی۔

٤٦ ـ ٤٧ په دیکښې بشارت دے روستو د ذکر د تخویف اخروی نه او دا ټول د جنت نعمتونه ذکر کوی۔ دوه قسمه جنتونه ذکر کوی ځکه چه د رب العزت نه خوف کوونکی دوه قسمه مؤمنان دی یو السابقون او دویم اصحاب الیمین او هر قسم جنت سره یوؤلس یوؤلس نعمتونه ئے ذکر کړی دی۔

وَلِمَنْ خَافَ په تقدیم د لِمَنْ کښې اشاره ده چه جنتونه بغیر د خوفِ الٰهی نه نشی حاصلیدلے او دا سے په سورة ابراهیم ١٤ او سورة نازعات ٤٠ کښې هم ذکر دی۔ او دا خوف حاصلیږی په اطاعت کولو سره فرائض ادا کول او د ګناهونو نه اجتناب کول او ډیر استغفار او توبه کول۔ او لفظ د مَنْ عام دے

فَبِأَيِّ آلَاءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبَانِ ﴿٤٧﴾ ذَوَاتَا أَفْنَانٍ ﴿٤٨﴾

تو د کوم یو د احسانونو د رب خپل انکار کوئ تاسو ، ډیرو ښانګو والا به وی

فَبِأَيِّ آلَاءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبَانِ ﴿٤٩﴾ فِيهِمَا عَيْنَانِ

تو د کوم یو د احسانونو د رب خپل نه انکار کوئ تاسو ۔ په هغې کښ قسما قسم چینے دی

جن او انس دواړو ته شامل دے او په دے سورت کښ دواړه مخاطب دی نو ابن کثیر ذکر کوی چه دا دلیل دے چه پیریان مؤمنان به هم جنت ته داخلیږی پشان د انسانانو ۔ مَقَامَ رَبِّهٖ مقام په زور د میم سره مصدر میمی او ظرف دواړه راځی نو چه مصدر میمی وی نو یا مضاف دے فاعل ته یا مفعول ته او چه رَبِّهٖ فاعل شی نو مراد د قیام د رب نه علم او قدرت او تدبیر د هغه دے مخلوق لره لکه سوره رعد ۳۳ کښ دی او که مفعول شی نو په تقدیر د عند یا بین یدی سره دے یعنی قِیَامَهٗ عند ربه یا بین یدی ربه یعنی اودریدل د بنده د رب العزت په مخکښ په ورځ د قیامت او که صیغه د ظرف مکان شی نو اضافت په تقدیر د لام سره دے یعنی ځائے د اودریدلو د بنده چه د رب د پاره دے او هغه پورے خاص دے ۔ جَنَّتَانِ په دے تثنیه کښ ډیر اقوال مفسرینو ذکر کړے دی لیکن غوره دا ده چه دا تثنیه د تکرار او د کثرت د پاره ده یعنی ډیر جنتونه دی د یو قسم نه او د دے وجے نه روستو فیهن ضمیر د جمع ذکر کړے دے ۔ او هر یو جنت په بے شماره نعمتونو باندے مشتمل دے چه په هغې باندے لفظ آلاء دلالت کوی۔
۴۸ ۴۹ د دے ایت نه صفتونه د دے جنتونو ذکر کوی ۔ دا اول صفت دے
اَفْنَانٍ جمع د فنن ده ښانګو ته وئیلے کیږی یا جمع د فن ده رنګ او نوع او قسم ته وئیلے کیږی په دویم احتمال سره معنیٰ دا چه قسما قسم نعمتونه پکښ دی ۔
آلاء هر کله چه دغه ښاخې په پاڼو او په میوؤ او سورو او په زینت او په ډیرو فائدو باندے مشتمل دی د دے وجے نه هغې ته ئے په آلاء سره اشاره اوکړه ۔

تَجْرِيٰنِ ﴿۵۰﴾ فَبِاَيِّ اٰلَآءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبٰنِ ﴿۵۱﴾

چه بهیږی په - نو د کوم یو د احسانونو د رب خپل ته انکار کوئے تاسو -

فِيْهِمَا مِنْ كُلِّ فَاكِهَةٍ زَوْجٰنِ ﴿۵۲﴾ فَبِاَيِّ اٰلَآءِ

په دوی کښ به د هرے میوے نه ډیر قسمونه وی - نو د کوم یو د احسانونو

رَبِّكُمَا تُكَذِّبٰنِ ﴿۵۳﴾ مُتَّكِـِٕيْنَ عَلٰى فُرُشٍ

د رب خپل ته انکار کوئے تاسو - ارام به کوی دوی په بسترو باندے

بَطَآئِنُهَا مِنْ اِسْتَبْرَقٍ ۭ وَجَنَا الْجَنَّتَيْنِ

چه استرونه د هغے به د غټو ریښمو نه وی او میوے راټولول د دے باغونو

نه ۵۰ ۵۱ په دے کښ دویم صفت ذکر کوی - د حسن بصری په روایت سره یو چینه د تسنیم او بله د سلسبیل ده یا دلته هم تثنیه د پاره د تکثیر ده -

تَجْرِيٰنِ یعنی د جنت په ټولو مکانونو او بوټو او باغونو کښ به همیشه بهیږی او هیڅرے به نه کمیږی او نه به اوچیږی او په دے کښ بے شماره نعمتونه دی چه هغے ته ئے په لفظ اٰلَآءِ سره اشاره اوکړه -

۵۲ ۵۳ په دے کښ دریم صفت ذکر کوی -

زَوْجٰنِ بعض مفسرینو د دے مثال په رطب او یابس سره ذکر کړے دے او بعض صرف په دوه قسمونو پورے تخصیص کړے دے لیکن صحیح دا ده چه تثنیه کښ معنیٰ د کثرت ده او مراد د دے نه بے شماره قسمونه دی یعنی په یو قسم میوه (لکه انګور) کښ به بے شماره قسمونه وی، دا رنګ په انار او کجورو وغیره کښ چه د هغه قسمونو شمار او کیفیت باندے یو الله تعالیٰ علم لری -

(مَا لَا عَيْنٌ رَأَتْ وَلَا اُذُنٌ سَمِعَتْ وَلَا خَطَرَ عَلٰى قَلْبِ بَشَرٍ)

د دے وجے نه لفظ اٰلَآءِ ئے ورپسے ذکر کړے دے -

دَانٍ ﴿۵۴﴾ فَبِاَيِّ اٰلَآءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبٰنِ ﴿۵۵﴾ فِيْهِنَّ

نزدے دی۔ نو دَ کوم یو دَ احسانونو دَ رب خپل نه انکار کوئے تاسو۔ په دے باغونو کښ به

قٰصِرٰتُ الطَّرْفِ لَمْ يَطْمِثْهُنَّ اِنْسٌ قَبْلَهُمْ

(زنانه) ښکته کوونکی وی سترگے خپلے نه به وی رسیدلے دوی ته هیڅ انسان مخکښ کددوی نه

وَلَا جَآنٌّ ﴿۵۶﴾ فَبِاَيِّ اٰلَآءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبٰنِ ﴿۵۷﴾

او نه هیڅ پیرے۔ نو دَ کوم یو دَ احسانونو دَ رب خپل نه انکار کوئے تاسو۔

۵۴ تا ۵۵ په دے کښ څلورم نعمت (مُتَّكِـِٕيْنَ) او پنځم (عَلٰى فُرُشٍ) او شپږم (بَطَآئِنُهَا) او اُووم (وَجَنَا الْجَنَّتَيْنِ) ذکر کړے دے۔ هرکله چه یو خوړونکی له خوراك دَ میووُ پوره مزه هغه وخت ورکوی چه تکیه ئے په ښائسته فراشونو باندے وهلے وی دَ دے وجے نه په طریقه دَ حال سره ئے متکئین ذکر کړو۔ اِتِّكَاء دَ روغ رمټ او بے غمه شخص حالت وی په ډډه وهلو یا په پرلت وهلو سره۔ بَطَآئِنُهَا دَ دے مقابل ظهائر دی او هغه ئے ذکر نه کړو یا خو هغه دَ سندس نه جوړ دی لکه سورة کهف ۳۱ او سورة دخان ۵۳ کښ اشاره ده یا دا چه بطائن (استرونه) چه عادةً په دنیا کښ دَ معمولی کپړے نه جوړیږی لیکن په جنت کښ به هغه دَ اعلیٰ کپړے نه وی چه استبرق دے نو دَ ظهائرو علم دَ الله تعالیٰ سره دے هغه دَ انسان په علم کښ اوس نشی راتلے۔ وَجَنَا الْجَنَّتَيْنِ۔ جَنٰی یا مصدر سره دے راټولول دَ میووُ یا مبنی للمفعول دے یعنی میوے راټولے کړے شوے۔

دَانٍ یعنی هغه اونه او غنچکونه او میوے دَ هغے به جنتی شخص ته رانزدے کیږی لکه سورة الحاقه ۲۳ او سورة الدهر ۱۴ کښ دی او دَ اِتکاء سره ئے یو ځائے ذکر کړو دَ دے دَ پاره چه څوك وهم اونکړی چه میوے راغستلو سره به دوی ته تکلیف وی ورپسے په ورځی او تکیه به تریته پاتے شی لکه دَ دنیا حال چه دے نو دا وهم ئے دفع کړو۔ او دے ډیرو نعمتونو ته ئے په اٰلَآءِ سره اشاره اوکړه۔

۵۶ تا ۵۷ په دے کښ اتم او نهم نعمت ذکر کوی۔ فِيْهِنَّ دا ضمیر راجع دے جنتان ته ځکه چه مراد په هغے سره جمع ده لکه چه مخکښ بیان شو او بعض مفسرینو دا ضمیر راجع کړے دے فرش ته لیکن هغه مناسب نه دے (پاتے په بل مخ)

كَأَنَّهُنَّ الْيَاقُوتُ وَالْمَرْجَانُ ﴿٥٨﴾ فَبِأَيِّ آلَاءِ

گویا که دوی دی یاقوت (په رنګ کښې) او مرجان (په صفائي کښې) - نو ذکوم یو دَ احسانونو

ځکه چه هیڅ سره علی پکار دو - قَاصِرَاتُ الطَّرْفِ دَ دے موصوف حذف دے یعنی نِسَاءٌ یَاحُوْرٌ لیکن هر کله چه عادت دا دے چه دَ لویو خلقو زنانه په صفاتو سره ذکر کیدے شی دَ دے وجے نه دلته ئې هم صفات ذکر کړل - قَاصِرَاتٌ یعنی په غیر دَ خپلو خاوندانو نه په بل چا ته نظر نه کوئوی دَ ډیرے حیا دَ وجے نه او دا خائسته صفت دَ زنانو دے او الطَّرْفِ ئې ذکر کړو العین ئې ذکر نه کړو اشاره ده چه طرف دَ نظر بل چا ته نه اړوی نو ټوله سترګه خو په طریقه اولی سره نه اړوی.
لَمْ يَطْمِثْهُنَّ. طمث په اصل کښې هغه دم (وینے) ته ویلے شی چه په وخت دَ جماع دَ پکرے سره ښکاره کیږی نو مراد دا دے چه دوی به پکرے وی دَ دے خاوندانو نه وړاندے هیڅ پیری او انسان دَ دوی سره جماع نه ده کړے او اشاره ده چه هر وخت دَ جماع کولو کښې به دوی پکرے وی.
او ابن کثیر ویلے دی دا دلیل دے چه پیریان به هم جنت ته داخلیږی او دَ هغوی دَ پاره دَ جنس دَ هغوی نه بیبیانے دی ځکه که دَ دوی جنت ته داخلیدل نه وے نو دَ دوی دَ جماع دَ کولو بیا هیڅ فائده نیشته.
او قرطبی ویلے دی چه دا دلالت کوی چه جنات دَ انسانانو دَ زنانو سره هم جماع کولے شی لکه بعض احادیث ظاهرة هم پدے باندے دلالت کوی - او دا صفتونه حورو دَ جنت او دنیوی زنانو (چه جنت ته داخلے شی) ته شامل دی - او پدیکښې هم بے شماره نعمتونه دی دَ دے وجے نه آلاء ئې ذکر کړے دے.
۵۸ ۵۹ پدے تشبیه کښې دوه نعمتونو ته اشاره ده (لسم او یوؤلسم) یاقوت قیمتی جوهر دے ډیر صفا او سور رنګ والا او ویلے شوی دی چه هغه په اور سره نه سوزیګی - او مرجان ترے ملغلرے چه ډیرے سپینے او صفا وی.
نو پدیکښې مراد ډیر خائست او صفائي دَ هغوی ده دَ یاقوت سره تشبیه په صفائي کښې او دَ مرجان سره په سپین والی کښې ده یا دَ یاقوت سره په سور والی او دَ مرجان سره مشابهت په صفا والی کښې دے - او په دے باره کښې صحیح احادیث ابن کثیر او شربینی نقل کړے دی - او پدیکښې ډیر نعمتونو ته اشاره ده - دَ هغوی خائست - او صفائي ، او حیا او ادب ، او دَ خاوندانو خوشحالی په هغوی

رَبِّكُمَا تُكَذِّبٰنِ ﴿٥٩﴾ هَلْ جَزَآءُ الْاِحْسَانِ

دَ رب خپل نه انکار کوئ تاسو ۔ نه دَه بدله دَ توحید ( اخلاص )

اِلَّا الْاِحْسَانُ ﴿٦٠﴾ فَبِاَيِّ اٰلَآءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبٰنِ ﴿٦١﴾

مګر جنت دے ۔ نو دَ کوم یو دَ احسانونو دَ رب خپل نه انکار کوئ تاسو ۔

وَمِنْ دُوْنِهِمَا جَنَّتٰنِ ﴿٦٢﴾ فَبِاَيِّ اٰلَآءِ رَبِّكُمَا

او سیوا دَ دوی نه نور قسما قسم باغونه دی ۔ نو دَ کوم یو دَ احسانونو دَ رب خپل نه

سره۔ او په هغوی په عمر تیر بیدلو سره بدلی نه راتلل وغیره دَ دے وجے نه لفظ دَ آلاء ئے ذکر کړو۔

۶۰ ۶۱ په دیکښ ذکر دَ علت دَ ماقبل نعمتونو دے په اول لفظ چه احسان دے دَ انس او جن دَ طرف نه او دارنګ په دیکښ په دویم لفظ احسان کښ تو روبے شماره نعمتونو او احسانانو دَ الله تعالیٰ ته اشاره ده ۔ ځکه چه په روایت دَ ابن عباس رضی الله عنهما کښ راغلے دی چه نیشته جزاء دَ هغه چاچه لا اله الا الله وائی او عمل کوی په سنت دَ نبی صلی الله علیه وسلم مګر جنت دے دا خطیب شربینی ذکر کړے دے او فراء په تفسیر معالم التنزیل کښ په سند سره مرفوع حدیث راوړے دے چه رسول الله صلی الله علیه وسلم دا آیت اولوستلو بیا ئے تپوس اوکړو چه تاسو پوهیږئ چه ستا سو رب څه فرمائیلے دی دوی اُویل الله تعالیٰ او رسول بنهٔ پوهه دے نو هغه اوفرمائیل چه الله تعالیٰ فرمائیلے دی چه نیشته جزاء دَ هغه چاچه ما انعام کړے دے په هغه باندے په توحید سره مګر جنت دے۔ او لفظ آلاء کښ هغه نعمتونو ته اشاره ده چه دویم لفظ احسان په هغے باندے دلالت کوی۔

۶۲ ۶۳ دَ دے آیت نه دویم قسم جنتونو ته په بشارت کښ ذکر کوی دَ دویم قسم مؤمنانو دَ پاره او دَ دے هم یؤلس صفات راوړی۔ وَمِنْ دُوْنِهِمَا لفظ دَ دُوْنِ بیکاره دلالت کوی چه دا جنتونه دَ مخکنو نه په فضیلت او درجاتو کښ کم دی ۔ او ابن کثیر دا دَ ابن عباس رضی الله عنهما نه نقل کړے دے او وجه دَ کم والی به روستو ذکر کړے شی انشاء الله تعالیٰ ۔ او حکیم ترمذی او بعض ( باقی په بل مخ )

تُكَذِّبٰنِ ﴿۶۳﴾ مُدْهَآمَّتٰنِ ﴿۶۴﴾ فَبِاَیِّ اٰلَآءِ رَبِّكُمَا

انکار کوئے تاسو۔ تک شنه په وی ۔ نو ذکوم یو دَ احسانونو دَ رب خپل ته

تُكَذِّبٰنِ ﴿۶۵﴾ فِیْهِمَا عَیْنٰنِ نَضَّاخَتٰنِ ﴿۶۶﴾

انکار کوئے تاسو۔ په دے کښې چینے دی فوارے وهونکے په وی (او به راویستونکی په زور سره)

فَبِاَیِّ اٰلَآءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبٰنِ ﴿۶۷﴾ فِیْهِمَا

نو ذکوم یو دَ احسانونو دَ رب خپل ته انکار کوئے تاسو۔ په دے کښې

علماؤ نه نقل کړے شوے دہ چه ۔ ۔ ۔ ۔ ۔ ۔ ۔ ۔ ۔ ۔ ۔ ۔ ۔ ۔ ۔ ۔

دُوْن په معنی دَ نزدے دے عرش دَ الله تعالیٰ ته او دا جنتونه دَ مخکنو نه افضل او غوره دی لیکن دا قول دَ ظاهر دَ قرآن نه خلاف دے۔ جَنَّتَانِ دلته هم تثنیه دَ پاره دَ تکرار او دَ ډیروالی دہ یعنی دا قِسم جنتونه هم ډیر دی او ډیرو نعمتو نو باندے مشتمل دی او لفظ اٰلآء کښې دیته اشاره دہ۔

۶۴ ۶۵ دا اول صفت دَ جنتان دے هر کله چه اونے بوټی او چمنونه ډیر شنه او تازه وی نو تور بشکاره کیږی دیته ادهیمام ویلے کیږی. نو په دے کښې اشاره دہ ډیروالی دَ اونو او بوټو او چمنونو ته او ډیره تازګی او ډیر شین والی ته او دا سبب دے دَ خوشحالئ او تازګئ دَ نظر او بیا دَ زړه دَ پاره. نو دا ډیر نعمتونه دی دیته اشاره دہ په لفظ دَ اٰلآء سره۔

۶۶ ۶۷ دا بل صفت دَ جنتونو دے۔

نَضَّاخَتَانِ نضخ په خا سره ډیره مبالغه دہ دَ نضح نه په حا سره ځکه نضح صرف شیندل او ترمکیا ته ویلے کیږی. او نضخ په خا سره فوارے دَ اوبو ته ویلے کیږی چه هغه په تیزئے سره راوځی۔

نو دا چینے په ډیرے اوبه او مشک او خوشبوئی او خیر او برکت په جنتیانو باندے راتولی او دا هم ډیر نعمتونه دی دَ دے وجے نه دلته هم لفظ اٰلآء اُویلے شو۔

فَاكِهَةٌ وَّنَخْلٌ وَّرُمَّانٌ ﴿٦٨﴾ فَبِأَيِّ آلَاءِ رَبِّكُمَا

میوے دی او کجورے او انار دی ۔ نو دکوم یو د احسانونو د رب خپل له

تُكَذِّبَانِ ﴿٦٩﴾ فِيهِنَّ خَيْرَاتٌ حِسَانٌ ﴿٧٠﴾

انکار کوئے تاسو ۔ په دے کښ به غوره ښیایانے خائسته شکلونو والا دی ۔

فَبِأَيِّ آلَاءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبَانِ ﴿٧١﴾ حُورٌ مَّقْصُورَاتٌ

نو دکوم یو د احسانونو د رب خپل انکار کوئے تاسو ۔ حورے دی بندے ساتلے شوے

۶۸ ۔۶۹ دا بل صفت دے او په دے کښ درے انعامات ذکر کوی ۔

وَنَخْلٌ وَّرُمَّانٌ دا عطف دے په فاكهة باندے او عطف مغايرة غواړی نو معلومه شوه چه دا دواړه فواکه نه دی او دا قول د امام ابوحنیفه رحمه الله دے په باب د قسم کولو کښ او صاحبان د هغه او نور باقی ائمه محدثین وائی چه دا خو اعلیٰ د فواکهو نه دی او دا عطف تخصیص بعد التعمیم دے او داسے په قران کښ ډیر واقع دے او د دے د تخصیص د پاره ډیرے وجے دی اوله وجه دا چه په زمانه د نزول قران کښ حجاز علاقه کښ دا دواړه ډیر موجود وو کجورے به د پاره د غذا او انار به د پاره د میوے استعمالیدل ۔ دویمه وجه دا ده چه دا دواړه په اوړی او ژمی کښ موجود وی او پکښ ډیرے فائدے دی ۔ دریمه وجه دا ده چه په کجوره کښ د تفکه سره غذائیت هم دے او په انار کښ د تفکه سره دوائی هم ده او په دے تولو کښ بے شماره نعمتونه دی د دے وجے نه ورپسے تعبیر په آلاء سره اوکړے شو ۔

۷۰ ۔۷۱ دا بل صفت دے په ذکر کولو د نورو نعمتونو سره ۔ خَيْرَاتٌ صفت دے د ازواج (ریبق) د پاره جمع د خیرت په تخفیف د یاء سره نو معنیٰ دا ده چه ذوات الخیرات یعنی خاوندانے د خیر او د فائدو دی یا جمع د خیّرت ده په تشدید د یاء سره بیا پکښ تخفیف کړے شوے دے نو معنیٰ دا چه غوره اخلاقو او صفاتو والا دی او حِسَانٌ په معنیٰ د دے چه بدنونه او مخونه به ئے ډیر خائسته دی او هر کله چه الله تعالیٰ چه خالق د حسن دے د هغوی د حسن صفت ذکر کړو نو معلومه شوه چه د هغه حسن انتها او مثال نیشته او په دیکښ د هغه ازواجو ډیر باطنی او ظاهری صفتونو او نعمتونو اشاره ده چه هغه ته آلاء ویلے کیږی شی ۔

فِي الْخِيَامِ ﴿۷۲﴾ فَبِأَيِّ آلَاءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبَانِ ﴿۷۳﴾

په خیمو (دَ ملغلرو کښې) - نو دَ کوم یو دَ احسانونو دَ رب خپل نه انکار کوئ تاسو -

لَمْ يَطْمِثْهُنَّ إِنْسٌ قَبْلَهُمْ وَلَا جَانٌّ ﴿۷۴﴾

نه به وی رسیدلے دوی ته هیڅ انسان مخکښ دَ دوی نه او نه پیرے

فَبِأَيِّ آلَاءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبَانِ ﴿۷۵﴾ مُتَّكِئِينَ عَلَىٰ

نو دَ کوم یو دَ احسانونو دَ رب خپل نه انکار کوئ تاسو - آرام به کوی دوی په

۷۲ ۷۳ دا نور صفات دَ هغه ازواجو دی۔ مبتدا محذوف ده یعنی هُنَّ حُوْرٌ جمع دَ حوراء ده بنهٔ سپین رنګ والا ته ویلے کیږی چه دَ سترګو تور یٔ بنهٔ تور وی او سپین والے بنهٔ سپین وی ۔ مَقْصُوْرَاتٌ بنده ساتل دَ حفاظت او دَ اکرام دَ پاره دی او مدح دَ ذنانو په ستر او پردے سره کیږی او چه پخپل کور کښن اوسی او بے ضرورته په لارو کوڅو کښن نه ګرځی ۔ فِي الْخِيَامِ مراد دَ دے نه دَ هغوی کورونه او محلونه دی۔ او خطیب شربینی ویلے دی چه خلور لرګی او درولے شی او دَ پاسه دربانده څه څانګے او بوټی واچولے شی نو دیته خیمه ویلے کیږی۔

او چه دَ دړے او پشم وغیره نه جوړه شی نو هغے ته خباء ویلے کیږی، لیکن دَ جنت دَ هغے خیمے تفسیر په حدیث صحیح کښن راغلے دے او دلته هغه مراد دے چه رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمائیلی دی، چه دَ مؤمن دَ پاره په جنت کښن خیمه ده دَ یو ملغلرے ډډے نه چه اوګدوالے دَ هغے شپیته میلونه دے او دَ دے مؤمن به په هغے کښن اهل وی چه دے به په هغوی باندے چکر لګوی او هغوی به یو بل لره نه وینی، دا دَ مسلم روایت دے او په دے آیت کښن دَ حور ډیر صفتونه ذکر شول او دا نعمتونه هم دی چه هغے ته په لفظ دَ آلاء سره اشاره شوی ده۔

۷۴ ۷۵ دا صفت دَ مخکنو او دَ دوی دواړو شریک دے ځکه چه دَ دے وصف په نیشتوالی سره په لذاتو کښن ډیرکمے طبعًا او عادةً محسوس کیږی او دا هم په ډیرو آلاء باندے مشتمل دے لکه چه مخکښن تیر شویدی ۔

رَفْرَفٍ خُضْرٍ وَّعَبْقَرِيٍّ حِسَانٍ ﴿۷۶﴾ فَبِاَيِّ

خادرونو شنو او قالینونو ښائسته باندې : نو د کوم یو

اٰلَآءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبٰنِ ﴿۷۷﴾ تَبٰرَكَ اسْمُ رَبِّكَ

دَ احسانونو دَ رب خپل نه انکار کوئې تاسو ۔ برکتونو والا دے نوم دَ رب ستا

۷۶ ۔ ۷۷ دا ورصفتونه دَ جنتیانو ذکرکوی یعنی تیرشوی نعمتونه به دوی ته حاصلیږی سرهٔ دَ ارام نه رَفْرَفٍ خُضْرٍ رفرف په اصل کښ ماخوذ دے دَ رَفّ نه په معنیٰ دَ اوچت والی او حرکت کولو سره دے او په معنیٰ دَ تازګیٔ سره هم راځی ۔ او مراد دَ دے نه هغه څادرونه دی چه په بستره باندے غوړولے شی یا بالختونه یا چمنونه دَ جنت ۔ وَعَبْقَرِيٍّ کل دار څادرونه یا بسترے چه ډیرے نا اشنا وی خلیل ویلے دی چه هر کامل او نفیس او عمده خیز ته ویلے شی که انسان (رنګ) وی او که کپړه جامے وی وغیره۔
ابن الانباری ویلے دی چه عبقر یو ځائے دے چه په هغے کښ به ډیر پیریان وؤ نو هغه ځائے نا اشنا کنړلے کیدلو نو دَ هر عجیبه او نا اشنا خیز په دوی عبقر ته نسبت کوؤ یا په یمن کښ یو ښار وؤ چه په هغے کښ دَ کپړو ګلونه کیدل ۔
دا هم په ډیرو نعمتونو او دَ زړه په خوشحالو باندے مشتمل دے دَ دے وجے نه دے ته یئ آلاء او فرمائیل ۔
فائده:۔ دَ ذکر کړے شوو نعمتونو دَ تقابل نه په ډیرو وجهو سره معلومیږی چه روستنی جنتونه دَ مخکنو ذکر کړے شوو نه کم دی ۔ اوله وجه دا ده چه دَ مخکنو دَ پاره ذواتا افنان ذکر وؤ چه دلالت کوی په ډیر اونو باندے او روستنو کښ مدهامتان چه صرف شین والی ته اشاره ده دویمه وجه دا ده چه په مخکنو کښ تجریان ذکر کړے وؤ او دَ روستنو په باره کښ نضاختان وو او جاری کیدل غوره دی په نسبت دَ فوارے وهلو په یو ځائے باندے ۔ دریمه وجه هلته من کل فاکهة زوجان ذکر وؤ او دلته فاکهة ونخل ورمان ذکر دے لفظ دَ کل او دا رنګ زوجیت دَ میوؤ دلالت کوی په ډیروالی دَ اقسامو او فاکهة نکره دلالت کوی په کم والی باندے ۔
څلورمه وجه هلته دَ حورو په صفت کښ قاصرات الطرف دے نو هغه افضل صفت دے په نسبت دَ مقصورات باندے ۔ (زیاتے په بل مخ)

ذِی الْجَلٰلِ وَالْاِکْرَامِ ﴿۷۸﴾ ع

چه لوئے شان والا دے او عزتونو والا دے.

پنځم وجه هلته دَ هغوی حسن او جمال او صفائی دَ پاره دَ تشبیه وه دَ یاقوت او مرجان سره او دلته صرف خیراتٌ حسان ذکر دے.
شپږمه وجه هلته دَ تکیه دَ پاره فرش او دَ هغې دَ بطائنو صفت ذکر کړے وؤ او دلته صرف رفرف (نخادرے یا بالختونه) ذکر کړے دی. لیکن دا ټول په اعتبار دَ ظاهر سره ترجیحات دی په دے کښې دا سے احتمالات هم شته دے چه په هغې سره دَ روستنو ترجیح ثابتیږی. (و الله اعلم)
ﺷۓ دا تفریع ده په ټول سورت باندے او تفصیل دَ دعوے دَ سورت دے. په لفظ دَ تَبٰرَکَ کښې اشاره ده چه دا مخکښې ذکر کړے شوی نعمتونه پیدا کول او هغې له ترقی او بقا ورکول دا صفت خاص دَ الله تعالیٰ دے او دا رنګ دا ټول انعامات دلالت کوی په عظمت او لوئیځ دَ الله تعالیٰ باندے نو صفت دَ ذی الجلال ئے راوړو او دا انعاماتؑ دلالت کوی په سخاوت او مهربانئ دَ الله تعالیٰ باندے نو صفت دَ اکرام ئے ذکر کړو.
اسْمُ رَبِّکَ مراد دَ اسم نه په دے مقام کښې الرَّحْمٰن دے چه دَ سورت په اول کښې دے او دا رنګ هر اسم دَ اسماءِ حسنٰی نه موصوف دے په تبارک سره.
یعنی دا نوم چه الرّحمٰن دے او تشریح دَ هغې په دے سورت کښې ذکر شوه ډیر دَ برکتونو والا دے نو په دے کښې اشاره ده لکه چه ذات دَ الله تعالیٰ موصوف دے په تبارک سره دَ قرآن کریم په اته ایاتونو کښې نو دا رنګ اسم دَ هغه هم دے.

ذِی الْجَلٰلِ وَالْاِکْرَامِ صفت دَ رب دے یعنی جلیل دے په اعتبار دَ ذات سره او اکرام والا دے په اعتبار دَ افعالو سره دا سے قرطبی ذکر کړے دی یا اهل دے دَ اجلال چه عصیان ئے او نکړے شی او اهل دے دَ اکرام چه بندګی دَ هغه خاص کړے شی دا معنیٰ ابن کثیر ذکر کړے ده.
فائده:- قاسمی په تفسیر کښې ذکر کړے دی چه برکات نومونو دَ الله تعالیٰ له واجب دی (په هغه الفاظو سره چه حروف او جمله نه مرکب وی) مونږ ته برکه حاصلوو دَ هغې په ذکر او په تعظیم سره او دَ هغه دَ نوم اجلال او اکرام

به کوډ که دغه نوم ونه په کاغذ کښې لیکلے شوے وی یا په دیوال وغیره کښې منقوش وی یا په ژبه باندے ذکر کیږی. او چاچه دَ نوم دَ الله تعالیٰ اکرام او اجلال اونه کړو (بلکه توهین ئې دَ هغې قصدًا اوکړو) نو هغه بیشکه کافر دے نوایت په خپل ظاهر باندے حمل دے په غیر دَ تاویل نه (ردائې دَ ابن حزم رحمه الله نه نقل کړے دے).

خَتم شو تفسیر دَ سورة رحمٰن په فضل اوکرم دَ الله تعالیٰ سره

او اے ذالجلال والاکرام مونږ ستا نه خاص

او عام رحمتونه هر وخت غواړو په

وسیله دَ نوم ستا چه

رحمٰن دے

| ايَاتُهَا ۹۶ | رُكُوعَاتُهَا ۳ | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | سُوْرَةُ الْوَاقِعَةِ ۵۶ مَكِّيَّةٌ ۴۶ |
|---|---|---|---|

إِذَا وَقَعَتِ الْوَاقِعَةُ ۝١ لَيْسَ لِوَقْعَتِهَا

کوم وخت چه واقع شي واقع کیدونکې . نیشته دَ واقع کیدلو دَ هغې نه

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

## سورة الواقعه

ربط دَ دے سورت دَ سورة رحمٰن سره په ډیرو وجو سره دے اوله وجه دا چه په هغه سورت کښ اثبات دَ رحمانیت او برکاتو دَ الله تعالیٰ دَپاره وؤ نو په دے سورت کښ رد دَ شرك في البرکات کوی په طریقه دَ تسبیح سره. دویمه وجه دا چه په هغه سورت کښ تخویف اخروی او بشارت اخرویه ذکر کړے شو نو په دے سورت کښ دَ هغې اهل ذکر کوی. دریمه وجه دا چه هلته ئې دَ جنتونو دوه قسمونه ذکر کړل نو په دے سورت کښ دَ اهل جنت دوه قسمونه ذکر کوی السابقون او اصحاب الیمین.

څلورمه وجه دا چه دَ هغه سورت په ابتدا کښ نعمت دَ قران ذکر کړے دے او دَ دے سورت په اخر کښ عظمت دَ قران ذکر کوی.

دعویٰ دَ دے سورت :- تسبیح دَ الله تعالیٰ ده چه په دوه کرته ئې ذکر کوی په ۷۴ او ۹۶ کښ لکه سورة رحمان کښ دوه صفتونه ذکر شول . یو الرحمان دویم تبارك . او اثبات دَ دے تسبیح کوی په ذکر دَ انعاماتو دَ تربیت دَ انسان سره او په انزال دَ قران سره.

خلاصه دَ سورت ، دا سورت تقسیم دے دوه بابونو ته اول باب تر ۵۶ پورے دے په دے باب کښ اته حالات دَ قیامت ذکر کوی تر ۷ پورے بیا تقسیم دَ اهل حشر ذکر کوی درے ډلو ته په ۸ ـ ۹ ـ ۱۰ کښ بیا دَ فریق اول چه سابقون دی دَ هغوی لس بشارات ذکر کوی تر ۲۶ پورے بیا دَ دویم فریق چه اصحاب الیمین دی اته بشارات ذکر کوی تر ۴۰ پورے بیا دَ دریم فریق چه اصحاب الشمال دی شپږ عقوبات (تخویفًا) ذکر کوی او په مینځ دَ هغې کښ درے علتونه دَ عذاب راوړی.

كَاذِبَةٌ ② خَافِضَةٌ رَّافِعَةٌ ③ إِذَا رُجَّتِ الْأَرْضُ

هيڅ انکار ـ ښکته کوي به بعضو خلقو لره پورته کوي به بعضو لره ، کوم وخت چه او چړ قولے شي زمکه

تفسیر ۱ إِذَا ظرفيه دے يا شرطيه دے كه ظرفيه شي نو په هغې كښې دوه احتمالونه دي اول احتمال دا دے چه لفظ دَ اذكر مقدر دے دويم دا چه مابعد دَ دے په تاويل دَ مصدر سره مبتدا ده او دويم إِذَا سره دَ مابعد نه په تاويل دَ مصدريت سره خبر دے نو معنىٰ دا ده چه وخت دَ واقع كيدلو دَ واقعے چه موصوف په ما بعد صفتونو سره دے وخت دَ جړقيدلو دَ زمکے دے سره دَ روستو حالاتو ذكر شوي ته او كه شرطيه شي نو په جزاء كښې دوه احتمالونه دي اول احتمال دا چه روستو اذا دَ دے نه بدل دے او فَاَصۡحٰبُ الۡمَيۡمَنَةِ دَ دے جزاء ده دويم احتمال دا دے چه دَ دے جزاء محذوف ده ( لَتُجَازُنَّ حَسَبَ حَالَاتِكُمۡ ) ۔

الۡوَاقِعَةُ دا نوم دے دَ نومونو دَ قيامت نه لكه چه سورة الحاقه ۱۵ كښې هم ذكر دي الف لام دَ پاره دَ كمال او تا دَ پاره دَ مبالغے ده او دے ته واقعه په دے وجه ويلے كيږي چه وقوع دَ دے يقيني دے يا دا چه په دے كښې ډيرے سختے واقع كيدونكي دي ۔ او بعضو علماؤ ويلے دي چه الواقعه نه مراد دويمه شپيلۍ وهل دي ۔

۲ په دے كښې تاكيد دَ وقوع دَ واقعه دے ۔ لِوَقۡعَتِهَا لام وقتيه دے يعني په كوم وخت چه واقعه واقع شي . يا دا لام صله دَ كَاذِبَةٌ دے او دا اسم فاعل دے دَ مكذبة په معنىٰ سره نفسٌ مكذبةٌ دا په اول توجيه بانده دے يا كاذبة په معنىٰ دَ مصدر ( كذب ) سره دے او تاء دَ پاره دَ مبالغے ده او دا په دويمه توجيه بانده دے .

۳ دا خبر دَ مبتداء محذوف دے يعني هي او خَفۡضٌ او رفع صفتونه دَ مكان او دَ مرتبے او دَ آواز دَ پاره راځي . په اعتبار دَ مكان سره معنىٰ دا ده چه ښكته كوي بعضو قومونه جهنم ته او پورته كوي به بعضو قومونه جنت ته او جهنم كوز دے او جنت پورته دے او په اعتبار دَ مرتبے سره معنىٰ دا ده كوزوي به دشمنان دَ الله تعالىٰ ( يعني په ذلت سره ) او او چتوي به دوستان دَ الله تعالىٰ ( يعني په عزت سره ، او په دے دواړو توجيهاتو سره اسناد دَ خفض او رفع قيامت ته اسناد مجازي دے او په اعتبار دَ آواز سره معنىٰ دا ده چه دا ( شپيلۍ ) به ښكته آواز وركوي نزدے خلقو ته او اوچت آواز به وركوي لرے خلقو ته ۔

رَجًّا ۝٤ وَّبُسَّتِ الْجِبَالُ بَسًّا ۝٥ فَكَانَتْ

په سخت وچرقولو سره ، او ذرے ذرے به کړے شي غرونه په ذرے ذرے کولو سره ، نو شي به

هَبَآءً مُّنْۢبَثًّا ۝٦ وَّكُنْتُمْ اَزْوَاجًا ثَلٰثَةً ۝٧

دوړه الوځولے شوے او شئ به تاسو درے قسمونه .

فَاَصْحٰبُ الْمَيْمَنَةِ ۙ۬ مَآ اَصْحٰبُ الْمَيْمَنَةِ ۝٨

نو ښي لاس والا خلق څه لوئے شان دے د ښي لاس والو .

س۴ اِذَا بدل دے د مخکښې اِذَا نه یا ظرف دے د پاره د خافضة رافعة یا اذا شرطیه او جزاء یې فاصحاب المیمنة ده . رُجَّتِ رجّه هغه سخت خوځیدل دی چه د هغې سره آواز او زیاتے کیدل شي او مراد ترینه زلزله ده په ټوله زمکه باندے لکه سورة زلزال کښې او د سورة حج په اول ایت کښې ذکر شوے ده .

۵ سل داحال د غرونو ذکر کوی چه دا وهم او نکړے شي چه په زمکه باندے غرونه د میخونو پشان دي نو دا به څه رنګے ټوله او خوزیګی نو او فرمائیل شو چه غرونه به هم ختم شي . بسًّا ذرے ذرے کیدل او ګډوډ کیدل د یو بل سره . یا چلیدل د مخ د زمکے نه . یا د ویښتو نه ویستل دے ټولو معانو ته شامل دے . هَبَآءً مُّنْۢبَثًّا هغه دوړه چه د څپو د اسونو نه په وخت د تیز رفتارئے د هغوی کښې را اوچته شي او بیا خوره او روکه شي . دا رنګ هغه شعاع د نمر چه په یو سوری کښې داخل شي نو ذرات پکښې ښکاری او دا رنګ هغه . بحری د اور چه اوچت شي نو بیا ورک شي . او دا دلیل دے په فنا کیدلو د غرونو سره .

س۷ دا تقسیم د خلقو دے په اعتبار د عقیدے او د عملونو سره نو دا رنګ بیا په اعتبار د جزاء سره لیکن په دنیا کښې دوی مخلوط وو او هر یو د خپلے طریقے تعریف کوو نو تقسیم په دنیا کښې پوره ښکاره شوے نه وو او په آخرت کښې به پوره ښکاره شي . اَزْوَاجًا هر یو کس به د خپل مثل سره ( په عقیده او عمل کښې ) یو ځائے کړے شي د دے وجے نه ازواج ورته اُویلے شول مراد ترینه قسمونه دي .

س۸ س۹ دا تفصیل د اقسام ثلثه دے نو په دیکښې اول فریق ذکر کوی . الْمَيْمَنَةِ د یمین نه ماخوذ دے یعنی ښے طرف . مراد دا دے چه په ښي لاس

وَأَصْحٰبُ الْمَشْـَٔمَةِ ۙ۬ مَآ أَصْحٰبُ الْمَشْـَٔمَةِ ۝٩

او كينړ لاس والا خلق خو مره بد دے حال دَ كينړ لاس والا .

وَالسّٰبِقُونَ السّٰبِقُونَ ۝١٠ أُولٰٓئِكَ

او مخكښ كيدونكي ايمان ته (په دنيا كښ) مخكښ داخليدونكي به وي جنت ته (په آخرت كښ) ، دغه كسان

الْمُقَرَّبُونَ ۝١١ فِي جَنّٰتِ النَّعِيمِ ۝١٢ ثُلَّةٌ

پوره نزدے كړے شويدي . په جنتونو دَ نعمتونو كښ به وي . ډلے دي

كښ عمل نامه به وركيدے شي يا دا چه ښي طرف دَ ميدان حشر ته به روان كړے شي ځكه چه ښي طرف ته جنت دے . يا دا چه په عالم الذّر او په شپه دَ معراج كښ دَ آدم عليه السّلام ښي طرف ته وو . يا دا دَ يُمن نه اخستلے شويدے يعني خير او بركت والا دي او نيك بخت دي . مَا استفهام دے دَ پاره دَ تعظيم دَ حال دَ هغوي او اصحاب الميمنة مبتدا ده او ما اصحاب الميمنة خبر دے اصل عبارت داسے وو اصحاب الميمنة ما هم نو دَ ضمير په ځائے باندے اسم ظاهر كيښودو دَ بيان دَ عظمتِ شان دَ پاره .

ف سلا په دے كښ دويم فريق ذكر كوي . الْمَشْـَٔمَةِ شمال (كس) طرف ته ويلے كيږي يعني دوي له به په كس لاس كښ عمل نامه وركيدے شي يا دا چه په كس طرف دَ ميدان حشر به روان كړے شي ځكه چه هغه طرف ته جهنم دے يا دا چه دوي په عالم الذر او په شپه دَ معراج كښ دَ آدم عليه السلام كس طرف ته وو . يا ماخوذ دے دَ شُوم نه بد بختۍ ته ويلے كيږي يعني دوي شقيان او بد بخت دي .

ف ۱۲ دا دريم فريق دے . والسابقون مبتدا او دويم ئے خبر دے يا دويم تاكيد دے او اولٰئك المقربون ئے خبر دے اوله توجيه غوره ده خو فرق دَ مبتدا او خبر دا دے چه دَ اول نه مراد سبقت كوونكي دي دَ خير كارونو ته په دنيا كښ او دَ دويم نه مراد وړاندے داخليدونكي جنت ته په ورځ دَ قيامت كښ .

وَالسّٰبِقُونَ په دے كښ ډير اقوال دي دَ مفسرينو . ع۱ انبياء عليهم السّلام دي . ع۲ په هر امت كښ صحابه دَ انبياؤ عليهم السّلام . ع۳ زمونږ دَ امت صحابه كرام . ع۴ هغه صحابه چه قبلتين ته ئے مونځونه كړے وو . ع۵ سبقت كوونكي (رياٰتے په بل مخ )

ثُلَّةٌ مِّنَ الْأَوَّلِينَ ﴿۱۳﴾ وَقَلِيلٌ مِّنَ الْآخِرِينَ ﴿۱۴﴾

دَ مخکنو امتونو نه ... او لږ دي دَ ... روستنو نه .

عَلَىٰ سُرُرٍ مَّوْضُونَةٍ ﴿۱۵﴾ مُّتَّكِئِينَ عَلَيْهَا

په تختونو بانـدے به وي چه اودلے شوے به وي دَ تارونو دَ سرو زرو نه، تکیه به وهي په هغے بانـدے

مُتَقَابِلِينَ ﴿۱۶﴾ يَطُوفُ عَلَيْهِمْ وِلْدَانٌ

یو بل ته مخامخ به وي . ګرځي راځي به ... په دوي بانـدے ... هلکان

پنځه مونځونو ته، ۷ سبقیت کوونکي جهاد ته، ۸ هغه شخص چه دَاول ځوانئ دَ عمر نه په صحیح دین کښ لګیدلے دے ترمرګه پورے .

ابن کثیر وئیلي دي چه دا ټول اقوال صحیح دي. یعني دا لفظ دے ټولو ته شامل دے. الْمُقَرَّبُونَ دَ دوي درجے به عرش ته او الله تعالی ته ډیرے نزدے وي.

فِي جَنَّاتِ النَّعِيمِ متعلق دے په المقربون پورے یعني دَ دوي نزدیکت به په جنت کښ وي یا دا مستقله جمله ده په تقدیر دَ مبتدا سره (ریه خلون).

۱۳ ـ ۱۴ په اولین او اخرین کښ دوه اقوال دي اول دا چه دَ اولین نه دَ تیر شوو پیغمبرانو (سابقون) صحابه مراد دي او انبیاء علیهم السلام ډیر وو نو دَ هغوي دَ صحابو مجموعه شمار ډیر دے او اخرین نه مراد زمونږ دَ امت صحابه کرام دي دوي اګرچه فی نفسه ډیر دي لیکن په نسبت دَ مجموعه تیرشوؤ بانـدے کم دي. دویم قول دا چه دَ اولین نه مراد زمونږ دَ امت سابقون (صحابه) دي او دَ اخرین نه مراد په دے امت کښ هغه خلق دي چه ایمان او اتباع دَ رسول الله صلی الله علیه وسلم ته ئے سبقت کړے دے او دَ صحابه کرامو په نقشِ قدم بانـدے روان دي، نو دوي دَ صحابه کرامو نه لږ دي .

او ابن کثیر روستو قول غوره کړے دے او ډیر احادیث ئے دَ دے امت په فضیلت بانـدے ذکر کړے دي.

۱۵ ـ ۱۶ مبتدا حذف ده (هم) موضونة او دَ لے شوي دَ سرو زرو نه او ملغلرو او یاقوتو نه مراد دَ دے نه مصفوفة دے. مُتَقَابِلِينَ مجلس کښ به یو بل ته مخامخ وي مینځ کښ به ئے پرده نه وي او اشاره ده چه دَ یو بل نه به چرے نه خفه کیږي او مرتبے به ئے هم یو بل ته نزدے وي.

مُخَلَّدُوْنَ ﴿۱۷﴾ بِاَكْوَابٍ وَّاَبَارِيْقَ ۙ وَكَاْسٍ

چه همیشه به هلکان وي په ګلاسونو او جګونو سره او پیالے ډکے د

مِّنْ مَّعِيْنٍ ﴿۱۸﴾ لَّا يُصَدَّعُوْنَ عَنْهَا وَلَا يُنْزِفُوْنَ ﴿۱۹﴾

شرابو خالصو نه ، نه به سر درد راځي په دوی باندے د هغے نه او نه به اَلتِّيْ (رقے) کوی

ش۱۸ش۱۸ وِلْدَانٌ مراد دینه د مشرکانو هغه بچی دی چه مخکښ د بلوغ نه مړه شوی دی او په بل قول کښ ورسره واړه د مسلمانانو هم مراد دی. یا مراد هغه دی چه په جنت کښ د خدمت د جنتیانو د پاره پیدا کړے شوے دی. مُخَلَّدُوْنَ همیشه به وی فنا به ورباندے نه راځی او نه به زړیږی او نه به د حالت خپل نه بدلیږی. او هغه هم دی چه هغوی ته کالی (زیورات) اچولے شوی وی. بِاَكْوَابٍ دا متعلق دے په یطوفون پورے. اکواب جمع د کوب ده هغه لوښے د څښلو د پاره چه د هغے کړے او سنت نه وی یعنی څښل د هغے نه په یو طرف پورے خاص نه وی بلکه د هر طرف د هغے نه څښل کیدے شی او د هغے مثال ګلاسونه دی. او اَبَارِيْقَ جمع د ابریق ده هغه لوښے دے چه د هغے کړے او سنت یو طرف ته وی نو نیول ئے اسان وی او د هغے مثال جګونه دی او د برق نه ماخوذ دے یعنی د هغے رنګ به بریښنا او چمک کوی.

وَكَاْسٍ دا ئے مفرد ذکر کړو اشاره ده چه شراب به په ډیرو ګلاسونو او جګونو کښ تیار وی لیکن د محبت د وجے نه به دوی په یو کاسه باندے څښل کوی.

مَعِيْنٍ د چینے پشان جاری به وی یا ښکاره او ډیر به وی یعنی نچوړولو ته به ئے حاجت نه وی.

ش۱۹ لَا يُصَدَّعُوْنَ عَنْهَا ماخوذ دے د صداع نه درد سر ته ویلے کیږی. یا ماخوذ دے د تصدع نه په معنیٰ د تفرق سره یعنی دغه شراب به د دوی د تفرق د پاره سبب نه وی.

وَلَا يُنْزِفُوْنَ نزف بے هوشی او عقل زائل کیدلو ته ویلے کیږی او قے کولو ته هم ویلے کیږی. د ضحاک نه روایت کړے شوے دے چه په خمر د دنیا کښ څلور ناکاره اوصاف دی. درد سر، قے کول، نشه کیدل، بول راتلل، او شراب د جنت د دے ټولو عیبونو نه پاک دی.

وَفَاكِهَةٍ مِّمَّا يَتَخَيَّرُونَ ﴿٢٠﴾ وَلَحْمِ طَيْرٍ

او په میوو کښې به وی دَ هغه قسم نه چه دوی یې خوخوی ، او په غوښو دَ مارغانو کښې به وی

مِّمَّا يَشْتَهُونَ ﴿٢١﴾ وَحُورٌ عِينٌ ﴿٢٢﴾ كَأَمْثَالِ

دَ هغه قسم نه چه دوی یې غواړی. او (دوی له به وی) حورے خائسته سترګو والا، پشان دَ

اللُّؤْلُؤِ الْمَكْنُونِ ﴿٢٣﴾ جَزَاءً بِمَا كَانُوا

ملغلرو پټو ساتلے شوو . بدله ورکیدی شی په سبب دَ هغه عملونو سره

ف۲۰ دا عطف دے په اکواب باندے او یا جاره محذوف ده.

يَتَخَيَّرُونَ مراد دا چه ډیرے میوے او ډیر قسمونو به وی نو هر څوک به دَ خپلے خوښے مطابق دَ هغے نه خوری یا مراد دَ دے نه غوره او بهتر ده.

او ابن کثیر ویلے دی چه دَ دے نه معلومه شوه چه هر کله طعام کښې مختلف اقسام وی او په شریکه سره خوړے کیږی نو هرچاله جائز دی چه دَ خپلے خوښے دَ بل چا دَ مخے نه راواخلی. هاں هر کله چه یو قسم طعام وی نو بیا به صرف دَ خپلے مخے نه خوراک کوی او دا رنګ په سنت دَ نبی صلی الله علیه وسلم کښې هم راغلے دی.

ف۲۱ سوال :- څه حکمت دے چه دَ فواکه سره يتخيرون او دَ لحم سره یې يشتهون ذکر کړو؟

جواب: په دنیا کښې چه هر کله دا دواړه خیز ونه اوږی شخص ته وړاندے کړیشی نو دَ دۀ غوښے ته اشتها کیږی او هر کله چه موړ شخص ته پیش کړے شی نو دَ هغه میلان فواکه ته کیږی. او اهل جنت خو خوراک دَ لوږے دَ وجے نه نۀ کوی بلکه دَ تفکه دَ وجے نه کوی نو دَ دے وجے نه فاکهه یې دَ لحم نه وړاندے ذکر کړه په خلاف دَ ترتیب دَ دُنیا سره.

ف۲۲ ف۲۳ دا معطوف دے په ولدان باندے یا خبر دَ مبتدا محذوف دے (لهم).

الْمَكْنُونِ چه پټه ساتلے شوے وی او دوړو باندے نه وی لګیدلے او لاس نه ورته نه وی رسیدلی. او اشاره ده چه په زنانو کښې بهتر صفت پټه ساتل دی یعنی سترګول او محفوظ کیدل دی.

يَعْمَلُوْنَ ﴿۲۴﴾ لَا يَسْمَعُوْنَ فِيْهَا لَغْوًا وَّ لَا

چه دوی کول . نه به اوری دوی په هغې کښې بې فائدې خبرې او نه دَ

تَأْثِيْمًا ﴿۲۵﴾ اِلَّا قِيْلًا سَلٰمًا سَلٰمًا ﴿۲۶﴾ وَاَصْحٰبُ

گناه خبرې مګر وینا به وی سلام سلام . او ښی لاس

الْيَمِيْنِ ۙ مَآ اَصْحٰبُ الْيَمِيْنِ ﴿۲۷﴾ فِيْ سِدْرٍ

والا خلق څه لوئې شان دے دَ ښی لاس والو . (دوی به دوی) په بیرو

۲۴ جزاءً مفعوله دے یا مفعول مطلق دے دَ فعل محذوف دَپاره او په دیکښې اشاره ده چه دَ دوی دَپاره خوراک او څُورے ښائسته او صفا دَدے وجے نه دی چه دَ دوی عملونه هم ښائسته او صفا وُو ځکه چه جزاء دَ جنس دَ عمل نه وی.

بِمَا كَانُوْا يَعْمَلُوْنَ اعمال ظاهری سبب دے دَجزاء دَپاره او رحمت دَالله تعالیٰ سبب حقیقی دے دَدے وجے نه دواړو ته نسبت دَجزاء صحیح دے.

۲۵-۲۶ مخکښې جزاء ثبوتی وه او دا جزاء سلبی ده دَدے وجے نه دَدے عطف ئې په مقابل باندے نه دے کړے او په دے سلب کښې اتمام دَ نعمتونو ته اشاره ده هغه دا چه دَ خوراک څښاک او بیبیانو په نعمت سره خو انسان خوشحاله وی لیکن چه دَځا نه بده خبره واوری نو هغه ټوله خوشحالی وربانددے اورشی دَ دے وجے نه ئې دا صفتِ سلبیه په آخرکښې دَ اتمامِ نعمت په طور سره ذکر کړو.

لَغْوًا لکه سورة غاشیه ۱۱ کښې دی لغو هغه کلام دے چه په هغې کښې هیڅ فائده نه وی برابره خبره ده که گناه پکښې وی او که نه وی او تَأْثِيْمًا هغه کلام دے چه په هغې سره انسان گنهگار کرځی لکه دروغ ، بهتان ، غیبت وغیره . او دا رنګ تاثیم بوبل ته دَ ګناه (فسق وفجور وغیره) نسبت کول .

سَلٰمًا سَلٰمًا تکرار نه مراد تکثیر او ډیر والے دے. سَلٰمًا مراد دَ دینه هغه خبرے دی چه سالم وی دَ عیب او دَ نقصان او دَ ګناه نه. یا مراد دے نه سلام کول دی دَ طرف دَالله تعالیٰ او ملائکو نه او دَیو بل دَ طرف نه او دَ اِلَّا قِيْلًا استثناء منقطع ده.

۲۷ دا ذکر دَ دویم قسم مؤمنانو دے یعنی عام مؤمنان. او دَ دوی اته بشارتونه ذکر کوی. اصحاب الیمین ورته دَ دے وجے نه ویلے کیږی (پاتے په بل مخ)

مَّخْضُوْدٍ ﴿۲۸﴾ وَّطَلْحٍ مَّنْضُوْدٍ ﴿۲۹﴾ وَّظِلٍّ

بې ازغو کښې ، او په کيلو کښې چه لاندې باندې جوخته به وی ، او په سورو

مَّمْدُوْدٍ ﴿۳۰﴾ وَّمَآءٍ مَّسْكُوْبٍ ﴿۳۱﴾ وَّفَاكِهَةٍ

اوږدو کښې ، او په اوبو روانې کړې شوې په مخ د زمکه باندې ، او په ميوو

كَثِيْرَةٍ ﴿۳۲﴾ لَّا مَقْطُوْعَةٍ وَّلَا مَمْنُوْعَةٍ ﴿۳۳﴾

ډيرو کښې ، چه نه به ختميږی ، او نه به ترينه منع کيدې شي

چه په ښی لاس نو کښې ورته عملنامه ورکيدې شي يا د دې وجې نه چه د ميدانِ حشر ښی طرف ته به جنت وی. په ابتداء کښې ورته اصحاب الميمنه ويلې وو ځکه چه يُمن (سعادت) سبب دې د اصحاب اليمين کيدلو د پاره نو اول يې سبب او بيا يې مسبب ذکر کړو. مَآ اَصْحٰبُ الْيَمِيْنِ د دوی د عظمت شان د پاره دې.

۲۸ ۲۹ ۳۰ ۳۱ خبر د مبتدا محذوف دې. مَّخْضُوْدٍ چه ازغی پکښې نه وی يا چه ډير بار والا وی. طَلْحٍ جمع د طلحة ده اونې د کيلې ته ويلې کيږی.

مَّنْضُوْدٍ يعنی ميوې به په هغه اونه پورې د لاسې لاندې باندې انختې وی چه تنه به يې ټوله پټه وی.

مَّمْدُوْدٍ په حديث صحيح (ابن کثير ورته متواتر ويلې دی) سره ثابت ده چه سور شخص په هغه سوری کښې سل کاله مزل اوکړی نو هم يې آخر ته نشی رسيدلې. يا دا چه هميشه سورې به وی په نمر سره نه ختميږی. د دې ذکر په سورة نساء ۵۷ او سورة رعد ۳۵ او سورة مرسلات ۴۱ کښې هم دې.

مَّسْكُوْبٍ چه د دوی په کورونو او باغونو کښې به هر وخت جاری وی او د زمکې په سر باندې به بهيږی نو نه به اوچيږی او نه به يوقې او رسئ ته ضرورت وی.

۳۲ ۳۳ كَثِيْرَةٍ اقسام او افراد د هغې به ډيروی لَا مَقْطُوْعَةٍ يعنی په اوړی يا ژمی وغيره سره به نه ختميږی بلکه هميشه به وی لکه په سورة رعد ۳۵ کښې دی. وَلَا مَمْنُوْعَةٍ يعنی د هغې نه به هيڅ قسم منع کوونکې نه وی بلکه ازغی به هم نه وی او لرې به هم نه وی چه کوم وخت غواړی نو راغستلې به شي. مراد د دې ټولو صفتونو دا دې چه د دُنيا د ميوو نه بالکل په صفتونو کښې جدا دی.

وَفُرُشٍ مَّرْفُوْعَةٍ ﴿۳۴﴾ إِنَّآ أَنْشَأْنٰهُنَّ إِنْشَآءً ﴿۳۵﴾ فَجَعَلْنٰهُنَّ أَبْكَارًا ﴿۳۶﴾ عُرُبًا أَتْرَابًا ﴿۳۷﴾

او په بسترو اوچتو درجو والاکښې به وي . یقیناً پیدا به کړو مونږ زنانو لره په نوی پیدائش سره، نو جوړې به کړو دَ دوی نه جینکې محبت ښکاره کوونکې همزولې

۳۴ مراد دَ دے نه فراشونه (قالینونه) دی. مَّرْفُوْعَةٍ اوچت به وی مکان دَ هغې اګر چه په وخت دَ کیناستلو کښې به کوزیګی یا قدراوشان ئې اوچت دے یا مراد دَ فُرُشٍ نه بیبیانې دی ځکه چه عرب خلق دَ زنانو نه کله تعبیر په فرش او کله په لباس سره کوی او دَ هغوی حسن جمال اوشان به اوچت وی. او مراد دَ دینه دنیوی بیبیانې دی او دَ دے وجې نه صفت دَ فراشیت په دنیا کښې په هغوی کښې ښکاره وؤ او په دے تفسیر باندے روستو جمله هم دلالت کوی.

۳۵ ۳۶ ۳۷ إِنْشَآءً نوے پیدائش نه مراد دا چه دنیوی صفات او اخلاق (چه بدلګنړلے کیږی) هغه به ترینه زائله کړے شی.

فَجَعَلْنٰهُنَّ أَبْكَارًا دا په زنانه کښې ډیر افضل صفت دے دَ دے وجې نه مستقل ئې ذکر کړو. یعنی اګرچه په دُنیا کښې بوډئې شوے او زړه شوے وی لیکن په جنت کښې به هغه نوے جینئ وی. او په حدیث دَ ترمذی کښې هم راغلے دی چه نبی صلّی الله علیه وسلّم په طریقه دَ مزاح سره اوفرمائیل چه بوډے کانے به جنت ته نه داخلیږی نو یو بوډئ چه واؤریدل نو په ژړا شوه نو نبی صلی الله علیه وسلّم اوفرمائیل آیا دے دا آیت نه دے اوریدلے. اشاره ده چه په نصوصو کښې اکثر اوصاف مقصد وی. لکه چه حدیث راځی چه جنت ته به نمام قتّات (چغلخور) نه داخلیږی نو مراد دا چه په دے صفت سره به نه داخلیږی دا صفت به ترینه په مغفرت دَ الله تعالٰی سره لرے شی یا به په جهنم کښې څه وخت دَ پاره داخل شی نو په سزا سره به دا صفت دَ هغه نه لرے شی.

(مزاح کول خوشطبعی کول سره دَ رشتیا وئیلو نه دا دَ نبی صلّی الله علیه وسلّم په ښائسته اخلاقو کښې داخل دی).

عُرُبًا دا دَ عَرُوبٌ نه اخستلے شوے دے په معنٰی دَ ښکاره کولو یعنی دا زنانه به خپل محبت خاوند ته ښکاره کوی دَ مینې په خبرو سره (یا ئې په بل مخ)

لِّاَصْحٰبِ الْيَمِيْنِ ﴿۳۸﴾ ثُلَّةٌ مِّنَ الْاَوَّلِيْنَ ﴿۳۹﴾

ښی لاس والـــو لـــره . دوی ډلې دی د مخکنو امتونو نه

وَثُلَّةٌ مِّنَ الْاٰخِرِيْنَ ﴿۴۰﴾ وَاَصْحٰبُ الشِّمَالِ

او ډلې دی د روستنو نه . او کـــینړ لاس والا .

مَآ اَصْحٰبُ الشِّمَالِ ﴿۴۱﴾ فِيْ سَمُوْمٍ

څومره بد دے حال د کینړ لاس والو . په ګرمو هواګانو کښې

وَّحَمِيْمٍ ﴿۴۲﴾ وَّظِلٍّ مِّنْ يَّحْمُوْمٍ ﴿۴۳﴾ لَّا بَارِدٍ

او خوټکیدلو اوبوکښې به وی، او په سوری کښې د لوګی نه نه به یخ وی

او په ناز کولو او په ځان ښائسته کولو سره د دے وجے نه مفسرینو دا ټولے معانے ذکر کړے. اَتْرَابًا په زنانوکښې اتراب او په نارینوکښې اقران استعمالیږی. نو دا زنانه به ټولے د یو بل سره هم عمر وی او دا رنګ د خاوندانو سره به هم همزولے وی او په حدیث کښې وارد دی چه د درے دیرش کالو په عمر بانډے به وی. او دا صفتونه به په دوی کښې همیشه وی.

۳۸ سـ۳۹ سـ۴۰ لِّاَصْحٰبِ الْيَمِيْنِ دا متعلق دے د اِنْشَآنٰهُنَّ سره یا د اَتْرَابًا سره ځکه چه په حدیث سره ثابت دی چه نارینه د جنت به هم د درے دیرش کالو په عمر کښې وی. یا خبر دے د مبتدا محذوف (هذه النعم) دا ټول نعمتونه به د دوی د پاره وی. الْاَوَّلِيْنَ مخکښې امتونه یا د دے امت نه زمانه د صحابو مراد ده او الاٰخرین نه دا امت ټول یا د دے امت روستو خلق مراد دی.

۴۱ د دے نه تخویف اخروی شورو دے په ذکر د شپږ حالات د هغوی سره د درے علتونو نه. الشِّمَالِ عملنامه به ګس لاس کښې ورکیدیشی او جهنم به هم د میدان حشر ګس طرف ته وی د دے وجه نه ئے دوی ته اصحاب الشمال اُویل روستو د اصحاب المشئمه وئیلو نه یعنی شُوُم سبب دے د کیدلو د دوی د شمال والو نه.

۴۲ سـ۴۳ سـ۴۴ سَمُوْمٍ هغه هوا ده چه ډیره ګرمه وی او په مساماتو د بدن کښې ورننوځی. ظِلٍّ سورے ئے ورته استهزاءً ویلے دی یعنی تور لوګی به په شان د سوری ښکاره کیږی.

وَلَا كَرِيمٍ ﴿٤٤﴾ إِنَّهُمْ كَانُوا قَبْلَ ذَٰلِكَ

او نه په فائده منداوی۔ یقیناً دوی وو مخکښې د دې نه

مُتْرَفِينَ ﴿٤٥﴾ وَكَانُوا يُصِرُّونَ عَلَى الْحِنثِ

ډیر مست په مالونو د دنیا۔ او وو دوی چه همیش ولاړ کوو په گناه

یا به د دوی په گمان کښې د اول وخت نه سورے بښکاریږی۔ يَحْمُومٍ ډیر تور لوگے دا ماخوذ دے د حمم نه سکارو ته ویلے کیږی یا د حمّه نه چه پوټے د وازدے چه په اور باندے ویلے کړیشی او تور شی اشاره ده چه جهنم هم تور او لوگے ئے هم تور او د جهنمیانو مخونه به هم تور وی ځکه چه په دنیا کښې د دوی عقیدے او اعمال ظلمات او تور وو۔ او په دے ترتیب کښې اشاره ده سخت او همیشه عذاب ته ځکه چه دوی د اور د گرمئ نه تنگ شی نو هوا به غواړی نو هغه به سموم وی نو بیا به اوبه غواړی نو هغه به هم حمیم وی نو سورے به غواړی نو هغه به هم گرم او بے فائدے وی نو معلومه شوه چه دوی له په هیڅ وخت کښې د عذاب نه خلاصے نیشته۔ او د ظل تفصیل په سورة مرسلات ۳۰ ۳۱ ۳۲ ۳۳ کښې هم شته۔ وَلَا كَرِيمٍ بے فائدے ته ویلے کیږی او دا رنگ خوگ او خائسته منظر والا نه وی یعنی د اصلی سوری صفتونه به پکښې نه وی۔

۴۵ دا اول سبب د عذاب د دوی دے مُتْرَفِينَ اتراف د دنیا په نعمتونو او مزو او شهواتو سره ډیر مشغولتیا ته ئیلے کیږی ترد پورے چه د دین نه بالکل ناخبره شی او د توحید او سنت نه تکبر کوی۔ او قرطبی اتراف په حرام مال پورے خاص کړے دے او په دے کښې سرمایه دارانه نظام ته اشاره ده چه هغه جرړ د ټولو کفریاتو دے۔

فائده:- د دے فریق د عذاب اسباب تفصیلاً او د فریق اول د جزاء سبب اجمالاً ئے ذکر کړے دے او د اصحاب الیمین د جزاء سبب ئے نه دے ذکر کړے د دے په حکمت کښې ویلے شوی دی چه مجرمانو له سزا ورکول عدل دے نو که چرے اسباب ئے ذکر نه کړے شی نو خلق به وهم اوکړی چه دا ظلم دے او صالحینو ته جزاء ورکول خو فضل د الله تعالیٰ دے لیکن بیا هم وهم را تلو چه په السابقون او اصحاب الیمین باندے د فضل کولو په ریلتے په بل مخ)

الْعَظِيمِ ﴿٤٦﴾ وَكَانُوا يَقُولُونَ أَئِذَا مِتْنَا وَكُنَّا

لوئي پاندے. او دوی به ویل ایا کوم وخت چه مونږ مړه شو او شو

تُرَابًا وَعِظَامًا أَإِنَّا لَمَبْعُوثُونَ ﴿٤٧﴾

خاورے او هډوکی ایا مونږ به دوباره ژوندی کیدلے شو.

أَوَآبَاؤُنَا الْأَوَّلُونَ ﴿٤٨﴾ قُلْ إِنَّ الْأَوَّلِينَ

او ایا پلاران زمونږ زاړه. ته او وایه یقیناً مخکښ خلق

دیے سره فرق او کړے شو نو د اول فریق سره ئې اجمالی سبب په سـ ۴۲ کښ ذکر کړو اشاره ده چه د فضل سره تفاوت د عملونو ته هم اعتبار دے او عملونه د فریق اول ډیر اوچت او قابل ذکر وو او د فریق ثانی جزاء خو صرف په فضل د الله تعالیٰ سره ده.

سـ ۴۶ دا دویم سبب ذکر کوی او دا مرض د عامو مشرکانو دے که مالداروی او که فقیر وی. يُصِرُّونَ اصرار نه مراد همیش والے په گناه کولو پاندے دے چه توبه د هغے نه نه او باسی او د ثواب کار ئې نه کړی عَلَى الْحِنْثِ دا لفظ د ذنب نه زیاته معنیٰ لری ځکه چه په دیکښ معنیٰ د ماتولو د لوظ ده نو گناهِ کبیره پورے خاص دے صغیره باندے اطلاق نه کیږی. او په بلوغ باندے د حنث اطلاق مجازی دے ځکه چه بلوغ وخت د گناهګار کیدلو دے او تحنّث په معنیٰ د ډډه کول د گناه او د گنهګارو نه دے نو عبادت کولو ته ویلے کیږی.

الْعَظِيمِ هر کله چه گناه کبیره کښ مرتبے دی نو دا لفظ ئې د دے وجے ذکر کړو چه دلالت او کړی چه اکبر الکبائر مراد دے چه هغه شرک دے. او هر کله چه اتراف سبب د اصرار دے (نو په کولو نه فارغ نه دی) د دے وجے نه مترفین ئې په یصرون باندے مخکښ ذکر کړے دے.

سـ ۴۷ ـ ۴۸ دا ذکر د دریم سبب دے انکار کول د بعث بعد الموت نه او دا د لویو جاهلانو عقیده ده ځکه چه د الله تعالیٰ د قدرت او د علم نه انکار کوی. او په دیکښ همزه د استفهام درے کرته د ډیر استبعاد د پاره ذکر کړے دے چه دا د عقل او عادت نه لرے خبره ده.

الْأَوَّلُونَ کښ اشاره ده چه هغوی به ذرے ذرے شوے وی. او دا سے

وَالْاٰخِرِيْنَ ۝۴۹ لَمَجْمُوْعُوْنَ ۙ اِلٰى مِيْقَاتِ يَوْمٍ

او روستو خلق ضرور راغونډ به کړے شي مقرر وخت د ورځ ته

مَّعْلُوْمٍ ۝۵۰ ثُمَّ اِنَّكُمْ اَيُّهَا الضَّآلُّوْنَ

معلوم دی (صفتونه) د هغې - بیا به یقیناً تاسو اے ګمراهانو

الْمُكَذِّبُوْنَ ۝۵۱ لَاٰكِلُوْنَ مِنْ شَجَرٍ مِّنْ

انکار کوونکو ضرور خوړونکي به د اونې د

زَقُّوْمٍ ۝۵۲ فَمَالِـُٔوْنَ مِنْهَا الْبُطُوْنَ ۝۵۳

زقوم نه نو ډکه وونکي به د هغې نه خیټې خپلې.

استفهام د ددی په ډیرو سورتونو کښې تیر شوے دے لکه (سورة مؤمنون ۸۲ سورة صافات ۱۷، ۱۶)

۴۹ تا ۵۰ په دے کښې جواب د استفهام د هغوی دے او په دے جواب کښې تاکید او ترقی ده په حرف د اِنَّ سره او په ذکر د اٰخِرِيْنَ سره او په ذکر د لام قسم سره او په تعبیر د مجموعون سره او په لفظ میقات او یوم او معلوم سره یعنی صرف بعث به نه وی بلکه جمع د ټولو خلقو په یو میدان په یو وخت او په یو ورځ کښې به وی. مَعْلُوْمٍ نه مراد په علم د الله تعالی کښې هغه ورځ معینه ده یا مراد دا چه صفتونه د هغې په قرآن کښې بیان شویدی.

۵۱ ۵۲ ۵۳ روستو د اسبابو ذکر کولو نه درے عذابونه ذکر کوی د دے نه مخکښې ئې درے عذابونه ذکر کړے دی په هغې کښې اشاره وه چه هوا ګانے او اوبه او سوری د جهنم فائده نه ورکوی او په دے کښې اشاره ده چه خوراک څښاک د هغې هم څه فائده نه ورکوی. الضَّآلُّوْنَ په یکښې اشاره ده مرض د شرک ته چه په الحنث العظیم کښې ذکر شو او الْمُكَذِّبُوْنَ کښې اشاره ده انکار د بعث بعد الموت ته چه مخکښې ذکر شو.

مِنْ شَجَرٍ مِّنْ زَقُّوْمٍ د هغې صفات په سورة صافات ۶۲ او سورة دُخان ۴۲ کښې ذکر دی.

فَمَالِـُٔوْنَ په دے کښې اشاره ده چه د مړیدلو فائده به ورته په یل مخ)

فَشٰرِبُوْنَ عَلَيْهِ مِنَ الْحَمِيْمِ ﴿٥٤﴾ فَشٰرِبُوْنَ

نو څښئ به د هغې د پاسه د خوټکیدلو اوبو نه . نو څښئ به

شُرْبَ الْهِيْمِ ﴿٥٥﴾ هٰذَا نُزُلُهُمْ يَوْمَ

پشان د څښلو د جل د هلو اوښانو . دا میلمستیا د دوی ده په ورځ

الدِّيْنِ ﴿٥٦﴾ نَحْنُ خَلَقْنٰكُمْ فَلَوْلَا تُصَدِّقُوْنَ ﴿٥٧﴾

د جزا . موږ تاسو پیدا کړی یئ نو ولې تصدیق نه کوئ .

نه ورکوی او نقصان به پکښ ډیر وی په سبب د ډکیدلو د خیټو سره . مِنْهَا شجر جمع د شجرة وه د دے وجے نه مؤنث ضمیر ئې راجع کړو او په تانیث کښ دوی ته ډیره زور نه ده ځکه دوی به د تانیث نه نفرت کوؤ .

۵۴ ۵۵ روستو د خوراک نه د څښلو حال ذکر کوی . عَلَيْهِ ضمیر راجع دے خوراک ته یا زقوم ته او فا دلالت کوی چه دا خوراک د زقوم سبب دے د اوبو څښلو د پاره د دے وجے نه چه زقوم به ډیر تریخ او ډیر ګرم وی او د دوی په مرئ کښ به په اسانه سره نه تیریږی نو د دے وجے نه به دوی اوبه څښلو ته محتاج شی فَشٰرِبُوْنَ اشاره ده چه پشان د خوړلو د زقوم دا څښل هم هیڅ فائده نه ورکوی د پاره د تندے لرے کولو . الْهِيْمِ د هیام نه ماخوذ دے یو مرض دے د اوښانو چه اوبه څښی او نه مړیږی هغې ته جل وهلی وائي او هِيْم جمع د هیمان ده جل وهلے اوښ ته وئیلے کیږی یا جمع د هیام ده هغه ډیرے د شګو چه اوبو سره نه سیراب کیږی او نه مړیږی - او په دے تشبیه کښ د دوی ډیر قباحت ته اشاره ده - ځکه چه تشبیه د اوښ سره او هغه اوښ چه مرضی وی او د حالت د څښلو سره دا ټول بدګنړلے کیږی .

۵۶ نُزُلُ هغه خوراک څښاک چه میلمه ته اول پیش کیږی او بیا روستو ورته مقصدی خوراک څښاک په عزت سره پیش کیدیشی نو چه نُزُلُ ئې دومره قبیح دے نو روستو خوراک څښاک حال خو به د دے نه هم ناکاره وی او په نُزُلُ سره تعبیر په دوی پورے تهکم او مسخره کول دی .

۵۷ د دے ایت نه دویم باب دے تر اخره پورے په دیکښ څلور عقلی دلیلونه د تربیت سره متعلق ذکر کوی او د هر نعمت سره زوال ته هم

أَفَرَءَيْتُم مَّا تُمْنُونَ ﴿٥٨﴾ ءَأَنتُمْ تَخْلُقُونَهُ

آيا سوچ كړے دے تاسو په هغه نطفه باندے چه اړوئے په رحم كښ - آيا تاسو شكل جوړوئے دَ هغے ته

أَمْ نَحْنُ الْخَالِقُونَ ﴿٥٩﴾ نَحْنُ قَدَّرْنَا بَيْنَكُمُ

او كه مونږ شكل جوړونكى يو - مونږ مقرر كړيدے ستاسو په مينځ كښ

الْمَوْتَ وَمَا نَحْنُ بِمَسْبُوقِينَ ﴿٦٠﴾ عَلَىٰ

مرګ او نه يو مونږ عاجز كړے شوى ، په

اشاره كوى. دَ پيدائش سره مرګ. دَ فصلونو سره حُطام كيدل. دَ اوبو سره اُجاج كيدل. او دَ اور سره يُے دَ آخرت او ر ته اشاره كول ذكر كړے دى. او په دے دليلونو باندے دعوىٰ دَ توحيد متفرع ده بيا عظمت دَ قرآن يُے په شپږ حالاتو سره ذكر كړے دے چه په هغے كښ زجر هم دے بيا تخويف دے په ذكر دَ حال دَ نزع سره او عجز دَ مخلوق دَ واپس كولو دَ روح نه. بيا ذكر دَ درے اقسامو دَ خلقو دے په باره دَ مړو كښ او تفريع دَ دعوے دَ توحيد ده په آخر كښ.

په ۵۷ كښ اول دليل ذكر كوى سره دَ زجر نه. تُصَدِّقُونَ عام دے تصديق دَ توحيد او دَ بعث بعد الموت او دَ رسالت او قرآن ټولو ته شامل دے.

۵۸ ۵۹ دا تفصيل دَ خلق دے. تُمْنُونَ دَ اِمناء نه دے منى رحم كښ اچول په طريقه دَ جماع كولو سره او ءَأَنتُمْ تَخْلُقُونَهُ دا خطاب دے ټول مخلوق ته كه انبياء او اولياء وى او كه عام وى ټول دَ دے خلق نه عاجز دى.

تَخْلُقُونَهُ نه مراد هغه مختلف حالات جوړول او بدلول دى چه په سورة حج ۵ او سورة مؤمنون ۱۳ ۱۴ كښ ذكر دى.

۶۰ ۶۱ روستو دَ نعمت دَ خلق نه زوال ذكر كوى په ذكر دَ مرګ سره دَ پاره دَ دے چه په دے نعمت سره تكبر او نه كړى. قَدَّرْنَا دليل دَ تقدير دے بَيْنَكُمُ په دے كښ عبارت پټ دے يعنى زيداور بَيْنَكُمْ كړے دا مرګ ستاسو په مينځ كښ. وَمَا نَحْنُ بِمَسْبُوقِينَ. مسبوق هغه چا ته ويلے كيږى چه بل څوك ترينه مخكښ كيدے شى يعنى مغلوب او عاجز وى. او دَ دے متعلق محذوف دے يعنى (عَنْ تَقْدِيرِ الْمَوْتِ) يا مطلق دے. يا متعلق دَ دے دا لفظ دے چه عَلَىٰ أَن نُّبَدِّلَ أَمْثَالَكُمْ. نو عَلَىٰ ربائے په بل مخ)

اَنْ نُّبَدِّلَ اَمْثَالَكُمْ وَنُنْشِئَكُمْ فِيْ

دے خبرہ باندې چه بدل کړو مونږ شکلونه ستاسو او پیدا کړو تاسو لره په

مَا لَا تَعْلَمُوْنَ ﴿۶۱﴾ وَلَقَدْ عَلِمْتُمُ النَّشْاَةَ

هغه شکلونو کښې چه تاسو په ئے نه پیژنئ. او یقیناً پوهه ئے تاسو په پیدائش

الْاُوْلٰى فَلَوْلَا تَذَكَّرُوْنَ ﴿۶۲﴾ اَفَرَءَيْتُمْ مَّا

مخکنی باندے نو ولے نصیحت نه قبلوئے تاسو . ایا سوچ کړے دے تاسو په هغه

په معنٰی دَ عن سره دے او که علٰی په خپله معنٰی شی او مسبوقین پورے متعلق شی نو دَ دے نه په مخکښ قادرون پټ مراد شی. اَمْثَالَكُمْ مراد دَ دینه صورتونه او شکلونه دی یعنی دَ انسانیت نه خلاف نور شکلونه په تاسو له درکړی یا دَ اَمْثَالَكُمْ نه مراد اولاد دی یعنی چه تاسو مړه کړی او ستاسو اولاد ستاسو په بدله کښ راولی لکه چه دا نظام الهی جاری دے۔

وَنُنْشِئَكُمْ فِيْ مَا لَا تَعْلَمُوْنَ په اوله معنٰی سره مراد دَ دے نه نور شکلونه (چه مسخ کړیشی) پیدا کول دی. او په دوېمه معنٰی سره په قیامت کښې شکلونه بدلول دی یعنی دَ چا مخونه سپین خائسته او دَ چا تک تور بد شکلونه جوړول یا مراد دا دے چه روستو دَ مرګ نه بعض انسانانو له درندګان او خری نو دَ هغوی په بدن کښ مخلوط او بدل شی او بعض انسانان خاوره شی او دَ هغه خاورو نه بوټی اوتے پیدا شی او بعض انسانان په معدنیاتو کښ خلط شی نو دَ هغوی نه هغه معدنیات جوړ شی نو دا امثال او اشکال مختلفه دی چه انسانانو ته دَ هغے علم نیشته او دینه اشاره وه په سورة اسراء ۵۰ کښ دا توجیه خطیب شربینی لیکلی ده۔

۶۲ دَ خلق او دَ مرګ دَ ذکر نه روستو دَ دوباره ژوند اثبات په دلیل سره کوی چه هغه قیاس کول دی په اول ژوندی کولو باندے او دا استدلال په قرآن کریم کښ ډیر ذکر شوے دے لکه سورة روم ۲۷ مریم ۶۷ یٰسٓ ۷۷ القیامة ۳۶. النَّشْاَةَ په دمه دمه پیدا کولو ته وائی نو اول ژوند هم په مختلفو اطوارو سره وو. فَلَوْلَا تَذَكَّرُوْنَ مراد دَ دینه دوباره ژوند یادول دی په طریقه دَ قیاس کولو سره په اول ژوند باندے.

نَحۡرُثُوۡنَ ﴿۶۳﴾ ءَاَنۡتُمۡ تَزۡرَعُوۡنَهٗۤ اَمۡ نَحۡنُ

چه کرئ يئ تاسو . ايا تاسو زرغونه وئ هغه او که مونږ

الزّٰرِعُوۡنَ ﴿۶۴﴾ لَوۡ نَشَآءُ لَجَعَلۡنٰهُ حُطَامًا

زرغونوونکي يو . که چرے اوغواړو مونږ ضرور اوګرځوؤ به دا کيا ذرے ذرے

فَظَلۡتُمۡ تَفَكَّهُوۡنَ ﴿۶۵﴾ اِنَّا لَمُغۡرَمُوۡنَ ﴿۶۶﴾

نو بيا به غمونه ښکاره کوئ . چه يقيناً مونږ تاوانيان شو .

۶۳ ۔ ۶۴ دا دويم دليل دے چه پيدائش پسے دَ تربيت کولو ذکر دے .
تَحۡرُثُوۡنَ حرث ويلے کيږي زمکه شلول او دَ هغے اړول او تخم پکښے اچول دا خو انسانان کوي . دَ مَا نه مراد تخم دے . اَفَرَءَيۡتُمۡ مقصود په يکښے ترغيب دے فکر او سوچ کولو ته په تخم باندے او هغه فکر ئي ذکر کړے دے په دے قول سره ءَاَنۡتُمۡ تَزۡرَعُوۡنَهٗۤ زرع نه مراد تيغونه او فصل راويستل دي دَ تخم نه او دا په قدرت دَ هيڅ مخلوق کښے نيشته دے . او په دے سره دَ توحيد اثبات دے چه تاسو ټول (انبياء، اولياء) دَ دے نه عاجزيئ نو معلومه شوه چه مخلوق دَ خالق سره شريک نشي کيدے او دارنګ په دے سره دَ قيامت اثبات دے چه الله تعالیٰ دَ تخم نه شين بوټي را اوباسي نو تاسو به هم دَ زمکے نه دوباره راژوندي کړي . او دَ دے ايت نه معلومه شوه چه دَ حرث نسبت انسانانو ته کيديشي او دَ زرع نسبت انسانانو ته حقيقةً نشي کيدے دَ دے وجے نه حديث مرفوع کښے ذکر دي چه هيڅ څوک به دا سے نه وائي چه زَرَعۡتُ بلکه حَرَثۡتُ دِ وائي .
ابن کثير او ابن جرير دا په سند سره نقل کړيدے او په سورة فتح ۲۹ کښے الزُّرَّاعَ انسانانو ته مجازاً ويلے شويدے مراد تربيته کُراث دي .
ابن کثير ذکر کړيدي چه دَ دے نه روستو بَلۡ اَنۡتَ يَا رَبِّ ويل دَ بعض سلفو عمل دے او قرطبي دلته څه کلمات ذکر کړيدي چه دَ کروندے کولو نه روستو زميندار هغه اُوائي نو الله تعالیٰ هغه فصل لره دَ هر آفت نه محفوظ او ساتي .
۶۵ ۔ ۶۶ دَ نعمت دَ ذکر کولو نه روستو دَ هغے زوال ذکر کوي دَ دے دَ پاره چه انسان په فصلونو او باغونو باندے تکبر او نه کړي (رياتے به بل مخ )

بَلْ نَحْنُ مَحْرُوْمُوْنَ ﴿٦٧﴾ اَفَرَءَيْتُمُ الْمَآءَ

بلکه موږ بې نصيبه يو . آيا تاسو سوچ کړے دے په هغه اوبو

الَّذِيْ تَشْرَبُوْنَ ﴿٦٨﴾ ءَاَنْتُمْ اَنْزَلْتُمُوْهُ

باندے چه تاسو يې څښئ آيا تاسو راکوزے کړے دی دا

مِنَ الْمُزْنِ اَمْ نَحْنُ الْمُنْزِلُوْنَ ﴿٦٩﴾

دَ سپينو وريځو نه او که موږ راکوځوونکی يو .

حُطَامًا دَ برابريدلو دَ بوټي او دَ لوګولو نه مخکښ چه اوچ شی او دړے دړے شی ديته حطام ويلے کيږی. فَظَلْتُمْ تَفَكَّهُوْنَ تفکه دَ اضداد و نه دے خوشحالی کول او غم کول دواړو ته ويلے کيږی دلته دو يمه معنیٰ مراد ده او پښيمانتيا کول تعجب کول او بے فائدے خبرو کولو ته هم تفکه ويلے کيږی. اِنَّا لَمُغْرَمُوْنَ دا بيان دَ تفکه دے يا تقولون پټ دے دَ غرام نه ماخوذ دے په معنیٰ دَ عذاب او هلاکت سره يا دَ غرامت نه دے په معنیٰ دَ تاوان او نقصان سره. مَحْرُوْمُوْنَ يعنی زموږ نه هغه ذات روزی منع کړه چه دَ هغه سره مقابله نشی کيدے او ديته بدنصيبی ويلے کيږی او په بَلْ دَ ترقیٔ سره يې ذکر کړو اشاره ده چه غرامت صرف دَ تخم او دَ نور خرچ (چه په فصل باندے کړيږی) بربادی ده او حرمان دا دے چه دَ تخم او دَ فصل دَ فائدو نه هم ورسره محرومه شو نو په يکښ دَ ما قبل نه ترقی ده .

س ۶۸ س ۶۹ دا دريم دليل دے دَ پاره دَ اثبات دَ توحيد او دَ اثبات دَ بعث بعد الموت. او دو يمه ماده دَ تربيت ذکر کوی چه اوبه دَ باران دی. ځکه اکثر خلق اسمانی اوبه څښی. الْمُزْنِ مطلق وريځ ته يا خاص سپينے وريځ ته ويلے کيږی ځکه چه باران اکثر دَ سپينو وريځو نه وريږی. دا آيت دليل دے چه تمام مخلوق (انبياء اولياء وغيره) دَ باران ورولو قدرت نه لری نو افسوس دے دَ هغه جاهلانو په حال باندے چه هرکله سوکړه شی نو دوی بعض قبرونو ته ځی او په جاهلانه طريقو سره دَ قبرونو والا نه باران غواړی يا دَ هغه په برکت سره يې غواړی دا ټول شرک او دَ شرک طريقے دی.

لَوْ نَشَآءُ جَعَلْنٰهُ اُجَاجًا فَلَوْلَا تَشْكُرُوْنَ ﴿۷۰﴾

که چرے او غواړو مونږ او به گرځوؤ دا تریخ نو ولے شکر نه کوئ تاسو۔

نکته په دے کښې تخویف دَ زوال دَ نعمت ذکرکوی دَ دے دَ پاره چه انسان غرور او تکبر او نه کړی۔

اُجَاجًا سخت مالگین چه مرے کښې اتخلی او معده سیزی په شان دَ اُور تو تنده نه سړوی او فصلونه په هغے سره سوزی۔

فَلَوْلَا تَشْكُرُوْنَ دَ شکر مقصد دا چه دا نعمت (او به) په بندګئ دَ الله تعالیٰ کښې صرف کړے شی او صرف دَ الله تعالیٰ دَ طرف نه دا احسان اوګنړلے شی۔

او ابن کثیر مرفوع روایت نقل کړے دے چه نبی صلّی الله علیه وسلّم به او به او څښلے نو ورپسے به ئے اُویل : اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ الَّذِیْ سَقَانَا عَذْبًا فُرَاتًا بِرَحْمَتِهٖ وَلَمْ یَجْعَلْهُ مِلْحًا اُجَاجًا بِذُنُوْبِنَا۔ نو دا په ئے باندے کلمات دَ شکر اداکول دی۔

فائده ۱ :- دَ نعمت طعام په زوال کښې لام دَ تاکید داخل کړے دے لجعلناه حطامًا او په زوال دَ نعمت دَ اوبو کښې لام نه دے داخل کړے جعلناه اجاجا۔ مفسر قاسمی دَ ابن اثیر نه وجه نقل کړیده چه دَ اوبو خوند بدلیدل په عرف او عادت کښې ډیر او آسان دی او دا رنګ مالګینے اوبه په دُنیا کښې دَ خوګو اوبو نه ډیرے دی نو په دے کښې دَ لام تاکید راوړلو ضرورت نیشته۔ او دَ طعام نه حطام جوړول کله کله وی په اسبابو غیر عادیو سره (طوفان کلئ وغیره) او دارنګ هغه اثر دَ غضب دَ الله تعالیٰ وی نو دَ هغے په ذکر تاکید ته ضرورت دے دَ پاره دَ پوره تنکیر۔

فائده ۲ :- دَ اول نعمت چه نَشْاَءَةِ اولیٰ دے نه روستو فلولا تذکرون ذکر کړے دے او دَ اوبو دَ نعمت نه روستو فلولا تشکرون ذکر دے؟ وجه دا ده چه هلته کښې مقصد دَ دوباره ژوند قیاس کول دی په اول ژوند باندے او قیاس او عبرت ته تذکر ویلے کیږی۔ او دلته خو نعمت دَ خوراک او څښاک ذکر دے او دا ښکاره نعمتونه دی او تذکر دَ نعمت شکر کول دی او دَ دے وجے نه په سنت کښې دَ خوراک او څښاک دواړو نه روستو الحمدلله ویل دَ پاره دَ شکر کولو ثابت او ضروری دی۔

أَفَرَءَيْتُمُ النَّارَ الَّتِي تُورُونَ ﴿٧١﴾ ءَأَنتُمْ

ایا تاسو سوچ کړیدے په هغه اور باندے چه بلوئ ئې تاسو . ایا تاسو

أَنشَأْتُمْ شَجَرَتَهَا أَمْ نَحْنُ الْمُنشِئُونَ ﴿٧٢﴾

پیدا کړیده او نه دَ اور او که مونږ پیدا کوؤنکي یو .

نَحْنُ جَعَلْنَاهَا تَذْكِرَةً وَمَتَاعًا لِّلْمُقْوِينَ ﴿٧٣﴾

مونږ ګرځولے ده دا یاداشت (دَ اور دَ جهنم) او فائده دَپاره دَ صحرا والو .

سلے دا څلورم دلیل دے دَ اثبات دَ توحید او دَ تذکیر دَ قیامت دَپاره او د تربیت مواد ئې دریمه ماده ده . تُورُونَ دَ بعض او نو دَ پانړو او څانګو نه په مخلو سره اور راوځي لکه دَ بعض کښتو په زګړوَلو سره اور پیدا کیږی او دا رنګ تیلے را ښکل په ډبی پورے دَ دے نه هم اور پیدا کیږی دے ټولو ته دا لفظ عام شامل دے .

سلے په دے کښ عجز دَ ټول مخلوق ذکر کوی چه هغوی دَ اُور مواد نشی پیدا کولے نو ولے دَ الله تعالیٰ سره ئې شریک جوړ وئے . شَجَرَتَهَا دَ مرخ او عفار او نے چه عربو به دَ هغے دَ پانړو او څانګو مخلونه اُور راویستلو یا هره ښنه او ته مراد ده ځکه چه عقل سره ثابت شویده چه په هره ښنه او نه کښ الله تعالیٰ دَ اور ماده پیدا کړیځ یا دَ دینه مطلق اونے مراد دی چه ښنے یا اوچ لرګی چه په اور کښ سوزی او اُور پرے بلیږی . دا سے په سورة یٰس سن۸ کښ تیر شوی دی .

سلے په دے کښ دوه لوئے فائدے دَ اُور ذکر کوی اول تَذْكِرَةً یعنی په دے سره اور دَ جهنم یادیږی نو دَ هغے نه پناه غوښتلے کیږی او ویره ترینه کیدیشی . دا رنګ دَ او نو نه په اور راویستلو سره بعث بعد الموت هم معلومیږی یعنی چه الله تعالیٰ په دے اور پیدا کولو قادر دے نو انسانانو لره هم دوباره پیدا کولے شی . او دا رنګ دا تذکره ده دَپاره دَ توحید چه په دے کار باندے دَ الله تعالیٰ نه سیوا بل هیڅوک قدرت نه لري .

دویمه فائده : وَمَتَاعًا لِّلْمُقْوِينَ دَ اُور فائدے ، طعام پخول ، ځان ګرمول په یخنے کښ ، رنړا حاصلول ، او سپنے وغیره ویلے کول او دَ هغے نه څیزونه جوړول وغیره . لِلْمُقْوِينَ دَ قواء نه ماخوذ دے خالی صحراء ته ویلے کیږی یعنی هغه خلق چه په بیابانونو کښ اوسی هلته دیره وی یا مسافروی دوی دَ اُور نه

فَسَبِّحۡ بِاسۡمِ رَبِّكَ الۡعَظِيۡمِ ﴿٧٤﴾ فَلَاۤ اُقۡسِمُ

تو پاکی وایه دَ نوم دَ رب ستا چه لوئے شان والا دے. داسے نه ده زه قسم کووم

بِمَوٰقِعِ النُّجُوۡمِ ﴿٧٥﴾ وَاِنَّهٗ لَقَسَمٌ لَّوۡ تَعۡلَمُوۡنَ

په ځایونو دَ ستورو باندے ، او یقینًا دا قسم که چرے تاسو پوهیږے

فائده اغستلو ته ډیر محتاج وی - او مقوین فائده اغستونکو ته هم ویلے کیږی. او لوګے والا ته هم ویلے کیږی - او هغه ځا ته ویلے کیږی چه توښه ورسره ختم شی. او دَمطرب نه نقل دے چه فقیر او غنی دواړو ته ویلے کیږی نو دا لفظ دے ټولو معنو ته شامل او عام دے -

فائده :- په دے دلیلونو کښ خائسته ترتیب دے اول ئے پیدائش ذکر کړو سره دَ یاداشت دَ مرګ او دَ قیامت نه. بیا ئے دَ تربیت درے مواد ذکر کړل ځکه چه تربیت په خوراک سره دے نو فصلونه پیدا کول ئے ذکر کړل بیا خوراک بغیر دَ اوبو نه نشی کیدے ځکه فصل اوبو ته محتاج دے، بیا اوړه اخل اوبو ته محتاج دی بیا ډوډ ئے خوړلو کښ اوبو څښلو ته ضرورت دے او هر کله چه ډوډ ئے او دَ خوراك څښاك څیزونه بغیر دَ اور نه نشی تیاریدلے نو اور ئے ذکر کړو نو معلومه شوه چه ټول انسانان دَ الله تعالیٰ دَ لنګر نه خوراک کوی هغه ته په ټول تربیت کښ محتاج دی دَ تربیت څیزونه هغه پیدا کړیدی نو بیا ولے مشرکانو نور معبودان اولیاء پیران وغیرہ نیولے دی چه دَ الله تعالیٰ سره ئے شریک کړے دی.

۷۴ دا تفریع ده دَ تیر شوی دلیلونو په مسئله دَ توحید سره. بِاسۡمِ رَبِّكَ هر اسم دَ الله تعالیٰ دَ خاص نومونو دَ هغه نه پاک دے هر عیب او نقصان او دَشریک نه نو دا رد دے په مشرکین فی الاسماء والصفات باندے. الۡعَظِيۡمِ دا صفت دَ اسم او دَ رب دواړو کیدے شی رب عظیم شان والا او نومونه ئے هم لوئے شان والا دی.

۷۵ هر کله چه عقلی دلیلونه دَ اثبات دَ توحید او دَ قیامت دَ پاره ذکر شو اوس ترغیب ورکوی قرآن ته چه دا وحی دلیل دے. او اشاره ده چه تربیت بدنیه سره تربیت روحانیه په قرآن کریم سره ضروری دے. فَلَاۤ اُقۡسِمُ په لفظ دَ لَا کښ څلور اقوال دی اول دا چه زیاتی دے بنا په ریاتے په بل مخ )

عَظِيْمٌ ﴿۷۶﴾ إِنَّهُ لَقُرْاٰنٌ كَرِيْمٌ ﴿۷۷﴾ فِيْ كِتٰبٍ

لوئے دے — یقینًا دا قرآن دے عزت مند — په — کتاب

عادت دَ عربو بانده ے نو معنیٰ په اثبات دَ قسم سره. دویم قول دا چه لا نا فیه دے نفی دَ قسم مراد ده لیکن دَ دے قول ضعف ښکاره دے په سبب دَ دے چه روستو ئے وَ اِنَّهٗ لَقَسَمٌ ذکر کړے دے یعنی دا قسم دے نو نفی دَ دَ قسم خو نشی کیدلے. دریم قول دا دے چه لا نا فیه دے او دَ مخکښ نه انکار دَ منکرینو معلومیږی (فَلَوْلَا تُصَدِّقُوْنَ، فَلَوْلَا تَذَكَّرُوْنَ، فَلَوْلَا تَشْكُرُوْنَ) نو معنیٰ دا چه دا درے واړه کاروته (تصدیق نه کول. تذکر نه اغستل. شکر نه کول) نه دی مناسب بلکه اُقْسِمُ. دا قول ابو حیان دَ سعید بن جبیر نه نقل کړے دے او دَ دے توثیق ئے کړے دے. څلورم قول لا په اصل کښ لام دَ تاکید دے او دَ زور دَ اشباع نه الف پیدا شو معنیٰ دا چه خامخواه قسم کووم. غوره قول پدے نولو کښ زمونږ په نیز دریم قول دے او دا سے په سورة قیامت سـ۱ ـ۲ سورة تکویر ۱۵ سورة بلد ۱ سورة الحاقه ۳۸ سورة المعارج ۴۰ سورة انشقاق ۱۶ کښ راغلی دے. بِمَوَاقِعِ النُّجُوْمِ دَ ابن عباس رضی الله عنهما نه ابن کثیر روایت کړے دے چه مراد دَ دے نه نجوم دَ قرآن دی یعنی نجوم جمع دَ نجم ده قِسط او حصّے ته ویلے کیږی او قرآن لګ لګ په حِصو حِصو سره نازل کړے شوے دے نو مراد دَ مواقع نه ایاتونه او سورتونه دی. او دَ مجاهد نه نقل دے چه مراد دَ دے نه نجوم (ستوری) دَ اسمان دی او دَ مواقع نه مراد منازل دَ ښکاره کیدلو دَ هغے دی. یا ځایونه دَ غائب کیدلو دَ هغے دی یا غورځیدل دَ هغے په ورځ دَ قیامت راتللو دی.

۷۶ دا جمله معترضه ده او په مینځ دَ هغے کښ بله جمله معترضه ده. یعنی دَ قسم او دا جواب قسم چه روستو ایت کښ دے دا ټوله جمله معترضه ده او دَ دے قسم دَ عظمت دَ پاره ئے ذکر کړے ده او دَ موصوف (القسم) او صفت (عظیم) په مینځ کښ لو تعلمون بله جمله معترضه شرطیه ده او جزاء ئے حذف ده (لَوْ تَعْلَمُوْنَ عِظَمَتَهٗ لَعَظَّمْتُمُ الْمُقْسَمَ عليه) یعنی که چرے تاسو دَ دے په عظمت باندے علم لرلے نو دَ دے مقسم علیه (چه کرامت دَ قرآن دے) تعظیم به مو کولے

۷۷ ۷۸ دا جواب قسم دے او مناسبت دَ قسم او جواب دَ هغے په اوله توجیه سره

مَّكْنُوْنٍ ﴿۷۸﴾ لَّا يَمَسُّهٗۤ اِلَّا الْمُطَهَّرُوْنَ ﴿۷۹﴾

محفوظ ساتلے شوے کښ دے، لاس نه وروړی دیته مګر پاکان خلق

دا دے چه دَ قرآن کریم ایاتونه او سورتونه چه لګ لګ نازل شوی دی شهادت کوی په کرامت دَ قرآن باندے او په دویمه توجیه باندے مناسبت دا دے چه ستوری دَ اسمان ښکاره شی او بیا غائب شی نو دا رنګ تیر شوی کتابونه الهیه او انبیاء علیهم السّلام چه دَ ستورو پشان رڼا کوونکی وو دَ ښکاره کیدلو نه روستو غائب شول او قرآن کریم (چه نمر دَ رڼا دے) راښکاره شو۔ او قسم دَ پاره دَ شهادت دے لکه چه تحقیق دَ هغے په ابتدا دَ سورة یٰس کښ تیر شوی دے۔
کریمٌ کرامت دَ قرآن په ډیر وجوهو سره دے۔ کلام دَ الله تعالیٰ دے بے واسطه دَ جبریل نازل کړے شوے دے۔ سحر او کهانت او افتراء نه ده۔ مخلوق نه دے۔ دَ ډیرو فائدو او علومو نه ډک دے۔ معجز دے۔ مشتمل دے په کریم اخلاقو او احکامو باندے۔ لوستونکے دَ دے مکرم او عزت مند دے په نیز دَ الله تعالیٰ۔
فِيْ كِتٰبٍ مَّكْنُوْنٍ مراد تری نه لوح محفوظ دے لکه په سورة بروج ۲۲ کښ دی یا مراد دَ دے نه صحیفے دَ ملائکو دی او کتاب جنس. په معنیٰ دَ جمع سره دے لکه په سورة عبس ۱۳ کښ یا مراد دَ دے دا مصحفونه دی چه زمونږ په لاسونو کښ دی۔
۷۹ په دے کښ ډیر احتمالات دی۔ مَس حقیقی او مس مجازی (پوهه) ةٗ ضمیر راجع دے قرآن ته یا لوح محفوظ ته۔ اَلْمُطَهَّرُوْنَ طهارت ظاهریه مراد دَے یا باطنیه، تفصیل ئے دا دے۔ اول احتمال دا دے چه دا جمله صفت دَ قرآن دے ځکه چه بحث په باره دَ قرآن کښ دے۔ او دَ مس نه مراد لاس لګول دی او مطهرون نه مراد پاک بدن والا چه جنب او بے اودسه نه وی او دا جمله خبریه په معنیٰ دَ انشاء ده نو معنیٰ دا ده چه لاس دِ نه لګوی دَ قرآن سره بے اودسه او پلیت شخص۔ دویم احتمال دا دے چه مس په معنیٰ مجازی سره دے او طهارت نه باطنی پاکوالے مراد دے یعنی مؤحد متقی نو معنیٰ دا شوه چه نه پوهیږی په قرآن باندے مګر پاکے عقیدے او عمل والا یا نه پوهیږی په خوند دَ قرآن باندے مګر مؤمن مؤحد۔ ( پاتے په بل مخ )

یعنی مشرکان دَ قران په حقیقت باندے علم نه لری لکه دیته اشاره ده په سورة اعراف ۱۸۷ کښی۔
دریم احتمال دا دے چه دا صفت دَ لوح محفوظ دے او مس حقیقی مراد دے او مطهرون نه مراد ملائک دی نو معنیٰ دا ده چه لاس نشی لګولے دَ لوح محفوظ سره مګر صرف ملائک۔
څلورم احتمال دا دے چه دَ مس نه معنیٰ مجازی مراد ده معنیٰ دا چه علم نه لری په لوح محفوظ باندے مګر ملائک۔ په دے دواړو احتمالونو کښی رد په هغه متصوفو باندے دے چه هغوی وائی چه اولیاء هم په لوح محفوظ باندے عالمان دی او دوی هغے ته رسیږی او دَ هغے نه علم حاصلوی دا باطله عقیده ده۔
پنځم احتمال چه کتاب مکنون نه مصحف دَ ملائکو مراد دی او مس ظاهری دے نو معنیٰ دا ده چه لاس نه لګوی دَ دغه پاکو صحیفو سره (چه قران پکښی ملائکو لیکلے دے) مګر ملائک لیکونکی دَ قران لکه چه په سورة عبس ۱۵ ۱۶ کښی دی۔
فائده :- دَ قران کریم دَ لوستلو دَ پاره اودس کول بالاتفاق ضروری نه دی او مستحب دی او په حالت دَ حیض او جنابت کښی لوستلو کښی اختلاف دَ اهل علمو دے او دَ قران دَ مسه کولو دَ پاره اودس شرط دے او که نه؟
پدیکښی دَ اهل علمو اختلاف دے قرطبی ویلے دی چه اکثر اهل علم په منع باندے قائل دی او دا مذهب دَ علی او ابن مسعود او سعد بن وقاص رضی الله عنهم او سعید بن زید او عطاء او زهری او نخعی حکم۔ حماد، مالک شافعی او قول دَ امام ابو حنیفة رحمهم الله دے او دوی دلیل نیولے دے په حدیث دَ مسلم چه زمکے دَ دشمن ته قران مه اوړئ او په حدیث موطا امام مالک دَ ابن حزم کښی دی چه قران به نه مسح کوی مګر پاک شخص او دا حدیث ابوداؤد هم په مراسیل کښی ذکر کړے دے۔ او په حدیث دَ دارقطنی په واقعه دَ اسلام دَ عمر رضی الله عنه کښی هم دی چه خور ورته ویلے وؤ چه ته پلیت ئے قران ته لاس نشے لګولے۔
لیکن ابن کثیر او ابن حجر په تلخیص الحبیر کښی ویلے دی چه دَ دے په سندونو کښی نظر او مقال دے سیوا دَ حدیث دَ مسلم نه او هغه هم په مدعا باندے نیکاره دلیل نه دے ځکه چه مراد دَ هغے حدیث دا دے

تَنْزِيْلٌ مِّنْ رَّبِّ الْعٰلَمِيْنَ ﴿٨٠﴾ اَفَبِهٰذَا

| نازل کړے شوے دے دَ طرف دَ رب العالمین نه . | آیا په دا سے |
|---|---|

الْحَدِيْثِ اَنْتُمْ مُّدْهِنُوْنَ ﴿٨١﴾ وَتَجْعَلُوْنَ

| خبرو | تاسو | سُستی کوئے | او گرځوئے |
|---|---|---|---|

چه قرآن زمکے دَ دشمن ته مه اوړئے دَپاره دَ دے چه بے عزتی یئے اونه کړی . نو حاصل دا دے چه دا دلیلونه په دے مسئله کښ قطعی نه دی لیکن احتیاط دا دےچه دَ قرآن دَ مسح کولو دَ پاره دِ دَ اودس کولو اهتمام اوکړے شی .

سے دا صفت دَ لِقرآن دَپاره دے یا خبر دے دَ مبتدا محذوف ( هو ) .

تَنْزِيْلٌ په معنیٰ دَ منزل سره دے . په رَبِّ الْعَالَمِيْنَ کښ اشاره ده چه لکه تربیت دَ بدن الله تعالیٰ کوی په غِذا سره چه مخکښ ذکر شو نو دارنګ تربیت دَ روح په قرآن سره کوی او دا رد دے په هغه چا باندے چه قرآن ته سحر او کهانت او افتراء وائی .

سے دا آیت زجر دے منکرینو ته روستو دَ بیان دَ صداقت دَ قرآن نه .

مُدْهِنُوْنَ ادهان او مداهنة نرم والی او تغافل او میلان کول تجاوز ته ویلے کیږی . قرطبی ویلے دی مداهن هغه څوک دے چه ظاهر یئے دَ باطن نه خلاف وی او دَ مؤرج نه یئے نقل کړے دے چه مداهن منافق او کافر دے چه خپل جانب نرم کړی دَ دے دَپاره چه خپل کفر پټ ساتی . نو حاصل دا دے چه مداهن او مداهن په مسلمانانو کښ هغه څوک دے چه دَ باطل پرستو سره موافقت کوی او حق ورته نه ښکاره کوی او په کافرانو کښ هغه دے چه دَ مسلمانانو نه خپل کفر پټوی په دے وجه مداهنون تکذیب کوونکو ، اعراض کوونکو ، دَ کافرانو سره موافقت کوونکو ، او په باره دَ حق متلو کښ بهانے کوونکو ټولو ته شامل دے . ابو بکر بقاعی ویلے دی چه " په دے آیت کښ رد دے په هغه چا باندے چه دَ قرآن په باره کښ دَ چا نه نامناسبے خبرے واؤری ( لکه تاویلِ کول یا تحریف معنوی کول وغیره ) او بیا هم دَ هغه سره ښکاره دُشمنی نه کوی او نرمی ورسره کوی . او اهل الحاد لکه ابن عربی صاحب دَ فصوص الحکم او ابن الفارض صاحب دَ تائیه او ل هغه ( پاتے په بل مخ )

رِزْقَكُمْ اَنَّكُمْ تُكَذِّبُوْنَ ﴿۸۲﴾ فَلَوْلَآ اِذَا بَلَغَتِ

برخه ستاسو دا خبره چه دروغژن ئې گنړئ . نو ولې نه ده چه کوم وخت اورسي

الْحُلْقُوْمَ ﴿۸۳﴾ وَاَنْتُمْ حِيْنَئِذٍ تَنْظُرُوْنَ ﴿۸۴﴾

روح مرې ته او تاسو په دغه وخت کښې گورئ

کسان دی چه دا ایت هغوی ته شامل دے ځکه چه هغوی دَ قرآن په باره کښې په دا سے طریقه کلام کړے چه دین لره دَ ویخ نه اوباسی او ځوک چه دَ هغــوی دَپاره تاویلونه کوی دَ هغوی دَ طرف نه مدافعت کوی نو هغه دَ اجماع دَ امت نه خلاف کوونکے دے دَدوی نه په کتابونو کښې زیات دے" (انتهی). نو معلومه شوه چه دَ قرآن کریم دَ مخالفت کوونکو سره هیڅ قسم نرمی پکار نه ده۔

۸۲ دا هم زجر دے . رِزْقَكُمْ هرکله چه تکذیب دَ حق او دَ قرآن خوراک نه دے دَدے وجے نه په دے ایت کښې دَ مفسرینو ډیر توجیهات دی . اوله توجیه دا چه رزق په معنیٰ دَ شکر دے ځکه چه شکر سبب دَ رزق دے نو ذکر دَ مسبب اومراد ترینه سبب دے . دویمه دا چه مضاف حذف دے شکر رزقکم او دَ رزق نه مراد عام رزق دے او خوراک دے یا دَ رزق نه مراد باران دے یعنی هرکله چه باران اوشی نو ایا ستاسو شکریه کول دا دی چه دَ هغې نسبت ستورو ته کوئ لکه چه جاهلیت والو به ویل مُطِرْنَا بِنَوْءٍ كَذَا او قرطبی ویلے دی که دا نسبت په دے عقیده سره وی چه دا ستورے (نوء) پیدا کوونکے دَ وریځ او دَ باران دے نو دا صریح کفر دے او که دا عقیده وی چه دَ دے نوء (ستوری) په وخت کښې الله تعالیٰ باران راوروی نو په دیکښې هم کفر دے په نعمت دَ الله تعالیٰ باندے او کلمه دَ جهل ده او موهمه کلمه ده . خطیب شربینیؒ تفصیل کړیدے . دریمه توجیه دا چه رزق په معنیٰ دَ برخے سره دے نو معنیٰ دا چه تاسو خپله حِصّه دَ قرآن نه دا گرځولے ده چه تکذیب کوئ .

څلورمه توجیه دا چه رزق په خپله معنیٰ سره دے او معنیٰ دا چه تاسو په تکذیب باندے همیش ولے کوئ گویا که دا ستاسو خوراک او غذا ده .

۸۳ ۸۴ ۸۵ روستو دَ زجر نه ذکر کوی تخویف سره دَ بل قسم زجر نه او دا تخویف دے په مرگ سره . فَلَوْلَآ دا لفظ دَ پاره دَ زورنے استعمالیږی دلته

وَنَحْنُ اَقْرَبُ اِلَيْهِ مِنْكُمْ وَلٰكِنْ لَّا

او موږ خه نږدے یو دۀ ته ستاسو نه او لیکن نه

تُبْصِرُوْنَ ﴿۸۵﴾ فَلَوْلَآ اِنْ كُنْتُمْ غَيْرَ

وینۍ تاسو . نو ولے نه دۀ که چرے تاسو نه یۍ

پدیکښ شرطی معنیٰ نیشته دے . اِذَا بَلَغَتِ اذا شرطیه دے جزائۍ محذوف دۀ ( فرددتم الروح او امسکتم ) یعنی هرکله چه روح غټے مرۍ ته اورسیږی نو تاسو دا روح ولے نه حصاروۍ یا ولے یۍ نه واپس کوئ .
الْحُلْقُوْمَ حلق عام دے بوڼ مرۍ ته ویلے کیږی او حلقوم خاص دے په هغے پورے چه روح پکښ ځی راځی او کله ډیویل په معنیٰ سره هم استعمالیږی او داسے حالت په سورة القیامة ۲۶ کښ ذکر دے .
وَاَنْتُمْ حِيْنَئِذٍ تَنْظُرُوْنَ خطاب دے حاضرینو دَ مړی ته چه اکثر دَ هغه رشته داروی . تَنْظُرُوْنَ مړی ته او دَ هغه حالت دَ نزع ته ګورئ یا دا په معنیٰ دَ انتظار دَ مرګ دے .
وَنَحْنُ اَقْرَبُ اِلَيْهِ مراد دَ دے وجود دَ ملائکة الموت دے چه په هغه وخت کښ حاضر وی یا مراد دَ دے نه قرب دَ الله تعالیٰ دے په اعتبار دَ علم او قدرت سره . وَلٰكِنْ لَّا تُبْصِرُوْنَ مفعول پټ دے یعنی ملائکو لره نه وینۍ . نظر په محسوساتو کښ او بصر په غائب څیزونو معقولاتو کښ اکثر استعمالیږی دَ دے وجه ته اول یۍ نظر ثابت کړو په تنظرون سره او بیا یۍ بصر نفی کړو په لا تبصرون سره . تر دے ځائۍ پورے څلور حالات ذکر شول .
۸۶ ۸۷ . فَلَوْلَآ په اصل کښ داخل دے په تَرْجِعُوْنَهَا باندے . فراء ویلے دی چه دویم فَلَوْلَآ دَ اول دَ پاره اعاده دۀ او جواب دَ دواړو یو دے او بعضو علماؤ ویلے دی چه اول فلولا دَ پاره جواب پټ دے لکه چه مخکښ موږ ذکر کړے دے . او فلولا ترجعونها جزاء دۀ او په دے پورے دوه شرطونه متعلق دی ( اِنْ كُنْتُمْ غَيْرَ مَدِيْنِيْنَ اَوْ اِنْ كُنْتُمْ صٰدِقِيْنَ ) . مَدِيْنِيْنَ ماخوذ دے دَ دَانَ يَدِيْنُ نه په معنیٰ دَ جزاء او حساب او په معنیٰ دَ ملکیت هم راځی ، نو معنیٰ دَ دے جزاء ورکړے شوے ، حساب کړے شوے . ( پاتے په بل مخ )

مَدِيْنِيْنَ ﴿٨٦﴾ تَرْجِعُوْنَهَآ اِنْ كُنْتُمْ صٰدِقِيْنَ ﴿٨٧﴾

كمزوري ، چه واپس را اوګرځوئ دا روح که چرې تاسو رشتني يئ .

فَاَمَّآ اِنْ كَانَ مِنَ الْمُقَرَّبِيْنَ ﴿٨٨﴾ فَرَوْحٌ

نو که چرې دى دا روح والا دَ زيات نزدې خلقو نه، نو دهٔ لره راحت دے

وَّرَيْحَانٌ ۙ وَّجَنَّتُ نَعِيْمٍ ﴿٨٩﴾ وَاَمَّآ اِنْ كَانَ

او خوږ رزق دے او جنتونه دَ نعمتونو دي. او که چرې دے وي

او مملوک او کمزوري، حاصل دَ معنیٰ دا دے که چرې تاسو رشتيا کمزوري نه يئ او حساب درسره نشي کيدے نو بيا خو دغه روح په بدن کښې واپس را اوګرځوئ ليکن نشئ را ګرځولے نو معلومه شوه چه تاسو په تکذيب دَ قرآن او په انکار دَ توحيد او قيامت کښې دروغژن يئ .

او دا ايت ښکاره دليل دے چه الله تعالىٰ دَ چا نيته پوره کړي او روح يئ بدن نه اوباسي نو هيڅ مخلوق (ملک، نبي، ولي او ډاکټر وغيره) هغه روح بدن ته نشي واپس کولے هاں دَ معجزے په طور سره چه عيسىٰ عليه السّلام واپس کړے دے هغه خودَ الله تعالىٰ اِذن او اختيار وو دَ عيسىٰ عليه السلام په هغے کښې هيڅ قدرت او اختيار نه وو .

۸۸ ـ ۸۹ دا تقسيم دَ هغه خلقو دے درے قسمونو ته چه په هغوي باندے ځنکدن راغے او مړه شول . لکه چه دَ سورت په ابتداء کښې يئ دا سے ذکر کړے وو ليکن فرق دا دے چه هغه حالات په آخرت کښې په جنت يا په جهنم کښې دي او دلته حالات دَ وخت دَ ځنکدن دي لکه چه قرطبي دَ ربيع بن خيثم او دَ ابو الجوزاء او دَ ابو العاليه نه نقل کړيدي . الْمُقَرَّبِيْنَ دَ دے نه مراد السابقون دي کامل ايمان والا مؤمنان . فَرَوْحٌ وَّرَيْحَانٌ (رله) لفظ پټ دے . ابن کثير وئيلے دي چه دَ مرګ په وخت کښې ملائک دوي ته دا بشارت ورکوي او دَ ابو العاليه نه روايت دے چه ملائک به دوي ته په ځنکدن کښې دوه څانګے پيش کوي يو روح او بله ريحان . رَوْحٌ په معنیٰ دَ راحت او خوشحالئ . او رحمت، دين دَ الله تعالىٰ دے او دا ټولے معاني اراده کيدے شي . رَيْحَانٌ خائسته رزق، ګل دَ کشمالو، او دَ لذت په خيرو دَ الله تعالىٰ سره دے ټولو معانيو ته شامل دے .

مِنْ اَصْحٰبِ الْيَمِيْنِ ﴿٩٠﴾ فَسَلٰمٌ لَّكَ

دَ ښی لاس والو نه (نو ورته ویلی کیږي) سلام دے په تا باندے

مِنْ اَصْحٰبِ الْيَمِيْنِ ﴿٩١﴾ وَاَمَّآ اِنْ كَانَ

ته دَ ښی لاس والو نه یې . او که چیرے وی هغه

مِنَ الْمُكَذِّبِيْنَ الضَّآلِّيْنَ ﴿٩٢﴾ فَنُزُلٌ

دَ تکذیب کوونکو گمراهو نه نو دغه لره میلمستیا ده

مِّنْ حَمِيْمٍ ﴿٩٣﴾ وَّتَصْلِيَةُ جَحِيْمٍ ﴿٩٤﴾ اِنَّ

دَ خوټیدلو اوبو نه او سوځیدل دی په جهنم کښی . یقیناً

س ۹۰ س ۹۱ دا دویم قسم دے یعنی عام مؤمنان- فَسَلٰمٌ لَّكَ یعنی ملائک به ورته سلام دَ خپل طرف یا دَ الله تعالیٰ دَ طرف نه پیش کوی او ورته به وائی چه اَنْتَ مِنْ اَصْحٰبِ الْيَمِيْنِ . یا معنیٰ دا چه په تا باندے سلام دَ طرف دَ اصحاب الیمین دے چه ته به دَ هغوی سره په برزخ کښی او بیا جنت کښی ملګرے کیږے . او امام بخاری معنیٰ ذکر کړے ده چه مسلم (منلے شوے) ده ستا دَ پاره چه ته دَ اصحاب الیمین نه یې . او قرطبی لیکلی دی چه دا سلام به په دَرے وختونو کښی وی په وخت دَ قبض دَ روح کښی دویم په وخت دَ راتللو دَ منکر نکیر کښی او دریم په وخت دَ بعث بعد الموت کښی .

س ۹۲ س ۹۳ س ۹۴ په دے کښی دریم قسم ذکر کوی چه مخکښی یې هغوی ته اصحاب المشئمه او اصحاب الشمال ویلی وو لیکن دلته یې هغه صفت ذکر نه کړو ځکه چه په وخت دَ نزع او دَ قبر کښی دوی اصحاب الشمال نه نه دی یعنی عملنامه په شمال کښی ورکول یا جهنم ته بوتلل خو په ورځ دَ قیامت کښی دی . او هر کله چه تکذیب سبب دَ ضلال دے دَ دے وجے نه مکذبین یې مقدم کړل په ضالین باندے .

فَنُزُلٌ مِّنْ حَمِيْمٍ دلته هم (لهم) پټ دے نُزُلٌ هغه خوراک څښاک دے چه دَ میلمه دَ پاره تیار کړے شوی وی او دلته استعمال په طریقه دَ تهکم سره دے . تَصْلِيَةُ داخلیدل دَ پاره دَ سوځولو (رپا ته په بل مخ)

هٰذَا لَهُوَ حَقُّ الْيَقِيْنِ ﴿٩٥﴾ فَسَبِّحْ بِاسْمِ

دا پوره يقيني خبرے دي . نو پاکي وايه دَ نوم

رَبِّكَ الْعَظِيْمِ ﴿٩٦﴾

دَ رب ستا چه لوئے شان والا دے .

او دا اضافت دے مفعول ته .

فائده :- قاسمي دَ اکليل نه نقل کړيدي چه دا آيت نه دلالت کوي چه ارواح چه دَ بدنونه جدا شي نو يا به په خوشحالو کښ وي او يا به په عذاب کښ وي او ارواح دَ مؤمنانو په جنت کښ وي او ارواح دَ کافرانو په جهنم کښ دي .

ف ۹۵ :- دا تاثيد دَ ماقبل دے او خاص تنبيه ده هٰذَا اشاره ده ماقبل ټول مضمون دَ دے سورت ته يعني قيامت واقع کيدل او په هغے کښ دَ زمکو او غرونو مختلف حالات او آخرت کښ دَ درے ډلو حالات او دَ الله تعالیٰ دَ طرف نه مخلوق لوئے انعامات او بالخصوص نعمت دَ قرآن کريم او حالت دَ مرګ او په نزع او قبر کښ تنعيم او عذاب دے ټولو ته اشاره ده په هٰذَا سره .

لَحَقُّ الْيَقِيْنِ دا اضافت دَ موصوف دے صفت ته يا په عکس سره دے يا اضافت دَ عام دے خاص ته . يا اضافت دَ شئ دے خپل نفس ته يعني حق او يقين يو څيز دے . يا اليقين صفت دے دَ موصوف محذوف يعني لحق الخبر اليقين او دا سے په سورة الحاقه ف۵۱ کښ دَ ټول قرآن په باره کښ هم ذکر دے .

ف ۹۶ دا سے په ف۷۴ کښ هم تير شو وجه دَ تکرار دا ده اولاً چه دَ عقلي دليلونو نه روستو دا امر و ؤ يعني عقل دلالت کوي په تسبيح دَ الله تعالیٰ باندے . او ثانياً دَ قرآن دَ صداقت نه روستو او دَ قرآن سره متعلق دَ درے ډلو دَ حالاتو دَ بيا نه پس . يعني قرآن هم دليل دے په تسبيح دَ الله تعالیٰ باندے .

حديث دَ ابوداؤد کښ راغلے دي چه دا آيت نازل شو نو رسول الله صلی الله عليه وسلم او فرمائيل چه په دے باندے په رکوع کښ عمل اوکړئ . يعني په رکوع کښ سبحان ربي العظيم وايئ .

بِاسْمِ رَبِّكَ بآء زیاتی دَ پاره دَ تاکید ده یا معنیٰ دا چه پَیْدا کړه اسم ربك یعنی پاکی وایه په یادولو دَ نوم دَ رب ستا۔
فائدہ:۔ په دے کښ بآ داخل کړیده او په سَبِّحِ اسْمَ رَبِّكَ الْاَعْلٰی کښ بآء نه ده ذکر کړے وجه داچه عظیم صفت دَ ذات او دَ اسم دواړو دَ پاره استعمالیږی نو اشاره ده چه دَ تسبیح دَ ذات سره ئے تسبیح دَ نومونو او دَ صفتونو دَ الله تعالیٰ ملګرے کړه او اعلیٰ صرف صفت ذات دَ پاره استعمالیږی نو هلته کښ مقصود تسبیح دَ ذات ده فقط بغیر دَ ملګرے کولو دَ تسبیح دَ نومونو او صفتونو نه او بآ دلالت کوی په مصاحبت (ملګرتیا) باندے۔
والله اعلم بحکم کتابه۔
(الحمد لله ختم شو تفسیر دَ سورة واقعه په توفیق دَ الله تعالیٰ سره)

سُوْرَةُ الْحَدِيْدِ ۵۷ مَدَنِيَّةٌ ۹۴ | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | اٰيَاتُهَا ۲۹ رُكُوْعَاتُهَا ۴

سَبَّحَ لِلّٰهِ مَا فِي السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ ۚ

پاک وائی | الله تعالیٰ لره هغه څیزونه چه په آسمانونو | او | زمکه کښ دی

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

## سورة الحدید

دَدے سورت نه تر سورة ملک پورے مدنی مضامین دی چه هغه جهاد انفاق فی سبیل الله او زجرونه په منافقت کوونکو او نور اصلاحی اموردی۔
ربط دَدے سورة دَ ما قبل سره په ډیرو وجوهو سره دے۔ اوله وجه دا ده چه مخکښ سورت کښ مسئله دَ توحید دوه کرته ذکر کړه نو پدے سورت کښ ترغیب دے خرچ کولو دَ مالونو او استعمال دَ او سپنے دَ پاره دَ اشاعت دَ دے مسئلے۔
دویمه وجه دا ده چه تیر شوی سورت کښ امر په تسبیح سره او شو نو دَ دے سورت په اول کښ تسبیح دَ مخلوقاتو ذکر کوی گویا که دا علت دے دَ پاره دَ امر بالتسبیح۔ دریمه وجه دا ده چه په هغه سورت کښ امر وؤ په تسبیح دَ اسم دَ رب سره او اسم خواسم جنس دے ډیرو اسمونو او صفتونو ته شامل دے نو دَ دے سورت په ابتداء کښ دَ الله تعالیٰ ډیر نومونه او صفتونه ذکر کړل۔
دعویٰ دَ سورت۔ ترغیب انفاق فی سبیل الله ته په پنځه طریقو سره دَ ترغیب دَ جهاد او قتال ته دَ پاره دَ توحید، هغه توحید چه ثابت کړے دے په ذکر دَ اتلس اسماؤ حسنیٰ سره او په صفاتو سره۔
خلاصه دَ سورت۔ دا سورت دوه بابونو ته منقسم دے اول باب تر ۲۵ پورے دے په دیکښ اول اثبات دَ توحید دے په ذکر دَ دوویشت اسماء او صفات الٰهیه سره او بیا ترغیب دے انفاق فی سبیل الله تعالیٰ ته په پنځه طریقو سره په ۷ کښ او ۸ ۹ په دے پورے متعلق دی بیا په ۱۰ کښ۔ بیا په ۱۱ کښ او تر ۱۹ پورے په دے پورے متعلق دی بیا په ۲۰ کښ

وَهُوَ الْعَزِيزُ الْحَكِيمُ ① لَهُ مُلْكُ السَّمٰوٰتِ

او خاص هغه زورآور حکمتونو والا دے۔ خاص هغه لره بادشاهي دَ آسمانونو

وَالْاَرْضِ ۚ يُحْيِي وَيُمِيتُ ۚ وَهُوَ عَلٰى كُلِّ

او دَ زمکے ده ژوندی کول کوی او مړه کول کوی او هغه په هر

شَيْءٍ قَدِيرٌ ② هُوَ الْاَوَّلُ وَالْاٰخِرُ وَالظَّاهِرُ

څیز باندے قدرت لرونکے دے۔ هغه اول دے او روستو دے او ښکاره

او ۲۱ دَ دے سره متعلق دے بیا په ۲۲ کښ او ۲۳ ۲۴ دَ دے سره تعلق لری.

تفسیر ۱ په دے کښ دعویٰ دَ توحید ذکر ده په سَبَّحَ سره او الْعَزِيزُ الْحَكِيمُ دلیلونه دَ هغے دی. تسبیح نه مراد قولی تسبیح ده لکه چه دلالت کوی په دے باندے سورة اسراء ۴۴ او تسبیح حالی ته هم شامل ده ۔ او معنیٰ دَ تسبیح دَ شریك او ولد او دَ کفر او عجز او احتیاج او مثل ومشابه او دَ ټولو نقصانونو نه پاکوالے ۔ او الْعَزِيزُ کښ اشاره ده چه ټول مخلوق دَ الله تعالیٰ په مقابله کښ عاجز او مغلوب دے دَ دے وجے نه دَ الله تعالیٰ تسبیح وائی څوک طوعًا او څوک کرهًا نو دا دلیل دے دَ تسبیح قولی دَ پاره ۔

الْحَكِيمُ اشاره ده چه دا ټول عالم ئے په خاص ترتیب سره پیدا کړے دے دا خائسته ترتیب دلالت کوی په تسبیح باندے نو دا دلیل شو دَ تسبیح حالی.

۲ دا دویم دلیل دے لَهُ دا دلالت کوی په تخصیص باندے ۔

مُلْكُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ مراد دَ ملك نه دَ هغه حکم چلیدل دی په ټولو موجوداتو کښ طوعًا او کرهًا ۔ او دا حکم چلیدل په آسمانونو او زمکو کښ یو شان دی دَ دے وجے نه وَالْاَرْضِ سره ئے مَا ذکر نه کړو ۔

يُحْيِي وَيُمِيتُ دا دَ حکم چلیدلو دَ پاره یو مثال دے ځکه دا تصرف دَ الله تعالیٰ نه سیوا هیڅوک نشی کولے ۔

وَهُوَ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ دا مستقل دلیل دے یعنی بادشاهي ئے سره دَ کامل قدرت نه ده ۔

وَالْبَاطِنُ ۚ وَهُوَ بِكُلِّ شَيْءٍ عَلِيمٌ ﴿٣﴾

او پټ دے او هغه په هر څیز باندے پوره علم لری.

هُوَ الَّذِي خَلَقَ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضَ

خاص هغه دا سے ذات دے چه پیدا کړی دی اسمانونه او زمکه

فِي سِتَّةِ أَيَّامٍ ثُمَّ اسْتَوَىٰ عَلَى الْعَرْشِ ۚ

په شپږ ورځو کښ بیا برابر شو هغه په عرش باندے

يَعْلَمُ مَا يَلِجُ فِي الْأَرْضِ وَمَا يَخْرُجُ

پوهه دے په هغه څه چه ننوځی په زمکه کښ او هغه چه راوځی

مِنْهَا وَمَا يَنْزِلُ مِنَ السَّمَاءِ وَمَا يَعْرُجُ

دَ زمکے نه او هغه چه ښکته راځی دَ اسمان نه او هغه چه بره ورخیژی

۳ـ دا بل مستقل دلیل دے دَدے وجے نه ئے حرف عاطف نه دے راوړے او په مینځ دَدے صفتونو کښ حرف عطف ذکر کړے دے اشاره ده جمع دَ دے صفتونو ته په الله تعالیٰ کښ.

دَ دے ایت تفسیر په حدیث صحیح دَ مسلم وغیره کښ ذکر شویدے ویلے دی "الْأَوَّلُ، فلیس قبلك شیءٌ یعنی دَ ټولو موجوداتو نه ته مخکښ ئے په وجود کښ او ټول عالم لره ته وجود ورکوونکے ئے وَالْآخِرُ، فلیس بعدك شیءٌ یعنی هغه ته وجود دَ هر څیز منتهی کیږی او باقی دے روستو دَ فنا دَ هر څیز نه. وَالظَّاهِرُ فلیس فوقك شیءٌ یعنی اوچت دے دَ هر څیز نه دَ هغه نه بره هیڅ څیز نیشته او ښکاره دے وجود دَ هغه په دلیلونو یقینیو سره. وَالْبَاطِنُ، فلیس دونك شیءٌ یعنی په اعتبار دَ ذات او ماهیت سره دَ هغه نه پټ نیشته او عالِم دے په باطن دَ هر څیز باندے".

او ابن جریر ویلے دی چه مراد دا دے چه هر څیز ته بشه نژدے دے یا دا چه دَ زمکو دَ لاندے هم دَ هغه قدرت او علم دے لکه په حدیث دَ ترمذی کښ دی اګرچه منقطع حدیث دے چه په هغے کښ لهبط علی الله راغلے دے.

فِيهَا ۚ وَهُوَ مَعَكُمْ أَيْنَ مَا كُنتُمْ ۚ وَاللَّهُ

هغه ته . او هغه ستاسو سره دے هر ځائے چه یئ تاسو . او الله تعالیٰ

بِمَا تَعْمَلُونَ بَصِيرٌ ﴿٤﴾ لَّهُ مُلْكُ السَّمَاوَاتِ

ستاسو عملونو لره لیدونکے دے . خاص هغه لره بادشاهي دَ آسمانونو

سترا بل دلیل عقلي مستقل دے او پنځه صفات دَ الله تعالیٰ په کښ ذکر دي . خلق ، استواء ، علم ، معیّت ، بصیر . تفصیل دَ ستة ایام په سورة اعراف ۵۴ یونس ۳ هود ۷ فرقان ۵۹ سجده ۴ ق ۳۸ سورة حٰم سجده ۹ کښ تیر شوید ے او مسئله دَ استواء هم په سورة اعراف ۵۴ سورة یونس ۳ سورة رعد ۲ طٰه ۵ فرقان ۵۹ السجده ۴ کښ تیره شویده حاصل دَ هغے دا دے چه عرش او علي او استواء درے واړه لفظونه په معنیٰ حقیقي سره مراد دي لیکن دَ هغے کیفیت مونږ ته معلوم نه دے مونږ په هغه بغیر دَ تمثیل او تشبیه دَ مخلوق نه متو او تاویل به یئ نه کوو . يَعْلَمُ مَا يَلِجُ فِي الْأَرْضِ دا ہے په سورة سبا ۲ کښ تیر شویدي هلته دا دلیل دَ حمد دَ پاره وو او په دے سورت کښ دلیل دَ تسبیح دے وَهُوَ مَعَكُمْ (سوال) په مینځ دَ استواء علی العرش او معیت دَ مخلوق سره تعارض دے (جواب) بعض اهل علمو ویلے دي چه تعارض په دے دواړو کښ په صفاتو دَ مخلوق کښ دے او صفات دَ خالق هیڅ مشابهت دَ صفتونو دَ مخلوق سره نه لري یعني استواء او معیت دواړه په حقیقت باندے حمل دي او کیفیت دَ دواړو مجهول دے او اکثر اهل علم وائي چه مراد دَ معیت نه معیت په علم او په قدرت سره دے او شیخ الاسلام ابن تیمیه رحمه الله په شرح دَ حدیث النزول کښ او په مجموعه فتاوی ص ۱۳۶/۳ ص ۱۴۲/۳ ص ۱۱۳/۵ کښ دَ دے تشریح کړیده او امام ذهبي دَ امام ابوحنیفه رحمه الله نه په کتاب مختصر العلو ص ۱۳۵ کښ هم دا سے نقل کړیدي او ابن عبد البر ذکر کړیدي چه دا اجماع دَ صحابو او دَ تابعینو ده او دا منقول ده دَ ابن عباس او ضحاك او مقاتل او سفیان ثوري او احمد بن حنبل رحمهم الله نه ابن جریر هم په تفسیر کښ ویلے دي چه الله تعالیٰ عالم دے په تاسو او په عملونو ستاسو باندے او سره دَ دے هغه په عرش باندے دَ آسمانونو دَ پاسه دے . (سوال) دا خو تاویل دَ ریاتے په بل مخ )

وَالْاَرْضِ ۭ وَاِلَى اللّٰهِ تُرْجَعُ الْاُمُوْرُ ۝۵ يُوْلِجُ

او د زمکے دہ - او خاص اللہ تعالیٰ تہ گرځولے شی ټول کارونه - ننه باسے ته

الَّيْلَ فِي النَّهَارِ وَيُوْلِجُ النَّهَارَ فِي الَّيْلِ ۭ

شپه په ورځ کښ او ننه باسے ته ورځ په شپه کښ .

وَهُوَ عَلِيْمٌۢ بِذَاتِ الصُّدُوْرِ ۝۶ اٰمِنُوْا بِاللّٰهِ

او هغه پوره عالم دے په هغه خبرو چه په سینو کښ دی . ایمان راوړئ په الله تعالیٰ باندے

وَرَسُوْلِهٖ وَاَنْفِقُوْا مِمَّا جَعَلَكُمْ مُّسْتَخْلَفِيْنَ

او په رسول د هغه باندے او خرچ کوئ د هغه مال نه چه جوړکړی ئے تاسو وارثان

فِيْهِ ۭ فَالَّذِيْنَ اٰمَنُوْا مِنْكُمْ وَاَنْفَقُوْا لَهُمْ

په هغے کښ. نو هغه کسان چه ایمان ئے راوړے دے ستاسو نه او خرچ ئے کړے دے دوی لره

په معنیٰ د مع کښ او تاویل خو په صفاتو د الله تعالیٰ کښ خلاف دے د مذهب
د سلف صالحین نه او بدعت دے ؟ (جواب) ابن قدامه المقدسی په کتاب
ذم التاویل کښ جواب ذکر کړے دے چه دا تاویل نه دے ځکه چه تاویل
اړول د لفظ دی د ظاهر خپل نه او د معیت ظاهری معنیٰ هم دا ده چه په علم
او قدرت سره د دوی سره دے ځکه چه لفظ د مع د اختلاط (د یو ذات
د بل سره) د پاره نه دے وضع شوے او کله مثلے شی چه دا تاویل د سلفو
صالحینو نه نقل دے نو دے ته تاویل محمود ویلے کیږی - او هغه تاویل
مذموم دے چه د سلف صالحین نه نقل نه وی -

ف دا بل دلیل مستقل دے په دویم ایت کښ اشاره وه ملك د دُنیا ته او په دے
کښ اشاره ده ملك د اخرت ته د دے وجے نه دلته د اخرت ذکر ئے کړے دے
په والی الله ترجع الامور سره -

ف دا هم مستقل دلیل عقلی دے په تصرف کولو سره په زمانه کښ او دا ایلاج
په اکثرو طرفونو د زمکه کښ دے چه کله ورځ اوګده وی او کله شپه. تردے
ځائے پورے خلاصه د دلیلونو دا ده چه تصرف کوونکے په هر څه کښ او عالِم

أَجْرٌ كَبِيرٌ ﴿٧﴾ وَمَا لَكُمْ لَا تُؤْمِنُونَ بِاللَّهِ ج

ثواب لوئے دے . او څه وجه ده تاسو لره چه ایمان نه راوړئے تاسو په الله تعالیٰ باندے

وَالرَّسُولُ يَدْعُوكُمْ لِتُؤْمِنُوا بِرَبِّكُمْ

او (حال داچه) رسول دعوت درکوی تاسو ته دَ پاره دَدے چه ایمان راوړئے په رب خپل باندے

وَقَدْ أَخَذَ مِيثَاقَكُمْ إِنْ كُنْتُمْ مُؤْمِنِينَ ﴿٨﴾

او یقینًا اخستے دے الله تعالیٰ لوظ ستاسو که چرے تاسو مؤمنان یئے .

په هرڅیز باندے صرف الله تعالیٰ دے او په دے کښ دَ هغه هیڅ شریک نیشته تو دا دلیل شو په تسبیح دَ هغه باندے.

ے په دے ایت کښ دَ ترغیب الی الانفاق اوله وجه ده حاصل یئے دا دے چه دا مالونه په حقیقت کښ ستاسو نه دی تاسو په دے کښ وکیلان او نائبان دَ خپلو مشرانو یئے نو دا مالونه په صحیح مصرف کښ خرچ کړئے چه فائده درکړی. اٰمِنُوا امر په ایمان سره یئے مخکښ ذکر کړو یو خو دَدے وجے نه چه بغیر دَ ایمان نه انفاق کول برباد دی. دویمه وجه دا ده چه په صحیح ایمان سره انفاق کول اسانیږی او هر کله چه تیر شوی دلیلونه مقتضی دَ ایمان دی دَ دے وجے نه په طریقه دَ نتیجے سره بغیر دَ عطف نه اٰمنوا یئے ذکر کړو. وَاَنْفِقُوْا مراد دَ دے نه عام دے زکوٰة او صدقات واجبه ته شامل دے او بالخصوص خرچ کول دَ پاره دَ اشاعت دَ توحید اول مراد دی.

مِمَّا جَعَلَكُمْ مُّسْتَخْلَفِيْنَ فِيْهِ حسن بصری نه روایت دے چه مراد دَ دے نه استخلاف دے په وراثت سره دَ پلارانو نه نو اشاره ده چه دا مالونه لکه چه ستاسو دَ مشرانو نه میراث کښ پاتے شوی دی نو دا شان به ستاسو نه هم پاتے کیږی او دا احتمال هم شته چه مراد دَ دے نه استخلاف من الله تعالیٰ دے یعنی مالونه په حقیقت کښ دَ الله تعالیٰ دی لیکن تاسو یئے دَ لګ وخت دَ پاره په دے کښ عارضی مالکان ګرځولے یئے نو دا دَ هغه د حکم مطابق خرچ کړئے. فَالَّذِيْنَ اٰمَنُوْا اه اول په امر سره ایجاب وو او س په بشارت سره ترغیب ذکر کوی.

ے دا هم متعلق دے دَ تیر شوی ترغیب سره یعنی اول (پاتے په بل مخ)

هُوَ الَّذِیۡ یُنَزِّلُ عَلٰی عَبۡدِهٖۤ اٰیٰتٍۭ بَیِّنٰتٍ

الله تعالیٰ هغه ذات دے چه نازلوی په بنده خپل باندے آیاتونه ښکاره

لِّیُخۡرِجَكُمۡ مِّنَ الظُّلُمٰتِ اِلَی النُّوۡرِ ؕ

د دے د پاره چه اوباسی تاسو د تیارو نه رڼا ته .

وَ اِنَّ اللّٰهَ بِكُمۡ لَرَءُوۡفٌ رَّحِیۡمٌ ﴿۹﴾

او یقیناً الله تعالیٰ په تاسو باندے ضرور ډیر شفقت کوونکے رحم کوونکے دے .

داچه رسول صلی الله علیه وسلم ایمان او انفاق ته داعی وو او دویم داچه ستاسو ته لوظ اغستلے شوے دے او دریم داچه د ایمان تقاضا دده - وَمَا لَكُمۡ په دیکښې عدم د عذر مراد دے یعنی د ایمان نه هیڅ مانع نیشته او اسباب داعیه شته د دے وجے ته ایمان فرض دے - لَا تُؤۡمِنُوۡنَ بِاللّٰهِ په دیکښې اشاره ده هغه ایمان ته چه سبب د انفاق وی لکه چه مخکښې آیت کښې تیر شو - وَالرَّسُوۡلُ یَدۡعُوۡكُمۡ دا اول سبب د ایمان او انفاق دے او اشاره ده چه وجوب په شرع باندے موقوف دے. وَقَدۡ اَخَذَ مِیۡثَاقَكُمۡ مراد د میثاق نه میثاق فطری او دلیلونه قائمول او میثاق ایمانی دے نو دا دویم سبب دے د ایمان او انفاق - اِنۡ كُنۡتُمۡ مُّؤۡمِنِیۡنَ که مؤمنانو ته خطاب وی نو اِنۡ په معنیٰ د اِذۡ سره دے یا تاکید مراد دے یعنی تقاضا د ایمان داده چه انفاق اوکړئ او که خطاب کافرانو ته وی نو ان په خپله معنیٰ سره دے.
سف دا هم د ترغیب سره متعلق دے یعنی د آیات بینات (په باره د ایمان او انفاق کښې) تابعداری کول سبب د اخراج دے د ظلماتو نه نور ته او سبب د رافت او رحمتِ الٰهیه دے.

عَلٰی عَبۡدِهٖۤ چه هغه محمد رسول الله صلی الله علیه وسلم دے او په دے وصف سره ئے ځکه ذکر کړو اشاره ده چه هغه هم عبدیت د الله تعالیٰ کوی په ایمان او انفاق کولو سره اٰیٰتٍۭ بَیِّنٰتٍ مراد د دے نه قرآن کریم دے ځکه چه قرآن کښې دلیلونه او احکام الٰهیه ښکاره او یقینیه دی - لِّیُخۡرِجَكُمۡ ضمیر فاعل الله تعالیٰ ته راجع دے یا عبد ته راجع دے الظُّلُمٰتِ جهل، کفر، شرک، خواهشاتِ متفرقه او بخل - اِلَی النُّوۡرِ علم، توحید، ایمان، هدایت او یقین. لَرَءُوۡفٌ رافت کښې اشاره ده چه ستاسو نه ظلمات دفع کوی. رَّحِیۡمٌ رحمت کښې اشاره ده رڼا ورکولو ته.

وَمَا لَكُمْ أَلَّا تُنفِقُوا فِي سَبِيلِ اللَّهِ وَلِلَّهِ
او څه وجه ده ستاسو چه خرڅه نه کوئ په لار د الله تعالیٰ کښ او خاص الله تعالیٰ لره
مِيرَاثُ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ ۚ لَا يَسْتَوِي
میراث د اسمانونو او د زمکے دے برابر نه دی
مِنكُم مَّنْ أَنفَقَ مِن قَبْلِ الْفَتْحِ وَقَاتَلَ ۚ
ستاسو نه هغه څوک چه خرچ ئے کړیدے مخکښ د فتحے نه او جنګ ئے کړیدے
أُولَٰئِكَ أَعْظَمُ دَرَجَةً مِّنَ الَّذِينَ
دغه کسان ډیر لوئے درجے والا دی د هغه کسانو نه
أَنفَقُوا مِن بَعْدُ وَقَاتَلُوا ۚ وَكُلًّا وَعَدَ اللَّهُ
چه خرچ ئے کړیدے روستو او جنګ ئے کړیدے۔ او هر یو سره وعده کړیده الله تعالیٰ
الْحُسْنَىٰ ۚ وَاللَّهُ بِمَا تَعْمَلُونَ خَبِيرٌ ﴿١٠﴾
خائسته (جنت) او الله تعالیٰ ستاسو په عملونو باندے پوره خبردارے دے

سلا دادویمه وجه ده د وجوهو د ترغیب الی الانفاق نه په ترقیٔ سره په بیان کښ۔ یعنی که او مثلے شی چه تاسو بالفرض اصلی مالکان د دے اموالو ئے لیکن ټول به مړه کیږے او مالونه به ټول الله تعالیٰ ته پاتے کیږی نو پکار دادی چه اوس ئے د مرګ نه وړاندے د الله تعالیٰ په لار کښ خرچ کړئے۔

وَلِلَّهِ مِيرَاثُ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ دا سے په سورة آل عمران سـ۱۸۰ کښ هم شته۔ میراث په اصل کښ استحقاق بے عوضه او بے تکلیفه ته ویلے کیږی۔ تو اشاره ده چه دا ټول عالم به د انسانانو نه خالی شی او صرف الله تعالیٰ به باقی وی او د هغه سره به د بل هیڅ حق او تصرف نه وی۔

لَا يَسْتَوِي مِنكُمْ ا ه په دے کښ تفاوت د درجاتو د مجاهدینو او د انفاق کوونکو ذکر کوی او دے دوارو درجو ته په سورة واقعه کښ اشاره ده چه یو سابقون دی او بل اصحاب الیمین دی او دا په صحابه کرامو کښ هم وو (باقے په بل مخ)

مَنْ ذَا الَّذِيْ يُقْرِضُ اللّٰهَ قَرْضًا حَسَنًا

خوک دے هغه کس چه قرض ورکړي الله تعالیٰ ته قرض ښائسته (په اخلاص)

فَيُضٰعِفَهٗ لَهٗ وَلَهٗٓ اَجْرٌ كَرِيْمٌ ﴿۱۱﴾ يَوْمَ

نو زیات به کړي هغه (قرض) دهٔ لره اودهٔ لره ثواب دے عزت والا - په هغه ورځ

ځکه چه الفتح نه مراد صلح حدیبیه یا فتح مکه ده او دا رنګ په روستو امت کښ هم دا موجود دی ځکه چه الفتح نه عام فتحه مرادکیدے شي یعني په یو ملک کښ چه دَ توحید او اسلام فتح او غلبه نه وي را غلے او په دغه وخت کښ چه څوک جهاد او انفاق کوي نو هغوي غوره دي دَ هغه چا نه چه روستو دَ غلبے نه جهاد او انفاق کوي. دَ لَا يَسْتَوِيْ مقابل محذوف دے يعني مَنْ لَّمْ يَفْعَلْ كَذٰلِكَ يا مِنَ الَّذِيْنَ اَنْفَقُوْا اه دَ دے مقابل دے معنیٰ. وَكُلًّا وَّعَدَ اللّٰهُ الْحُسْنٰى او دا سے په سورة النساء ۹۵ کښ ذکر شويدی او په حدیث دَ مسلم کښ را غلے دي اَلْمُؤْمِنُ الْقَوِيُّ خَيْرٌ وَاَحَبُّ اِلَى اللّٰهِ مِنَ الْمُؤْمِنِ الضَّعِيفِ وَفِيْ كُلٍّ خَيْرٌ -او دا جمله دَ دے دَ پاره ذکر شوه چه دَ دويم جانب ذَم او بدي او نکړے شي.

۱۱ دا دريمه وجه ده دَ وجوهو دَ ترغيب الى الانفاق نه په ترقئ سره - يعني قرض کړه چه مالونه ستا هميشه دي ليکن دَ قرض په طور سره ئے ورکړه دا مروّت او انسانيت دے - قرض په اصل کښ پريکولو ته ويلے کيږي - ليکن په عرف کښ مال ورکول بل چا ته بغير دَ عوض نه دَ پاره دَ دے چه فائده ترينه واخلي او بيا واپس ادا کړيشي او په عرف دَ عربو کښ هرے نيکئ کولو ته هم ويلے کيږي نو بنا په اول معنیٰ عرفي سره صدقه او انفاق في سبيل الله ته قرض مجازًا او ترغيبًا ويلے کيدے شي ځکه دا دَ الله تعالیٰ دَ دين سره امداد کول دي. قَرْضًا حَسَنًا. قرطبي دَ قشيري نه نقل کړيدي چه دَ قرض حسن لس شرطونه دي -اخلاص دَ نيت، طلب دَ رضا دَ الله تعالیٰ، دَ حلال مال نه، کره مال ورکول، مخکښ دَ حال دَ ځنکدن نه ورکول، پټ ورکول، احسان او اذي نه کول، ورکړے شوے صدقه لګه ګنړل - محبوب مال ورکول، ډير قيمت والا ورکول، دا ټول سبب دَ حُسن دے په انفاق کښ.

تَرَى الْمُؤْمِنِيْنَ وَالْمُؤْمِنٰتِ يَسْعٰى نُوْرُهُمْ

چه وینې به ته مؤمنان سړی او مؤمنې زنانه چه منډې به وهي رڼا دَ دوی

بَيْنَ اَيْدِيْهِمْ وَبِاَيْمَانِهِمْ بُشْرٰىكُمُ الْيَوْمَ

مخې دَ دوی ته او په ښی طرفونو دَ دوی کښې (وئیلے کیږی به) زیرے ستاسو نن

جَنّٰتٌ تَجْرِيْ مِنْ تَحْتِهَا الْاَنْهٰرُ خٰلِدِيْنَ

جنتونه دی چه بهیږی به لاندې دَ هغې نه ویالې همیشه به وی

فِيْهَا ۚ ذٰلِكَ هُوَ الْفَوْزُ الْعَظِيْمُ ﴿۱۲﴾ يَوْمَ

په هغې کښې دا لویه ده کامیابي . په هغه ورځ

فَيُضٰعِفَهٗ لَهٗ ضعف دوه چنده وی یا باب مفاعله دَ پاره دَ مبالغې ده نو دَ هغې دوچنده کولو انتها معلومه نه ده او مراد دَ دې ثواب په ډیرو چندونو سره زیاتی ورکول دی لیکن ضمیر اول یې قرض ته راجع کړو اشاره ده گویا چه هغه مال (قرض ورکړے شوے) ورله ډیر کړی نو دَ هغې دَ وجې ثواب یې هم ډیر شی. وَلَهٗ اَجْرٌ كَرِيْمٌ دا نورو ثوابونو ته اشاره ده بغیر دَ صدقې ورکولو نه چه دَ هغې سره کرامت او عزت کول هم دی.

۱۲ دا بشارت اخرویه دے مؤمنانو انفاق کوونکو ته. يَوْمَ ظرف متعلق دے په وَلَهٗ اَجْرٌ كَرِيْمٌ پورے یا لفظ اذکر مقدّر دے. تَرَى هر هغه چا ته خطاب دے چه لیدل به کولے شی په ورځ دَ قیامت کښې.

نُوْرُهُمْ دا نُور حقیقتًا به وی په سبب دَ ایمان او اتباع سنت او انفاق فی سبیل الله سره او دا نُور دَ هغه نور نه سیوا دے چه دَ دوی په مخونو او لاسونو او خپو باندے ښکاریږی په سبب دَ ایمان او اودسونو کولو سره.

بَيْنَ اَيْدِيْهِمْ وَبِاَيْمَانِهِمْ دا دواړه طرفونه دَ نیک بختو دَ پاره خاص دی دوی ته به دَ مخې طرف نه په ښی لاسونو کښې عملنامې هم ورکیدلے شی نو رڼا به هم په دې دواړه طرفونو کښې وی. خطیب او رازی وئیلی دی چه دَ ایمان او عمل صالح په سبب سره رڼا به مخې طرف ته وی او دَ انفاق دَ وجې نه به رڼا په ښی طرف باندے وی ځکه انفاق یې په ښی لاس سره کړے دے دَ سنت مطابق. په دے معنی سره بَا په بِاَيْمَانِكُمْ کښې په معنیٰ دَ عن سره ده او دَ ضحاک نه روایت دے په بل مخ)

يَقُوْلُ الْمُنٰفِقُوْنَ وَالْمُنٰفِقٰتُ لِلَّذِيْنَ

چه وائي به منافقان سړي او منافقې ښځې هغه کسانو ته چه

اٰمَنُوا انْظُرُوْنَا نَقْتَبِسْ مِنْ نُّوْرِكُمْ ۚ قِيْلَ

ايمان يې راوړے دے انتظار اوکړئ زمونږ چه واخلو مونږ ستاسو د رڼا نه او به وئيلے شي

ارْجِعُوْا وَرَآءَكُمْ فَالْتَمِسُوْا نُوْرًا ۭ فَضُرِبَ

اوګرځئ واپس شاګانو ستاسو ته نو اولټوئ رڼا نو جوړ به شي

بَيْنَهُمْ بِسُوْرٍ لَّهٗ بَابٌ ۭ بَاطِنُهٗ فِيْهِ الرَّحْمَةُ

د دوی په مينځ کښې يو ديوال چه د هغه به دروازه وی دننه به په هغې کښې رحمت وی

وَظَاهِرُهٗ مِنْ قِبَلِهِ الْعَذَابُ ۭ﴿١٣﴾ يُنَادُوْنَهُمْ

او د بهر د طرف د هغې نه به عذاب وی ۔ ١ آوازونه به کوی هغوی ته

روايت دے چه بأ په معنیٰ د فی سره ده او دا خبر مقدم دے او مبتدا يې پټه ده يعنی دَ فِيْ اَيْمَانِهِمْ كُتُبُ اَعْمَالِهِمْ. ر دَ دوی په حق راسو نوکښې عملنامے وی او رنړا به صرف مخے طرف ته وی، والله اعلم) او داسے په سورة تحريم سـ ٨ کښې دی. بُشْرٰىكُمُ الْيَوْمَ جَنّٰتٌ ، يُقَالُ لَهُمْ په اول کښې دُخُوْلُ لفظ د جنات نه مخکښې پټ مراد دے يا دا جمله حاليه ده په تقدير د يُبَشَّرُوْنَ سره ۔

سـ ١٣ دا تخويف اخروی دے منافقينو ته دا هغه خلق دی چه هسے دعوے د ايمان يې کولے او حقيقت کښې يې ايمان نه وؤ او انفاق يې هم نه کوؤ بلکه بخل يې کوؤ او نورو خلقو ته يې هم په بخل سره امر کوؤ - يَوْمَ بدل دے د مخکښې يوم نه يا اذکر مقدر دے يا متعلق دے په الفوز العظيم پورے ۔

اُنْظُرُوْنَا په معنیٰ د نظر کولو په نظر د شفقت سره دے يا په معنیٰ د انتظار کولو دے - نَقْتَبِسْ اقتباس د بلے شوے رنړا نه ځان د پاره ليت بلول ګمراد ترينه رنړا حاصلول دی - او په دے کښې دوه قولونه د مفسرينو دی اول قول دا چه منافقانو له به هم څه نُور ورکړے شی او بيا به مړکړے شی دويم قول دا چه دوی له نُور نيشته صرف اميد يې دا دے چه د مؤمنانو په نُور سره

أَلَمْ نَكُنْ مَّعَكُمْ ۖ قَالُوا بَلَىٰ وَلَٰكِنَّكُمْ فَتَنتُمْ

آیا مونږ ستاسو ملګری نه وُو! دوی به اوائی هاؤ لیکن تاسو ګمراه کړے وُو

أَنفُسَكُمْ وَتَرَبَّصْتُمْ وَارْتَبْتُمْ وَغَرَّتْكُمُ

خپل ځانونه او انتظار هم کوؤ او پوخ شک کښ پراته وئے او دهوکه کړے وئے تاسو

الْأَمَانِيُّ حَتَّىٰ جَاءَ أَمْرُ اللَّهِ وَغَرَّكُم بِاللَّهِ

خپلو خواهشاتو ترد ے پورے چه راغے حکم دَ اللّٰه تعالیٰ او دهوکه کړے وئے تاسو په اللّٰه تعالیٰ

الْغَرُورُ ﴿١٤﴾ فَالْيَوْمَ لَا يُؤْخَذُ مِنكُمْ

باندے دهوکه ورکوونکی. نو نن به نشی اخستلے کیدے ستاسو نه

به مونږ په صراط باندے لاړ شو لیکن هغوی خو ډیر تیز په صراط باندے تیر شول نو منافقان دَ رڼړا نه بالکل محروم شول. قِيلَ ارْجِعُوا وَرَاءَكُمْ دا قول دَ مؤمنانو یا دَ ملائکو دَ طرف نه دے او مراد ارجعوا نه ناامیده کول دی دَ رڼړا نه وَرَاءَكُمْ دَ دے نه مراد دنیا ده ځکه چه نُور په توحید او انفاق سره په دُنیا کښ حاصلیدلو. یا مراد ترینه میدان حشر دے چه په هغے کښ مؤمنانو ته نُور حاصل شوے دے. بِسُورٍ او دے ته حجاب او اعراف هم ویلے شویدے په سورة اعراف ۴۶ کښ بَاطِنُهُ فِيهِ الرَّحْمَةُ مراد دَ رحمت نه جنت دے. الْعَذَابُ دَ دے نه مراد جهنم دے یعنی پدغه دروازه باندے صرف جنت والا داخلیږی او منافقانو ته په هغے کښ اجازت دَ داخلیدلو نه ملاویږی نو هغوی به جهنم ته تزدے کړے شی.

۱۴ يُنَادُونَهُمْ نداء دَ لرے دَپاره وی اشاره ده چه مؤمنان به دَ دوی نه لرے لرے لاړ شی او دروازه به بنده شی نو منافقان به په چغو سره آواز ورکوی. مَّعَكُمْ په جماعاتو او غزواتو او ټولو واجباتو کښ. وَلَٰكِنَّكُمْ فَتَنتُمْ الخ دَ منافقانو پنځه اوصاف ئے ذکر کړے دی چه په سبب دَ هغے دغه عملونه برباد شویدی. اول وصف فَتَنتُمْ په فتنه دَ شرک او نفاق کښ ئے ځان غورځولے دے او دا سبب دَ تباهئ دے ځکه ئے ورته فتنه اُویل. دویم وَتَرَبَّصْتُمْ دَ نبی صلی اللّٰه علیه وسلم او دَ مؤمنانو په باره کښ دَ حوادثو انتظار کوئ ر پاتے په بل مخ)

فِدْيَةٌ وَّلَا مِنَ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا ۭ مَاْوٰىكُمُ النَّارُ ۭ

هيڅ جرمانه او نه د هغه کسانو نه چه کفر ئے کړے دے ځائے د ورتللو ستاسو اُور دے

هِيَ مَوْلٰىكُمْ ۭ وَبِئْسَ الْمَصِيْرُ ﴿۱۵﴾ اَلَمْ يَاْنِ

هغه ستاسو سره لائق دے او بد ځائے د ورتللو دے دا اُور — آیا وخت نه دے نزدے شوے

لِلَّذِيْنَ اٰمَنُوْٓا اَنْ تَخْشَعَ قُلُوْبُهُمْ

مؤمنانو ته چه عاجزی اوکړی زړونه د دوی

لِذِكْرِ اللّٰهِ وَمَا نَزَلَ مِنَ الْحَقِّ ۙ وَلَا يَكُوْنُوْا

د الله تعالیٰ یا داشت ته او هغه حق ته چه نازل شوے دے او چه نشی دوی

چه دوی ختم شی نو تاسو به بیا کفر ښکاره کړئے لکه سورة توبه سه ۹۸ سه ۵۲۔ او دا رنګ په توبه کولو سره روستو والے کول هم تربص دے۔ دریم وَارْتَبْتُمْ په توحید او صداقت د رسول او بعث بعد الموت او په وعده د الله تعالیٰ کښ تاسو شکونه کوئے۔ څلورم وَغَرَّتْكُمُ الْاَمَانِيُّ بے دلیله مسئلے او خبرے چه ناکاره ملا یا نو او پیرانو د ځان نه جوړے کړیدی او دا رنګ اوګډه امیدونه او ارمانونه په دے سره تاسو دهوکه شویوئے او په دے وجے سره مو په توحید او رسالت باندے په زړه کښ یقین نه کوو۔ حَتّٰى جَآءَ اَمْرُ اللّٰهِ دا غایه ده د څلورو وارو حالتونو او اَمْرُ اللّٰهِ نه مراد مرګ او قیامت دے۔ پنځم وَغَرَّكُمْ بِاللّٰهِ الْغَرُوْرُ دا سبب دے د مخکښ ټولو اوصافو د پاره د دے وجے نه ئے روستو مستقل ذکر کړو او د دے تفسیر په سورة لقمان سه ۳۳ او سورة فاطر سه ۵ کښ تیر شویدے۔

سه ۱۵ دا تخویف اخروی دے او دا داخل دے لاندے د قول د مؤمنانو۔ منافقانو ته یا دا قول د الله تعالیٰ یا د ملائکو دے دوی ته۔

فِدْيَةٌ هیڅ قسم فدیه نه په مال او نه په نفس سره او نه په لګ مال او نه په ډیر مال سره۔ او په دے کښ د دوی امید قطع کول دی د نجات نه۔ مَوْلٰىكُمْ په معنیٰ د اولیٰ سره دے یا په معنیٰ د مددګار دے په طریقه د تهکم سره یا په معنیٰ د متولی دے یعنی الله تعالیٰ به د دوی عذاب اُور ته او سپاری او هغه به د دوی د عذاب متولی شی۔

كَالَّذِيْنَ اُوْتُوا الْكِتٰبَ مِنْ قَبْلُ فَطَالَ

پشان د هغه کسانو چه کتاب ورکړے شوے دے د دے نه مخکښ نو اوګده شوه

عَلَيْهِمُ الْاَمَدُ فَقَسَتْ قُلُوْبُهُمْ وَكَثِيْرٌ

په دوی باندے موده نو سخت شول زړونه د دوی او ډیر

مِّنْهُمْ فٰسِقُوْنَ ﴿۱۶﴾ اِعْلَمُوْٓا اَنَّ اللّٰهَ يُحْيِ

د دوی نه پوره نافرمان دی. پوهه شئ چه یقینًا الله تعالیٰ ژوندیے کوی

۱۶ په دے آیت کښ زجر دے منافقانو ته روستو د تخویف نه. لِلَّذِيْنَ اٰمَنُوْٓا هغه کسان چه په ژبه باندے د ایمان دعوے کوی او انفاق فی سبیل الله هم نه کوی. او دا رنګ هغه مؤمنان په دے کښ داخل دی چه په ګناهونو کښ اخته دی او تو په کولو او قرآن اوریدلو ته التفات نه کوی - او کوم روایت چه ابن مسعود رضی الله عنه نه نقل دے چه دا خطاب مونږ (صحابو) ته دے نو دا ئے د وجے د تواضع او د انکسار نه ویلے دی کنه صحابه کرام و خشوع نه ده پریخودے او زړونه ئے سخت شوے نه دی لکه چه تور نصوص او تاریخ د صحابو د هغوی په محبت د قرآن او په خشوع باندے دلالت کوی لکه سورة زمر ۲۳ کښ.

اَنْ تَخْشَعَ قُلُوْبُهُمْ مراد د خشوع نه په قرآن کریم سره زړه مطمئن کیدل او د ایمان زیاتیدل او ویریدل او نرم کیدل او ژړا کول او په احکامو نو کښ تابعداری پیدا کیدل دی ځکه چه خشوع د زړه سره خشوع د ټولو اندامونو لازمه ده - لِذِكْرِ اللّٰهِ وَمَا نَزَلَ مِنَ الْحَقِّ دواړو نه مراد قرآن کریم دے لیکن په اول لفظ کښ اشاره ده مسائلو د ایمان او د عقیدے ته او په دویم لفظ کښ انفاق فی سبیل الله او نورو عملونو ته چه قرآن کښ نازل کړے شوی دی.

وَلَا يَكُوْنُوْا اوعطف دے په تخشع باندے په حالت د نصب کښ دے او وجه د ترتیب ئے دا ده چه خشوع د زړه مانع دے د مشابهت د یهود او نصاری سره او د قسوة د قلب نه - یا دا مستقله نهی ده ابن کثیر لیکلے دی چه په دے کښ منع ده د مؤمنانو د تشبیه د کتابیانو سره چه هر کله په هغوی باندے عمر ډیر تیر شو او کتاب د الله تعالیٰ ئے بدل کړو او په هغے باندے دُنیا ګټله او کتاب د الله ئے شاته اوغورځوو او په رایئے په بل مخ )

الْأَرْضَ بَعْدَ مَوْتِهَا ۚ قَدْ بَيَّنَّا لَكُمُ الْآيَاتِ

زمکه روستو د اوچیدلو د هغې نه . یقیناً ښکاره بیان کړیدی مونږ تاسو ته آیاتونه

لَعَلَّكُمْ تَعْقِلُونَ ﴿١٧﴾ إِنَّ الْمُصَّدِّقِينَ

د دے د پاره چه د عقل نه کار واخلئ . یقیناً تصدیق کوونکی سړی

وَالْمُصَّدِّقَاتِ وَأَقْرَضُوا اللَّهَ قَرْضًا حَسَنًا

او تصدیق کوونکے زنانه او چه قرض ورکوی الله تعالیٰ ته قرضه په اخلاص سره

يُضَاعَفُ لَهُمْ وَلَهُمْ أَجْرٌ كَرِيمٌ ﴿١٨﴾

زیاتی کیدے شی (دا قرض) د پاره د دوی او دوی د پاره ثواب عزتمند دے .

مختلفو اراؤ او اقوالو پسے تابع شول او تقلید ئے شروع کړو او ملایان او پیران ئے ارباب او کنټرول نو په زړونو د هغوی کښ قسوة پیدا شو . نو نه وعظ قبلوی او نه په وعد او وعید سره د هغوی زړونو کښ نرمی راځی . فَطَالَ عَلَيْهِمُ الْأَمَدُ مراد دا چه په غفلت کښ ډیر وخت تیر شو او دوی ته هیڅ عذاب رانغے بلکه نعمتونه د دُنیا ورته ډیر حاصلیدل . وَكَثِيرٌ مِّنْهُمْ فَاسِقُونَ یعنی قسوة د قلب په ټولو کښ پیدا شو لیکن لږو کسانو بیا توبه اُویستله یا د کفر نه ئے ځان بچ اوساتلو او ډیرو کفر اوکړو تر دے پورے چه قرآن او آخری رسول نه ئے انکار اوکړو یعنی د فسق نه مراد کفر کول دی .

۱۷ په دے کښ ترغیب دے قرآن ته په طریقه د مثال سره یعنی څرنګه چه الله تعالیٰ اوچه زمکه کښ تازګی پیدا کوی په باران سره نو دا رنګ سخت زړونو لره هم نرموی په قرآن سره کله چه د هغوی هدایت اوغواړی .

الْآيَاتِ نه مراد قرآن دے . دا رنګ دا آیت تخویف دے یعنی لکه چه الله تعالیٰ زمکه تازه کولے شی دا رنګ په تاسو روستو د مرګ نه دوباره ژوندی کړی او د قسوة قلب سزا به درکړی او الْآيَاتِ نه مراد دلیلونه د بعث بعد الموت دی .

۱۸ روستو د زجر او تخویف نه بخلاؤ نه ، بشارت او ترغیب دے انفاق کوونکو ته الْمُصَّدِّقِينَ اه د تاکید د پاره صیغه مذکر او مؤنث دواړه ذکر دی دا رنګ تعبیر د تصدّق او د قرض دواړه د پاره د ترغیب دی په اول تعبیر کښ اشاره ده

وَالَّذِيْنَ اٰمَنُوْا بِاللّٰهِ وَرُسُلِهٖٓ اُولٰٓئِكَ

او هغه کسان چه ایمان ئې راوړے دے په الله تعالیٰ او په رسولانو د هغه باندے دغه کسان

هُمُ الصِّدِّيْقُوْنَ ۖ وَالشُّهَدَآءُ عِنْدَ رَبِّهِمْ ؕ

دوی صدیقین دی او شهداء دی په نیز د رب د دوی

لَهُمْ اَجْرُهُمْ وَنُوْرُهُمْ ؕ وَالَّذِيْنَ كَفَرُوْا

دوی د پاره ثواب د دوی دے او رڼا د دوی ده او هغه کسان چه کفر ئې کړے دے

وَكَذَّبُوْا بِاٰيٰتِنَآ اُولٰٓئِكَ اَصْحٰبُ الْجَحِيْمِ ﴿١٩﴾ ع ۲/۹ ۱۸

او دروغژن گڼلی ایاتونه زمونږ دغه کسان جهنم والا دی ۔

نظر کولو مسکینانو فقراؤ ته او په دویم تعبیر کښې اشاره ده لحاظ کولو د الله تعالیٰ ته بغیر د ریا او سُمعة وغیره ته دا رنګ اول کښې اشاره ده زکوٰة او نورو واجباتو او نفلی خیراتونو ته او په دویم کښې اشاره ده انفاق په لار د دعوت او د اشاعت د دین کښې او جهاد او قتال د پاره ۔

س ۱۹ د مؤمنانو یو قسم ذکر شو چه هغوی ته صالحین ویلے کیږی نو په دے ایت کښې باقی نور اقسام د اهلِ ایمان ذکر کوی، رسل، صدیقون، شهداء، او د دوی د پاره بشارت ذکر کوی او دا اقسام د سعداؤ دی او بیا اشقیاء هم ذکر کوی او د هغوی د پاره تخویف اخروی۔ الصِّدِّيْقُوْنَ صدیق مبالغه ده په صدق او په تصدیق کولو کښې او ابن قیم په طریق الهجرتین کښې په مضمون د طبقاتو د انسانانو کښې لیکلی دی چه مرتبه د نبوت پسے مرتبه د صدیقیت ده او دوی ربانیون او راسخون فی العلم دی او واسطے دی په میځ د رسول او د امت د هغه کښې او دوی دعوت کوونکی دی طریقے د رسول صلی الله علیه وسلم ته ۔ او د مجاهد نه روایت دے چه هر مؤمن بِاللّٰه وَالرُّسُل صدیق دے نو دا په عامه معنیٰ سره مراد دے ۔

وَالشُّهَدَآءُ ۔ ۱ شهادت کوونکی په توحید او رسالت سره ۔ ۲ شهادت کوونکی په ورځ د قیامت په خلقو باندے په دعوت او تبلیغ سره ۔ ۳ دعوت او بیان کوونکی په دنیا کښې ۔ ۴ قتل کړے شوی فی سبیل الله ۔ (پاتے په بل مخ)

اِعْلَمُوْٓا اَنَّمَا الْحَیٰوةُ الدُّنْیَا لَعِبٌ وَّ لَھْوٌ وَّ

پوهه شئ یقیناً ژوند دنیوی لوبه او مشغله ده او

زِیْنَةٌ وَّ تَفَاخُرٌۢ بَیْنَكُمْ وَ تَكَاثُرٌ فِی الْاَمْوَالِ

ښکلا ده او لوئي کول دي په مینځ خپل کښې او سیالي دَ ډیرو مالونو

وَ الْاَوْلَادِ ؕ كَمَثَلِ غَیْثٍ اَعْجَبَ الْكُفَّارَ نَبَاتُهٗ

او دَ اولاد ده (دَ دے مثال) پشان دَ حال دَ باران دے چه خوشحاله کړی زمیندارو لره بوټی دَ هغه

ثُمَّ یَهِیْجُ فَتَرٰىهُ مُصْفَرًّا ثُمَّ یَكُوْنُ

بیا اوچ شی نو ته وینے هغه زیړ بیا شی

حُطَامًا ؕ وَ فِی الْاٰخِرَةِ عَذَابٌ شَدِیْدٌ ۙ

ذرے ذرے او په آخرت کښې عذاب سخت دے

په دے کښې دا ټول احتمالات جائز دی۔

فائده:۔ په دے کښې دَ سلف مفسرینو نه دوه قولونه نقل کړے شوی دی اول دا چه والشهداء معطوف دے په الصدیقون باندے یعنی هر مؤمن صدیق او شهید دے لکه چه دا سے قول دَ مجاهد نه روایت دے بنا په دے توجیه باندے چه شهداء کښې درے اولے معانے چلیدلے شی لیکن څلورمه معنیٰ مناسب نه ده دویم قول دا دے چه والشهداء دَ سر نه کلام دے او مبتداء ده اوولهم اجرهم دَ دے خبر دے بنا په دے باندے دَ شهداء څلور واړه معانے مراد کیدلے شی او مقصد په کلام کښې اقسام او مرتبے دَ مؤمنانو ذکر کول دی۔

عِنْدَ رَبِّهِمْ دَ شهداؤ نه چه اوله معنیٰ یا دریمه معنیٰ مراد شی نو دَ عِند نه مراد حکم دَ رب دے یعنی حکم په دنیا کښې ، او چه دَ شهداء دویمه معنیٰ مراد شی نو عِند نه مراد ورځ دَ قیامت ده او که دَ شهداء نه څلورمه معنیٰ مراد شی نو دَ عِند نه مراد نزدیکت دے رب ته او جنت مراد دے۔

وَ الَّذِیْنَ كَفَرُوْا په دے کښې ذکر دَ اشقیاؤ دے دَ پاره دَ تقابل او دوی ته تخویف دے۔

وَمَغْفِرَةٌ مِّنَ اللّٰهِ وَرِضْوَانٌ ؕ وَمَا الْحَيٰوةُ

او بخشش دے د طرف د الله تعالیٰ نه او رضا د هغه ده او نه دے ژوند

الدُّنْيَآ اِلَّا مَتَاعُ الْغُرُوْرِ ﴿۲۰﴾ سَابِقُوْٓا

دنیوی مگر سامان دهوکه ورکوونکے ۔ وړاندے شئ د یو بل نه

۲۰ په دے کښ څلورمه طریقه ده ترغیب الی الانفاق ته حاصل دا چه د دنیا په مالونوکښ هیڅ باقی فائده نیشته بلکه زر فنا کیدونکی دی نو ضروردی چه په دے سره مغفرت او جنت اوګټئ په انفاق فی سبیل الله سره۔ اِعْلَمُوْٓا په دےکښ تزهید فی الدنیا دے په پنځه طریقو سره او په هغےکښ احسن ترتیب دے هغه دادے چه اَلْحَيٰوةُ الدُّنْيَا نه مراد ساماتونه د دُنیا دی یا عمر د دُنیا دے چه په وړوکوالی کښ هر یو ځیز ورته د لوبو ځیزونه ښکاریږی بیا چه لګ لوئے شی نو ټول ځیزونه ورته تماشے او مشغلے ښکاره کیږی بیا چه ځوانئ ته نزدے یا ځوان شی نو د ډول ډهال سره ئے محبت وی بیا چه پوخ عمرته اورسی نو په دے ځیزونو سره په یو بل باندے فخر اولوئی کوی بیا چه بوډا والی ته اورسیږی نو په مال باندے حرص شوروکړی او د هغے په جمع کولوکښ کوشش کوی نو دا عمر په دے پنځو حالتونوکښ تیرشی بیا وروسته مرګ او فناده نو هغه په طریقه د مثال سره ذکرکوی کَمَثَلِ غَيْثٍ حاصل د مثال دادے چه باران اوشی نو بوټی خائسته پیدا شی بیا اوچ شی بیا ئے رنګ بدل شی نو بیا ذرے ذرے بوس شی دا رنګ انسان اول چه پیدا شی نو څه زمانه پورے تازه او خوشحاله وی بیا وروباندے د دنیا غمونه شوروشی نو او چیږی او رنګ ئے زیړ شی او بیماری وروباندے راشی بیا بوډا شی نو مړشی۔ وَفِى الْاٰخِرَةِ اه یعنی هغه ژوند د دنیا چه په دا سے طریقه باندے تیرشی چه د دین د پاره صرف نشی نو په اخرت کښ سبب د عذاب اوګرځی۔

وَمَغْفِرَةٌ اه یعنی که ژوند د دُنیا د اخرت او د دین د پاره خرچ کړے شی نو سبب د مغفرت او د رضوان دے۔

وَمَا الْحَيٰوةُ الدُّنْيَآ اه په دے جمله کښ د ماقبل د پاره سبب ذکرکوی یعنی محبت د ځیزونو د دُنیا انسان لره په دهوکه کښ واچوی (پاتے په بل مخ)

إِلَىٰ مَغْفِرَةٍ مِّن رَّبِّكُمْ وَجَنَّةٍ عَرْضُهَا

بخشش دَ رب ستاسو ته او جنت ته چه وسعت دَ هغې

كَعَرْضِ السَّمَاءِ وَالْأَرْضِ أُعِدَّتْ

پشان دَ وسعت دَ اسمانونو او دَ زمکې دے تیار کړے شوے دے

لِلَّذِينَ آمَنُوا بِاللَّهِ وَرُسُلِهِ ۚ ذَٰلِكَ

هغه چا لره چه ایمان راوړی په الله تعالیٰ او په رسولانو دَ هغه باندے دا

فَضْلُ اللَّهِ يُؤْتِيهِ مَن يَشَاءُ ۚ وَاللَّهُ

فضل دَ الله تعالیٰ دے ورکوی ئے هغه چا ته چه اوغواړی او الله تعالیٰ

ذُو الْفَضْلِ الْعَظِيمِ ﴿٢١﴾ مَا أَصَابَ مِن مُّصِيبَةٍ

خاوند دَ لوئے فضل دے . نه رسیږی هیڅ مصیبت

نو دغه تیر شوی حالات رنګه) دَ هغې نه پیدا شی. أَعْجَبَ الْكُفَّارَ غوره دا ده چه مراد دَ دے نه کافران دی ځکه چه اعجاب تکبر ته ویلے کیږی او دَ دنیا په خیزونو باندے تکبر کول دَ کافرانو کار دے.

سل روستو دَ تزهید فی الدنیا نه ترغیب الی الآخرة دے یعنی دَ دُنیا دَ ژوند او دَ مال په ذریعه مغفرة او جنت اوګټئ په انفاق فی سبیل الله سره.

إِلَىٰ مَغْفِرَةٍ ذکر دَ مسبب مراد دَ دے نه سبب دے هغه ځان بچ کول دی دَ غرور دَ دنیا نه او توبه کول دی. وَجَنَّةٍ اول مغفرة دَ ګناه دے نو وروسته دخول دَ جنت دے ځکه ئے په دے ترتیب سره ذکر کړو. عَرْضُهَا عرض مقابل دَ طول وی او عادت دا دے چه عرض کم وی دَ طول نه چه هرکله دَ عرض اندازه دَ اسمانونو او زمکے پشان ده نو دَ طول خو اندازه نه معلومیږی یا عرض په معنیٰ دَ صرف وسعت دے. او دا ګیو جنتی دَ جنت اندازه ده دا قول قرطبی ذکر کړے دے.

كَعَرْضِ السَّمَاءِ وَالْأَرْضِ دَ مفرد نه مراد جنس دے یعنی ټول اسمانونه او زمکے چه دَ یو بل سره پیوست کړے شی او یو تخته ترینه جوړه کړے شی.

فِي الْاَرْضِ وَلَا فِيْ اَنْفُسِكُمْ اِلَّا فِيْ كِتٰبٍ مِّنْ

په زمکه کښ او نه په ځانونو ستاسو کښ مګر هغه دَ په تقدير (ليکلو) کښ

قَبْلِ اَنْ نَّبْرَاَهَا ۭ اِنَّ ذٰلِكَ عَلَى اللّٰهِ

مخکښ دَ موجود کولو دَ هغې نه يقيناً دا په الله باندے

اُعِدَّتْ لِلَّذِيْنَ اٰمَنُوْا اه په دے کښ دَ الله دَ رحمت لوئے اميد دے اشاره ده چه دَ ايمان سره يئے بل قيد نه دے لګولے يعنې په صرف ايمان سره دا جنت حاصليږي - هاں دَ عذاب ذکر ورسره نيشته هغه دَ الله تعالیٰ خوښه ده چه ګنهګار مؤمن له سزا ورکوي اوکه نه ورکوي خو جنت به ورکوي -

ذٰلِكَ فَضْلُ اللّٰهِ اه دا دليل دے چه جنت په فضل او رحمت دَ الله تعالیٰ سره حاصليږي - هاں ايمان او عمل صالح الله تعالیٰ ښکاره سبب ګرځولے دے -

فائده :- دا سے ايت په سورة ال عمران ۱۳۳ کښ تيرشوے دے ليکن فرق يئے په درے طريقو سره دے -

اول دا چه هلته سارعوا دئ او دلته سابقوا دے -

دويم دا چه هلته السموٰت والارض په جمع سره بغير دَ حرف تشبيه نه ذکر دي او دلته مفرد سره دَ کاف تشبيهي نه ذکر دے -

دريم دا چه هلته متقيانو ذکر دے او دلته مؤمنان ذکر دي - وجه دَ فرق دا ده چه سارعوا دلالت کوي چه په مرتبه کښ برابر دي ليکن دَ يو بل سره د په کارونو دَ خير کښ جلتي اوکړي او سابقوا دلالت کوي چه دَ دوي په مرتبو کښ دَ يو بل سره مسابقت او فرق دے او دا رنګ مسابقت بنا دے په مسارعت باندے چه جلتي دَ يو بل نه کوي نو هله مخکښ کيدے شي -

نو په سورة ال عمران کښ دَ متقيانو حال ذکر کولو او هغوي کامل مؤمنان دي نو هغوي په مرتبه دَ تقوىٰ کښ يو بل سره برابر دي نو دَ هغوي سره لفظ دَ مسارعت مناسب دے دا رنګ دَ هغوي په بشارت کښ دَ تاکيد دَ وجے نه سموات لفظ جمع ذکر کړو بغير دَ حرف دَ تشبيه نه او په دے ايت کښ دَ عامو مؤمنانو ذکر دے چه دَ هغوي په مراتبو کښ فرق دے نو دَ دوي سره دَ مسابقت تعبير مناسب دے (والله اعلم) -

يَسِيرٌ ﴿٢٢﴾ لِّكَيْلَا تَأْسَوْا عَلَىٰ مَا فَاتَكُمْ

اسان دے . (دا عقیدہ) دَ دے دَپارہ دہ چہ غمژن نہ شئ پہ هغه نعمت چہ فوت شي ستاسو نه

وَلَا تَفْرَحُوا بِمَا آتَاكُمْ ۗ وَاللَّهُ لَا يُحِبُّ

او لوئی او نکړئ پہ هغه نعمت چہ درکړے ئی تاسو تہ او الله تعالیٰ نه خوښوی

۲۲ پہ دے ایت کښ پنځمہ وجہ دَ ترغیب الی الانفاق دہ پہ طریقہ دَ دفع کولو دَ وهم سرہ یعنی کہ څوک وهم اوکړی چہ مالو نہ خرچ کول پکار نہ دی بلکہ مصیبتونو دَ دفع کولو دَ پارہ مالو نہ ساتل پکار دی نو پہ دے ایت کښ جواب کوی چہ مصیبتونہ دَ مخکښ نہ پہ تقدیر کښ مقرر دی هغه پہ مالونو سرہ نشی دفع کیدلے۔

او دا رنګ چہ تیر شوی ایت کښ امر اوشو پہ سابقوا سرہ نو وهم راغے چہ پہ دے مسابقت کښ تکلیفونہ راځی نو دَ دے نہ ځان ساتل پکار دی؟

جواب دا دے چہ تقدیر کښ مقرر وی نو هغه پہ ضرور وا قع کیږی۔

فِي الْأَرْضِ قحط، وباء، ګرانی، سیلابونه، زلزلے، فصلونه خرابیدل وغیرہ وَلَا فِي أَنفُسِكُمْ مرضونه، فقیری، اولاد مړه کیدل، تنګسیا دَ ژوند وغیرہ۔

إِلَّا فِي كِتَابٍ دا دلیل دے چہ تقدیر صرف علم دَ الله تعالیٰ نہ عبارت نہ دے بلکہ ورسرہ لیکل دی پہ لوح محفوظ کښ۔ او پہ تعبیر دَ کتابت سرہ پہ ډیر ایاتونو کښ ذکر دے لکہ پہ سورۃ العمران ۱۴۵ سورۃ توبہ ۵۱ سورۃ مجادلہ ۲۱ سورۃ حشر ۳ سورۃ مائدہ ۲۱ سورۃ انعام ۳۸، ۵۹ او نور ډیر ایاتونہ دی او احادیث هم پہ دے باب کښ ډیر دی نو څوک چہ دَ تقدیر نہ انکار کوی یا کتابت دَ تقدیر نہ منی بلکہ صرف علم دَ الله تعالیٰ منی دوارہ پہ باطلہ عقیدہ کښ مبتلا دی اګرچہ پہ دوارو کښ فرق شته دے۔

مِّن قَبْلِ أَن نَّبْرَأَهَا ضمیر مصیبت تہ راجع دے یا زمکے او نفسونو تہ راجع دَ۔

إِنَّ ذَٰلِكَ عَلَى اللَّهِ يَسِيرٌ پہ دے سرہ هغه وهم دفع کوی چہ الله تعالیٰ پہ راتلونکی حالاتو باندے څه رنګ علم لری او دا رنګ دا بے شمارہ څیزونہ ئے څرنګے اولیکل پہ دے جملہ سرہ ئے جواب اوکړو چہ دَ الله تعالیٰ علم او قدرت پہ نسبت دا هیڅ اسان دی، دا پہ مخلوق باندے قیاس کول جائز نہ دی۔

كُلَّ مُخْتَالٍ فَخُورٍ ﴿٢٣﴾ الَّذِينَ يَبْخَلُونَ

هر ځان لوئے ګڼرونکے اوچل ستائینه کوونکے. هغه کسان چه شومتیا کوی

وَيَأْمُرُونَ النَّاسَ بِالْبُخْلِ ۗ وَمَنْ يَتَوَلَّ

او حکم کوی نورو خلقو ته په شومتیا کولو سره او چا چه مخ اوګرځوؤ

فَإِنَّ اللَّهَ هُوَ الْغَنِيُّ الْحَمِيدُ ﴿٢٤﴾ لَقَدْ

نو یقیناً الله تعالیٰ هغه بے حاجته دے ستائیلے شوے دے. یقیناً

۲۳ په دیکښ فائدے دَایمان بالتقدیر ذکر کړیدی. لِّكَيْلَا اه متعلق دَمحذوف دے (اَعْلَمْنَاكُمْ) یعنی خبردرکړو مونږ تاسو ته چه هرمصیبت او دا رنګ هر نعمت دَمخکښ نه مقرر کړے شویدے نو اوله فائده دا ده چه دَ انسان نه څه نعمت فوت شی عافیت، روزی، صحت، مال وغیره نو په هغے پسے به خفګان نه کوی او او به وائی چه دا څیزکه زما دَپاره مقرر وے نو زما نه به نه فوت کیدلو - دویمه فائده دا ده چه وَلَا تَفْرَحُوا اه یعنی چا ته چه څه نعمت اورسیږی عافیت، فراخی دَ مال وغیره نو هغه به په هغے باندے لوئی او تکبر نه کوی بلکه او به وائی چه دا زما په کوشش سره نه دے حاصل شوے بلکه الله تعالیٰ مقرر کړے وؤ- یعنی انسان اکثر دَمصیبت په وخت کښ خفه او پریشان وی اودَ نعمت په وخت خوشحال او غافل او متکبروی خو چه په تقدیر باندے ایمان لری نو دَ دے دواړو مرضونو نه به بچ وی. بلکه هروخت به الله تعالیٰ یادَ وی او هرڅه به دَ الله تعالیٰ دَطرف نه ګڼړی نو مخلوق ته به خپل حاجات نه پیش کوی. وَاللَّهُ لَا يُحِبُّ كُلَّ مُخْتَالٍ فَخُورٍ دا ذکر دَ صفاتو قبیحو دے چه په انکار دَتقدیر نه پیدا کیږی بیا په مینځ دَ دے دواړو کښ فرق په ډیرو وجو سره دے - اول دا چه مختال هغه دے چه خپل ځان لوئے ګڼړی او فخور هغه دے چه بل چا باندے خپله لوئی ښکاره کوی - دویم دا چه ځان ته دَلوئی په نظر سره ګوری نو مختال دے او چه نورو خلقو ته په سپک نظر سره ګوری نو فخور دے - دریم دا چه مختال چه دفع کول دَمصیبتونو دَ الله تعالیٰ دَ طرف نه نه ګڼړی او فخور هغه دے چه حصول دَ نعمت بخپل طاقت او قدرت کښ ګڼړی.

۲۴ دا زجر دے بخلاؤ ته او دَ تقدیر نه منلوا ثار ذکر کوی - (یا تے په بل مخ)

أَرْسَلْنَا رُسُلَنَا بِالْبَيِّنٰتِ وَأَنْزَلْنَا

رالیږلی دی مونږ رسولان خپل په ښکاره حکمونو سره او نازل کړیدی مونږ

مَعَهُمُ الْكِتٰبَ وَالْمِيْزَانَ لِيَقُوْمَ

دَ دوی دَ ملګرتیا دَپاره کتابونه او دَ تللو څیز دَپاره دَ دے چه او دریږی

النَّاسُ بِالْقِسْطِ ۚ وَأَنْزَلْنَا الْحَدِيْدَ فِيْهِ

خلق په انصاف سره او پیدا کړیده مونږ (په اسمانی تدبیرونو) سره او سپنه چه په هغې کښ

بَأْسٌ شَدِيْدٌ وَّمَنَافِعُ لِلنَّاسِ وَلِيَعْلَمَ

(سامان) جنګ سخت دے او نورے نفع دی خلقو لره او دَ دے دَپاره چه ښکاره کړی

اللّٰهُ مَنْ يَّنْصُرُهٗ وَرُسُلَهٗ بِالْغَيْبِ ؕ

الله تعالی هغه چا لره چه مدد کوی دَ هغه او دَ رسولانو دَ هغه سره سرهٔ دَ نه لیدلو نه۔

إِنَّ اللّٰهَ قَوِيٌّ عَزِيْزٌ ﴿۲۵﴾ ع وَلَقَدْ أَرْسَلْنَا

یقیناً الله تعالی قوت والا زورآور دے۔ او یقیناً لیږلی دی مونږ

يَبْخَلُوْنَ داعام دے بخل کول په علم او په مال او په احسان کښ ټولو ته شامل دے بلکه ابن کثیر ویلے دی چه هر فعل دَ منکر ته شامل دے۔ وَيَأْمُرُوْنَ النَّاسَ بِالْبُخْلِ یعنی بخیله هم ګمراه دے او نور خلق هم ګمراه کړی ته یلی ضَال او مضِل دے لکه سورة منافقون کښ راځی۔ وَمَنْ يَّتَوَلَّ دا اعراض کول دی دَ ایمان نه او دَ انفاق فی سبیل الله نه او دَ ایمان بالتقدیر نه دے ټولو ته شامل دے۔

۲۵ دَ دے ایت نه تر اخره دَ سورت پورے دویم باب دے خلاصه ئے دا ده چه په دے کښ ترغیب دے جهاد ته په طریقه دَ دعوت بالکتاب او په قتال دَ استعمال دَ حدید سره او دَ دواړو فائدے ذکر کړے دی بیا دلیل نقلی دے دَ نوح او ابراهیم او عیسٰی علیهم السلام نه چه دَ دے ټولو دغه طریقه وه بیا زجر دے په بدعت دَ رهبانیت سره۔ بیا ترغیب دے کتابیانو ته په ایمان راوړلو په اخری رسول باندے په حصول دَ دوچند اجر او په حصول دَ فضل دَ الله تعالی سره۔

نُوۡحًا وَّ اِبۡرٰهِیۡمَ وَجَعَلۡنَا فِیۡ ذُرِّیَّتِهِمَا

نوح علیه السلام او ابراهیم علیه السلام او ورکړل موږ په اولاد د دوی کښې

په دے (۲۵) کښې دَ انفاق نه روستو جهاد ته اشاره کوی او دا رنګ په دے کښې مدافعت دَ هغه کسانو مقصد دے چه هغوی یا مرون الناس بالبخل سره موصوف دی۔ بِالۡبَیِّنٰتِ دا لفظ ښکاره احکام دَ عقیدے او دلیلونه او معجزاتو ته شامل دے وَ اَنۡزَلۡنَا مَعَهُمُ الۡکِتٰبَ کتاب اِسم جنس دے ډیرو کتابونو ته اشاره ده او مَعَهُمۡ کښې اشاره ده چه په هر رسول بانـدے اګرچه کتاب نه وؤ نازل کړے شوے لیکن مخکنے کتاب به ورسره وؤ لکه تورات نازل کړے شوے وؤ په موسیٰ علیه السّلام باندے لیکن دَ هغه نه روستو تر عیسیٰ علیه السّلام پورے دغه کتاب نورو رسولانو سره وؤ۔ وَالۡمِیۡزَانَ دا عطف دَ صفت دے په صفت باندے یعنی هغه کتاب میزان وؤ دَ پاره دَ فرق دَ حق او باطل یا مراد دَ دے نه حکم دے په عدل سره او ابن کثیر وئیلے دی چه مراد په دے سره هغه دے چه صحیح عقلونه په هغے باندے شهادت کوی۔ یا مراد دَ دے نه هغه شرائع دی چه په سنت دَ انبیاؤ سره ښکاره شویدی۔

لِیَقُوۡمَ النَّاسُ بِالۡقِسۡطِ ۔ حاصل دا چه رسولانو اول دعوت کوؤ خلقو ته په کتاب او په سنت سره دَ دے دَ پاره چه خلق په دین دَ توحید او دَ اسلام باندے پاخه اودریږی۔ وَ اَنۡزَلۡنَا الۡحَدِیۡدَ مناسبت دَ مخکښې جملے سره دا دے چه اول خو دعوت دے په کتاب او سنت سره او وروستے قتال کول دی په استعمال دَ آلاتو دَ اوسپنے سره۔ دَ دے وجے نه اوله فائده دَ دے ئے په فِیۡهِ بَاۡسٌ شَدِیۡدٌ سره ذکر کړه مراد تری نه آلات دَ جنګ جوړول دی په هره زمانه کښې چه څومره اسباب دَ جنګ دی نو دَ اوسپنے نه جوړیږی او دے ترتیب ته ابن کثیر هم په تفسیر کښې اشاره کړیده۔

فائده:۔ لفظ دَ انزال په اصل کښې په معنیٰ دَ راکوځولو سره دے لیکن دلته مراد پیداکول دی په آسمانی تدبیرونو سره ځکه چه دَ پارانو په ذریعه الله تعالیٰ په زمکه اوغرونو کښې معدنیات پیداکوی او اوسپنه هم دَ معدنیاتو نه ده۔ او په کومو روایتونو کښې چه راغلے دی چه اوسپنه آدم علیه السلام دَ خپل ځان سره دَ آسمان نه راکوزه کړے وه نو قاسمی په (رپاڅے په یل مخ)

النُّبُوَّةَ وَالْكِتٰبَ فَمِنْهُمْ مُّهْتَدٍ ۚ وَكَثِيْرٌ

پیغمبری او کتابونه نو بعض د دوی نه هدایت موندونکی دی او ډیر

مِّنْهُمْ فٰسِقُوْنَ ﴿۲۶﴾ ثُمَّ قَفَّيْنَا عَلٰۤى اٰثَارِهِمْ

د دوی نه پوره نافرمان دی بیا پرله پسې اولیږل مونږ د دوی نه روستو

بِرُسُلِنَا وَقَفَّيْنَا بِعِيْسَى ابْنِ مَرْيَمَ

رسولان زمونږ او په دوی پسې اولیږلو مونږ عیسٰی ځوئے د مریم

وَاٰتَيْنٰهُ الْاِنْجِيْلَ ۙ وَجَعَلْنَا فِىْ قُلُوْبِ

او ورکړو مونږ هغه ته انجیل او واچوله مونږ په زړونو

تفسیر کښې ذکر کړے دی چه دا دروغ او حدیث موضوعی دے۔ وَمَنَافِعُ لِلنَّاسِ په دے کښې ډیرو خیزونو ته اشاره ده چه په انسانی ژوند کښې پکار ریږی تبر، ترخڼ، اره، چاړه، چاقو، پاله، نورے مشینرئے وغیره۔ وَلِيَعْلَمَ اللّٰهُ مَنْ يَّنْصُرُهٗ وَرُسُلَهٗ عطف دے په معنیٰ د فِيْهِ بَاْسٌ وَّمَنَافِعُ باندے تقدیر د عبارت داسے دے يَسْتَعْمِلُهُ النَّاسُ فِى الْحَرْبِ وَيَسْتَنْفِعُوْا بِهٖ وَلِيَعْلَمَ اه۔ یعنی چه په اوسپنه سره جهاد اوکړئ نو الله تعالیٰ به امداد اوکړی۔ یا عطف دے په لِيَقُوْمَ النَّاسُ باندے۔ يَنْصُرُهٗ کښې اشاره ده جهاد کولو ته د پاره د توحید او د سنت د رسول نه۔

بِالْغَيْبِ یعنی الله تعالیٰ او رسولان ئې لیدلے نه دی او د هغوی د پاره جهاد کوی یا غیب په معنیٰ د اخلاص د زړه سره دے۔ اِنَّ اللّٰهَ قَوِيٌّ عَزِيْزٌ په دے کښې اشاره ده نصرت او مدد د الله تعالیٰ ته۔

۲۶ د اجمال نه روستو تفصیل دے او دا دواړه ئې خاص ذکر کړل ځکه چه دعوت په طریقه د رد د مشرکانو سره او جهاد د وخت د نوح علیه السلام نه شورو دے او د دوی په اولاد کښې پیغمبران راغلی دی۔ یعنی نوح علیه السلام دویم ابوالبشر دے او ابراهیم علیه السلام خو ابوالانبیاء والرسل دے د دے وجے نه سورة عنکبوت ۲۷ کښې صرف د دهٔ ذکر شوے دے۔

فَمِنْهُمْ ضمیر ذریة ته راجع دے او په دے کښې اشاره ده چه دوی دعوت جاری اوساتلو لیکن بعضو کسانو د هغوی دعوت اومنلو او بعضو انکار اوکړو۔

الَّذِيْنَ اتَّبَعُوْهُ رَاْفَةً وَّرَحْمَةً ؕ وَرَهْبَانِيَّةَ

دَ هغه چا کښې چه دهٔ تابعداران وو نرمي په يو بل باندے او رحم کول او په کوټو نو کښې کيناستل

ابْتَدَعُوْهَا مَا كَتَبْنٰهَا عَلَيْهِمْ اِلَّا ابْتِغَآءَ

چه نوے جوړه کړه دوی دا طريقه نه وه فرض کړې دا موږ په دوی باندے مګر لټول

رِضْوَانِ اللّٰهِ فَمَا رَعَوْهَا حَقَّ رِعَايَتِهَا ۚ

دَ رضا دَ الله تعالیٰ نو دوی لحاظ او نکړو دَ هغې پوره لحاظ دَ هغې

فَاٰتَيْنَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا مِنْهُمْ اَجْرَهُمْ ۚ

نو ورکړو موږ هغه کسانو ته چه ايمان ئې راوړے وو دَ دوی نه ثواب دَ هغوی

وَكَثِيْرٌ مِّنْهُمْ فٰسِقُوْنَ ﴿۲۷﴾ يٰۤاَيُّهَا الَّذِيْنَ

او ډير دَ دوی نه وو پوره نا فرمان . اے ايمان

۲۸ دا ايت هم دَ مخکښې تفصيل سره متعلق دے قَفَّيْنَا دا دَ تَقْفِيَة نه ماخوذ دے روستو والے په يو بل پسے باندے دلالت کوی. عَلٰۤى اٰثَارِهِمْ اشاره ده چه دين دَ ټولو يو دے او هغې دين ته ټولو دعوت کوے او اخرى په ټولو کښې رزمونږ دَ نبى صلی الله علیه وسلم نه مخکښې) عيسىٰ علیه السلام دے هغه هم دَ ابراهيم علیه السلام په اولاد کښې دَ طرف دَ مور نه وو او دَ دے تخصيص ئې په دے وجے سره کړے دے چه دهٔ دعوت او مجاهده په ډير محنت سره کړے وه.

وَجَعَلْنَا فِىْ قُلُوْبِ الَّذِيْنَ اتَّبَعُوْهُ رَاْفَةً وَّرَحْمَةً ؕ وَرَهْبَانِيَّةَ الخ په دے کښې اشاره ده درے فريقو دَ نصارىٰ ته لکه چه حديث دَ ابن مسعود رضى الله عنه کښې راغلے دے حاصل دَ مضمون ئې دا دے چه روستو دَ رفع دَ عيسىٰ علیه السلام نه بنى اسرائيل دوه اويا ډلے شول دَ هغوی نه درے فرقو نجات اوموندلو او بل روايت کښې دى چه په دوی باندے داسے بادشاهان مقرر شول چه هغوی دَ دوی په دين کښې تحريف اوکړو نو دَ هغوی په مقابله کښې يو فرقے قتال شروع کړو تر دے پورے چه هغوی شهيدان شول (پاتے په بل مخ)

دویمے فرقے صرف دعوت او تبلیغ شورو کړو نو هغوی ئې په آرو بانده اره کړل او په اور باندے او سیزل۔ دریمه فرقه غرونو او غارونو ته لاړل دَ خپل دین دَ حفاظت دَپاره او دَ الله تعالیٰ بندګی ئې کوله۔

ابن کثیر وئیلے دی دا حدیث اګرچه دَ داؤد بن المحبر راوی (چه وضّاع دے) بے اعتباره دے لیکن دَ دے تقویت کړے شوے دے په بل سند سره چه ابویعلیٰ راوړے دے۔ نو معلومه شوه چه رأفة کښ اوله فرقه چه قتال کوونکے وه مراد ده او په رحمة کښ دویمه فرقه چه دعوت کوونکی وو مراد دی او دریمه فرقه په رهبانیت سره مراد ده۔

وَرَهْبَانِيَّةً کښ دَ مفسرینو دوه قولونه دی اول قول دا چه په ما قبل باندے معطوف دے او دَ جعلنا دَ لاندے داخل دے بنا په دے باندے رهبانیت دَ هغوی دَپاره جائز وو او دویم قول دا دے چه ورهبانیة منصوب دے په طریقه دَ اضمار علی شرط التفسیر سره یعنی اِخْتَرَعُوا رَهْبَانِيَةً ابتدعوها نو بنا په دے قول رهبانیت په هغوی کښ هم جائز نه وو۔ اِبْتَدَعُوْهَا په دے کښ دوه توجیه دی اول دا چه رهبانیت که چرے په دوی کښ جائز وو نو دَ ابتداع نه مراد دَ هغې کیفیت او طریقه بدلول او مقصد بدلول دی او دیته بدعتِ اضافیه وئیلے کیږی دویمه توجیه دا ده چه رهبانیت په دوی کښ دَ اصل نه منع وو نو ابتداع نه ابتداع حقیقی مراد ده۔ اِلَّا ابْتِغَاءَ رِضْوَانِ اللهِ په دے استثناء کښ هم دوه احتماله دی اول احتمال دا دے چه استثناء متصله ده او دا په اوله توجیه باندے بنا ده یعنی رهبانیت په اصل کښ جائز وو او په دوی باندے فرض نه وو مګر صرف دَ الله تعالیٰ دَ رضا دَپاره یعنی رهبانیتِ مقیّده جائز وو۔ فَمَا رَعَوْهَا ضمیر رهبانیت ته راجع دے یعنی دوی په رهبانیت کښ دَ الله تعالیٰ دَ رضا حاصلول پریخودو دَ هغې لحاظ ئې او نکړو او دَ دُنیا دَ حصول دَپاره ئې ذریعه اوګرځوله دَ دے دَپاره چه خلق دَ دوی مریدان شی او دَ هغوی نه هدایا (تحفے) نذرانے راجمع کوی او حق ورته نیا نوی بلکه هغوی دَ خپلے بندګئے په حیثیت سره ساتی۔ دویم احتمال دا چه استثناء منقطع ده او دا په دویمه توجیه باندے بناء ده یعنی چه رهبانیت دَ اصل نه ناجائز وو معنیٰ دا چه رهبانیت مونږ دوی لره نو وو جائز کړے

لیکن فرض کړے وه موئږ په دوی باندے د الله تعالیٰ رضا حاصلول په طریقه د جهاد او د دعوت - فَمَا رَعَوْهَا ضمیر رضوان ته راجع دے په تاویل د خصلت سره - الَّذِينَ آمَنُوا مِنْهُمْ که رهبانیت جائز مراد وی نو الذین امنوا کښ د ے واړه فرقے داخل دی او كَثِيرٌ مِّنْهُمْ فَاسِقُونَ کښ هغه داخل دی چه رهبانیت ئے برباد کړو او د آخری رسول نه ئے انکار اوکړو اوکه رهبانیت ناجائز وی نو الذین امنوا نه اول دواړه فریق مراد دی او فاسقون نه ټول مبتدعین او منکرین مراد دی - دلته دوه ضروری فائدے دی .

اوله فائده په تحقیق د رهبانیت کښ - رهبانیت په لغت کښ ویره کولو ته ویلے کیږی لکه په دے قول کښ وَ اَضْمُمْ اِلَيْكَ جَنَاحَكَ مِنَ الرَّهْبِ - او په اصطلاح د قرآن کښ د الله تعالیٰ نه ویره کول او د هغے ویرے د وجے د الله تعالیٰ د منهیاتو نه ځان ساتل - لکه په دے قول کښ وَ اِيَّایَ فَارْهَبُونِ - او په عرف کښ د الله تعالیٰ د ویرے د وجے نه د خپل دین د حفاظت د پاره غار ته یا صحرا ته تلل او د تللو ذاتِ مباحه نه ځان ساتل او د الله تعالیٰ بندګی کول - او په دے کښ دوه حالتونه دی یو حالت د ضرورتِ شرعی د وجے نه جدائی اختیارول دی لکه چه فتنے ډیرے شی او جهاد او دعوت بالکل نشی کیدے او په خپل دین باندے ویره راشی نو په داسے وخت کښ د خلقو نه ډډه کول او صحرا یا غار ته تلل او دیته فرار للدین او هجرت ویلے کیدے شی لکه واقعه د اصحاب کهفو او دا رنګ حدیث د ابو سعید خدری چه رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمائیلی دی چه نزدے ده چه داسے وخت به راشی چه غوره مال د مسلمان به ګډے بیزے وی او د باران ځایونو ته به ئے بوځی سرونو د غرونو ته چه تیخته به کوی په خپل دین سره د فتنو نه (بخاری) -

دا رنګ هغه حدیث چه د ټولو فرقو نه ډډه اوکړه اګرچه چک اولګوے په وبیخ د یو ونے پورے - لیکن په دے باندے د رهبانیت اطلاق لغةً یا مجازاً دے په شرع کښ دیته رهبانیت نه ویلے کیږی دا رنګ غارِ حرا ته تلل د رسول الله صلی الله علیه وسلم مخکښ د قرآن شورو کیدلو او د نبوت نه - دویم حالت بغیر د ضرورتِ شرعیه نه د خلقو نه جدائی اختیارول او عبادت کول او په ځان باندے تکلیفونه او ریاضتونه تیرول دا زموږ ( پاتے په بل مخ )

په شریعت کښې قطعًا منع دی لکه په حدیث دَ مسند احمد کښې راغلے دی چه رسول الله صلّی الله علیه وسلّم فرمائیلے دی دَ هر امت دَ پاره رهبانیت دے او رهبانیت دَ امت زما جهاد فی سبیل الله دے دا حدیث ابن کثیر ذکر کړیدے.
او په شریعت دَ عیسٰی علیه السلام کښې دَ دے په باره کښې اختلاف دے.
یو قول دا دے چه دَ هغوی په شرع کښې دا جائز وو او دَ دے یو دلیل هغه توجیه ده چه دَ رهبانیت عطف دے په رأفةً و رحمةً باندے او دا بدعتِ حقیقیه نه دے. دویم دلیل هغه حدیث دَ ابن مسعود رضی الله عنه دے چه مخکښې موتږ ذکر کړے دے او په هغے کښې درے ډلے دَ نجات والو ذکر کړے دی یو پکښې رهبانیت والا دی او دَ دے قول په بنا سره ویلے شویدی چه په دے ایت کښې دَ نصارٰی قباحت په سبب دَ رهبانیت دَ وجے دَ بدعتِ اضافیه نه دے یعنی دَ رهبانیت کیفیت او طریقه او مقصد ئے بدل کړے دے. دویم قول دا دے چه رهبانیت دَ هغوی په دین کښې منع وو پشان دَ شریعت زمونږ او دَ دوی یو دلیل دا دے چه رهبانیةً په مخکښې باندے عطف نه دے بلکه اخترعوا او ابتدعوا دَ پاره مفعول دے او دا بدعتِ حقیقیه دے او دویم دلیل قول دَ ابن کثیر دے چه هغه ویلے دی چه دا ایت ذم دَ هغوی دے دَ دوؤ وجو نه یو په دے وجے سره چه په دین دَ الله تعالٰی کښې ابتداع دَ هغه څیز کړیده چه په هغے باندے امر دَ الله تعالٰی نیشته او دویم دا چه کم څیز چه دوی گمان کوؤ چه دا قربت دے په هغے باندے قیام او نکړو او دَ هغے لحاظ ئے او نکړو.
دریم دلیل دا دے چه قاسمی دَ مسیحینُ نه نقل کړیدے او دَ هغوی دَ کتاب ریحانة النفوس نه چه رهبانیت په کتاب مقدس کښې نیشته او نه په دے باندے امر شرعی شته دا روستو خلقو دَ خپل وهم نه جوړ کړے دے (دا حاصل دَ مضمون دَ هغه دے).
او رهبانیت په روستنی عرف کښې دا دے چه دَ خلقو نه کناره کشی او کړی او نکاح هم په ځان حرام کړی او نور حلال طیبات هم حرام گنړی تر دے پورے چه مونځ دَ جماعت نه کوی غسل هم نه کوی بعض ختنه هم نه کوی نشے کوی په غزلو سرودونو سره دَ روح غذا حاصلوی رقص کوی وغیره دا رهبانیت په هر دین کښې حرام قطعی دے. لیکن راهبانو دَ نصارٰی او

دا رنگ صوفیاو او پیرانو دَ دے امت دا طریقه ایجاد کړه او په دے ذریعے سره دَ خلقو نه دنیا حاصلوی او دا هغه دی چه قرآن کریم کښ دَ دوی حالت ئے ذکر کړے دے اِنَّ كَثِيْرًا مِّنَ الْاَحْبَارِ وَالرُّهْبَانِ لَيَاْكُلُوْنَ اَمْوَالَ النَّاسِ بِالْبَاطِلِ وَيَصُدُّوْنَ عَنْ سَبِيْلِ اللّٰهِ (سورة توبه ۳۴) او په دوی باندے رد دے په سورة مائده ۸۲ کښ۔

دویمه فائده :- په تحقیق دَ بدعت کښ۔ اِبْتَدَعُوْهَا دَ بدعت نه ماخوذ دے او دا لفظ عربي دے نو په لغت دَعرب کښ بدعت "پیدا کول دَ هر هغه څیز چه مخکښ ئے نمونه موجوده نه وی" که دنیوی څیز دے او که دیني وی، خه وی او که بد وی ذات وی او که طریقه وی او په دے معنیٰ سره په صفت دَ الله تعالیٰ کښ راغلے دے. بَدِيْعُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ۔ او بدعت په اصطلاح دَ شریعت کښ پیدا کول دی په دین کښ دَ هر هغه څیز چه په دلیلِ شرعي سره دَ دین نه ثابت نه وی او دا تعریف ماخود دے دَ دے حدیث نه مَنْ اَحْدَثَ فِيْ اَمْرِنَا هٰذَا مَا لَيْسَ مِنْهُ فَهُوَ رَدٌّ نور عبارتونه دَ علماؤ ډیر دی په تعریف دَ بدعت کښ لیکن دا غوره دے ځکه چه دَ حدیث صحیح دَ الفاظو نه ثابت دے۔ بیا دغه څیز (پیدا کړے شوے په دین کښ) عام دے که عمل وی او که قول وی او که عقیده وی او که ذات وی او که کیفیت وی او که مقدار وی او که وخت وی۔ بیا دَ دے تعمیم په وجے سره بدعت دوه قسمه دے یو بدعتِ حقیقیه دویم بدعت اضافیه (دَ دے پوره تحقیق سره دَ مسئلے دَ رهبانیت نه الشاطبی په کتاب الاعتصام ص۲۸۶ کښ ذکر کړے دے۔

بدعتِ حقیقیه هغه دے چه اصل دَ یو څیز دَ دین نه او گنړلے شی او حال دا چه هغه دین نه وی لکه رهبانیت په دین زمونږ کښ او بنا په یو قول سره په دین دَ عیسیٰ علیه السلام کښ او لکه رقص سرود و نه دوړه باجه وهل دا دَ دین نه نهٔ دے بلکه معصیت دے لیکن بعض متصوفه ورته دین او ثواب وائی دے۔ او میلاد کښ خوشحالی مناول او عرسونه کول.

او بدعتِ اضافیه هغه دے چه اصل ئے دَ دین نه وی لیکن کیفیت او طریقه او مقدار او وخت دَ هغے دَ ځان نه جوړ کړے شی او هغے ته ثواب اُویلے شی لکه رهبانیت مخترعه په دین دَ عیسیٰ السلام کښ (راتلونکی په بیل مخ)

اٰمِنُوا اتَّقُوا اللّٰهَ وَاٰمِنُوْا بِرَسُوْلِهٖ يُؤْتِكُمْ

والو ویره کوئ د الله تعالٰی نه او ایمان راوړئ په رسول د هغه باندئ نو درکړي تاسو ته

كِفْلَيْنِ مِنْ رَّحْمَتِهٖ وَيَجْعَلْ لَّكُمْ نُوْرًا

دوه انډې د رحمت خپل نه او پیدا به کړي تاسو لره رڼا

تَمْشُوْنَ بِهٖ وَيَغْفِرْ لَكُمْ ؕ وَاللّٰهُ غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ ﴿۲۸﴾

چه ګرځئ به تاسو په هغې سره او بخښنه به اوکړي تاسو ته او الله تعالٰی بخښنه کوونکے رحم کوونکے دے۔

په دویم قول سره ۔ او نور مثالونه د دے په دے ملت کښې ډیر دی لکه دُعا کانے په هیئتِ اجتماعیه سره په فرض او سنت مونځ پسے یا په جنازو پسے ۔ ختم د قراٰن د پاره هیئتِ اجتماعیه جوړول ۔ صدقاتو د پاره د وخت او ورځو تعیین کول لکه د جمعے شپه ، خلویښتمه یا کال (کلیزه) وغیره ۔

دیته بدعتِ اضافیه د دے وجے نه ویلے کیږي چه د اصل د پاره دلیل شرعي وي لیکن د هیئت او کیفیت د پاره دلیل نیشته او د اصل په اثبات سره د کیفیت اثبات نه راځي بلکه د هغے د پاره مستقل دلیل ضروري دی لکه دُعا او درود لوستل په شرعه کښې ثابت دی لیکن په هغې کښې هیئت اجتماعیه جوړول د ثواب د پاره په شرع کښې ثابت نه دی د دے وجے نه دغه هیئت اجتماعیه ته بدعت اِضافیه ویلے کیږي د دے وجے نه ابن مسعود رضی الله عنه په هغه چا باندے رد کړے وو او هغه کار ته ئے بدعت ویلے وو چا چه د ذکر کولو خاص هیئت او حلقه جوړه کړے وه لکه اعتصام ص ۳۲۱ کښې شامي ص ۵۰۵ کښې مصنف عبد الرزاق ص ۲۲۲ کښې لیکلے دی ۔

۲۸ هرکله چه حال د کتابیانو مخکنو ئے ذکر کړو په دے قول سره چه وَكَثِيرٌ مِّنْهُمْ فَاسِقُونَ نو په دے ایت کښې هغوی ته دعوت یالرسول ورکوي د پاره د دے چه د فسق نه بچ شي ۔ نو يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا نه مراد زاړه مؤمنان دی چه په موسٰی او عیسٰی علیهما السلام باندے ایمان راوړے دے او په زمانه د اخري رسول کښې موجود دی او دا قول د ابن عباس او د اکثر سلف صالحینو دے په قرینه د سورة قصص ۵۴ سره او حدیث صحیح سره چه په هغې کښې راغلي دی چه درے کسانو ته دوه اجرونه ورکیدی شي نو یو په هغې

لِّئَلَّا يَعْلَمَ اَهْلُ الْكِتٰبِ اَلَّا يَقْدِرُوْنَ

ددے دپاره چه پوهه نشي کتاب والا چه دوی قدرت نه مومی

عَلٰى شَيْءٍ مِّنْ فَضْلِ اللّٰهِ وَاَنَّ الْفَضْلَ

په هیڅ څیز باندے دَ فضل دَ الله تعالیٰ نه او یقینًا فضل خو

بِيَدِ اللّٰهِ يُؤْتِيْهِ مَنْ يَّشَآءُ ۭ وَاللّٰهُ

په لاس دَ الله تعالیٰ کښ دے ورکوی ئے هغه چاته چه اوغواړی او الله تعالیٰ

کښ کتابی دے چه په خپل نبی ئے ایمان راوړے وی او په آخری نبی صلی الله علیه وسلم باندے هم راوړی. اتَّقُوا اللّٰهَ مراد دَ دے نه دَ عقیدے دَ شرك او تثلیث او تشبیه نه ځان ساتل دی کوم چه یهودیانو او نصاریٰ دُ ځان نه جوړ کړے دی وَاٰمِنُوْا بِرَسُوْلِهٖ دا اضافت دَ عهد دَ پاره دے معهود په دے سره آخری رسول صلی الله علیه وسلم دے.

يُؤْتِكُمْ كِفْلَيْنِ کفل په اصل کښ هغه زړے شړئے ته ویلے شی چه دَ اوښ په شا باندے غوړوی دَ دَ پاره چه بندپرے دَ سورلئے نه او نه غورځیږی او بیا ویلے کیږی برخے او حصے دَ ثواب ته چه انسان لره دَ پس مخئے نه بچ ساتی. مراد ترینه دوچند ثواب دے.

(سوال) دا خو دوه کاره نه دی ایمان په مخکښ نبی باندے او ایمان په آخری نبی باندے او په دوه نیک عملونو خو ضرور دوه ثوابونه ملاویږی نو دَ دوی خصوصیت په څه وجه سره دے؟

(جواب) په دے کښ په هر ایمان باندے مستقل دوه ثوابونه دی لیکن په دے شرط سره چه دویم ایمان ورسره پیوست شی نو گویا که په دواړه ایمانونو باندے څلور ثوابونه شول. وَيَجْعَلْ لَّكُمْ نُوْرًا مراد دَ دینه هغه نور دے چه په قرآن کریم سره حاصلیږی په دُنیا کښ په علوموقرآنیو سره او په آخرت کښ هغه دَ چه په دے سورت کښ دوه کرته ذکر شو په سـ۱۲ سـ۱۹ کښ. تَمْشُوْنَ بِهٖ مشی نه مراد په دنیا کښ ژوند تیرول موافق دَ قرآن او سنت سره دی او په مشی کښ اشاره ده بشارت دنیویه ته چه ستاسو دین به غالب وی او شهرت او عزت به مو هم وی او دا لفظ په سورة انعام سـ۱۲۲ کښ هم دی. او مثال دَ دَ نور ئے په سورة نور سـ۳۵ کښ هم ذکر کړیدے.

# ذُوالْفَضْلِ الْعَظِيْمِ ﴿٢٩﴾

خاوند دَ فضل لوئې دے ۔

۲۹ په دے ایت کښې درے توجیهات دی اوله دا متعلق دَے دَمضمون ایت مخکښې سره هغه دا چه که چرے تاسو ایمان په دے رسول باندے راوړو نو هغه درے فائدے به درکړې رچه مخکښې ذکر شوے ) دَ دے دَ پاره چه پوهه شی هغه کتابیان چه ایمان ئے نه دے راوړے چه دوی قادر نه دی په هیځ فضل دَ الله تعالیٰ یعنی دغه تیر شوے فائدے ۔ بنا په دے توجیه باندے لِئَلَّا کښې حرف دَ لا زیاتی دے او دَ فضل الله نه مراد هغه ثوابونه دی چه مخکښې ایت کښې ذکر شویدی او دَ اهل الکتاب نه مراد هغه کسان دی چه ایمان په اخری رسول باندے نه راوړی والا یقدرون ضمیر راجع دے دغه کتابیانو ته ۔ دَ دویمه توجیه دا ده چه دا متعلق دے په مقدّر سره چه اَرْسَلْنَا هٰذَا الرَّسُوْلَ فِی الْعَرَبِ مِنْ غَيْرِ اَهْلِ الْكِتَابِ ۔ او لا زیاتی نه دے او ضمیر دَ لا یقدرون نبی صلی الله علیه وسلم او صحابه کرامو ته راجع دے او دَ فضل نه مراد رسالت او فضیلت دے او نفی چه په نفی داخله شی نو په معنیٰ کښې اثبات پیدا کوی ۔ نو معنیٰ دا شوه چه ردا رسول مو په غیر دَ اهل کتابو کښې ) را اولیږلو دَ پاره دَ دے چه پوهه شی کتابیان ټول چه دا نبی او امت دَ ده وس لری په فضل دَ الله تعالیٰ باندے چه رسالت او فضیلت دے ۔ دریمه توجیه دا ده چه متعلق دے په مقدّر پورے چه دَعَوْنَا اَهْلَ الْكِتَابِ لِلْاِيْمَانِ بِهٰذَا الرَّسُوْلِ ۔ او لا زیاتی نه دے او ضمیر دَ لا یقدرون کتابیانو ته راجع دے خو دَ فضل نه مراد توفیق دَ جهاد او قتال فی سبیل الله دے او لا په لا باندے داخل شویدے نو ثبوت فائده کوی او په دے کښې مقصد رد دے په کتابیانو نصاریٰ باندے نو هغوی رهبانیت اختیار کولو دَ پاره دا بهانه کوله چه اوس خو رسول نیشته او ویل به ئے مشرکینِ عرب ته چه هر کله اخری رسول را اولیږلے شی نو مونږ به دَ هغه په اقتدا کښې ستاسو سره جهاد او قتال کوو رلکه چه په تفسیر دَ یَسْتَفْتِحُوْنَ عَلَى الَّذِيْنَ كَفَرُوْا کښې تیر شویدی ) نو معنیٰ دا شوه چه (مونږ تاسو له دعوت درکړو چه په دے اخری رسول باندے ایمان راوړئے ) دَ پاره دَ دے چه خبر شی کتابیان (راهبان) چه دوی وس او طاقت او منلو په جهاد فی سبیل الله کولو باندے او دا توفیق دَ الله تعالیٰ په لاس کښې دے ، ورکوی چه ۔

ختم شو تفسیر دَ سورة الحدید په توفیق او فضل دَ الله تعالیٰ سره ۔

| آیاتها ۲۲ ‏/ ركوعاتها ۳ | بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِيۡمِ | سُورَةُ الْمُجَادِلَةِ ۵۸ مَدَنِيَّةٌ ۱۰۵ |
| --- | --- | --- |

قَدۡ سَمِعَ اللّٰهُ قَوۡلَ الَّتِىۡ تُجَادِلُكَ فِىۡ

يقيناً واوريدله الله تعالىٰ ويناً دَهغه زنانه چه بحث ئے كوؤ تا سره په

بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِيۡمِ

سورة المجادله (په زير دَ دال او په زور دَ دال دواړو سره) اوسورة الظهار اوسورة قد سمع هم ورته ويلے كيږى۔

ربط دَ دے سورت دَ ماقبل سره په يو څو طريقو سره دے اوله وجه دا ده چه مخكښ سورت كښ ترغيب ووُ انفاق او جهاد كولو ته دَ پاره دَ اصلاح دَ عالم نو په دے سورت كښ زجر دے په فساد كووُنكو باندے۔ دويمه طريقه دا ده چه په هغه سورت كښ مختصر ذكر ووُ دَ منافقينو سرهٔ دَ تخويف دَ هغوى نه نو په دے سورة كښ تفصيلى خبائث دَ هغوى ذكر كوى۔ دريمه طريقه په هغه سورت كښ رد ووُ په بدعت دَ كتابيانو باندے نو په دے سورت كښ رد دے په بدعت دَ عوامو دَ جاهليت باندے چه هغه تحريم دَ ښځے دے په سبب دَ ظهار سره۔

دعوى دَ سورت زجر او منع ده دَ طريقو دَ فساد چه هغه ئے شپږ ذكر كړے دى۔ ع۱ تحريم په ظهار سره، ع۲ محادّه دَ الله تعالىٰ او دَ رسول سره، ع۳ نجوى په گناه او عدوان سره، ع۴ تحيّه كول په غير شرعى طريقے سره، ع۵ قسم كول په دروغه سره، ع۶ صد عن سبيل الله۔ او ماخذ دَ دعوے په ۵ او ۲۲ كښ دے۔ او په دے سورت كښ رد دے په شرك فى العلم باندے۔ او اسماء حسنىٰ ئے يوؤلس ذكر كړے دى۔

خلاصه دَ سورت۔ دا سورت تقسيم دے دوه بابونو ته اول باب تر ۲۱ پورے دے۔ په دے كښ سبب دَ رد په تحريم بالظهار باندے ذكر كوى۔ بيا رد په تحريم بالظهار او دَ هغے كفّاره ذكر كوى۔ بيا رد دے په محادّه كووُنكو باندے سرهٔ دَ تخويف نه۔ بيا ئے ذكر كړيدے عموم (پاتے په بل مخ)

زَوْجِهَا وَتَشْتَكِيْٓ اِلَى اللّٰهِ ۖ وَاللّٰهُ يَسْمَعُ

| د خاوند خپل کښې او گيله يې کوله الله تعالى ته (د خاوند نه) او الله تعالى اوريدلې |
|---|

تَحَاوُرَكُمَا ۭ اِنَّ اللّٰهَ سَمِيْعٌۢ بَصِيْرٌ ①

| خبرې اترې ستاسو يقيناً الله تعالى هر څه اوري هر څه ويني . |
|---|

دَعِلم دَ الله تعالى دَپاره دَ تخويف دَ نجوىٰ كوونكو او ردكوى په نجوىٰ غير شرعي بانډے او په تحيه غير شرعي بانډے چه ټول اسباب دَ فساد دى بيا ذكر كوى درے قوانين دَپاره دَ اصلاح دَ ايمان والو چه هغه متعلق دى دَ نجوىٰ سره . اول قانون فرق كول په مقصد دَ نجوىٰ كښې . دويم ادب دَ مجلس دَ نجوىٰ په اكرام دَ ملگرو سره دريم شرط دَ نجوىٰ په تصدق مالى سره دَپاره دَ اخلاص او په هغې كښې تخفيف .

تفسير سلـ قَدْ سَمِعَ . سمع صفت دَ الله تعالى دے په معنىٰ ظاهرى سره او تشبيه او تمثيل او تكييف او تاويل ته هيڅ حاجت نه لرى . او دلته سمع مستلزم دَ قبوليت مراد ده لكه سمع الله لمن حمده كښې . امام بخارى دَ عائشه رضى الله عنها قول ذكر كړيدے چه اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ الَّذِىْ وَسِعَ سَمْعُهُ الْاَصْوَاتَ لَقَدْ جَاءَتِ الْمُجَادِلَةُ تَشْكُوْ اِلٰى رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَاَنَا فِىْ نَاحِيَةِ الْبَيْتِ مَا اَسْمَعُ مَا تَقُوْلُ فَاَنْزَلَ اللّٰهُ تَعَالٰى قَدْ سَمِعَ الْاٰيَةَ .

بل روايت كښې دى چه دے اُويل اَللّٰهُمَّ اِنِّىْ اَشْكُوْ اِلَيْكَ .

قَوْلَ الَّتِىْ تُجَادِلُكَ فِىْ زَوْجِهَا نوم دَ دے زنا نه خولة بنت ثعلبه دے او خولة بنت مالك بن ثعلبه ورته هم ويلے كيږى او دَ خاوند نوم يې اَوْسُ بن صَامِت رضى الله عنه وو او جدال يې دَ نبى صلى الله عليه وسلم سره په سوال وجواب سره وو چه دے اُويل خاوند ما سره ظهار كړے دے نو رسول الله صلى الله عليه وسلم جواب وركړو چه ما ته په دے باره كښې هيڅ وحى نه ده راغلے بيا هغې اويل چه تا ته دَ هر څيز په باره كښې وحى كيږى نو په دے باره كښې درته ولے وحى نه ده شوے هغه ورته اُويل چه دغه خبره ده چه ما درته اويل .

وَتَشْتَكِيْٓ اِلَى اللّٰهِ اشتكاء نه مراد خپل غم ښكاره كول دى لكه چه

اَلَّذِيْنَ يُظٰهِرُوْنَ مِنْكُمْ مِّنْ نِّسَآئِهِمْ

هغه كسان چه ظهار كوي ستاسو نه د زنانو خپلو سره

مَّا هُنَّ اُمَّهٰتِهِمْ ؕ اِنْ اُمَّهٰتُهُمْ اِلَّا الّٰٓئِىْ

نه دي دوي مائندے د هغوي نه دي د دوي مائندے مگر هغه دي

وَلَدْنَهُمْ ؕ وَاِنَّهُمْ لَيَقُوْلُوْنَ مُنْكَرًا مِّنَ

چه زيګولے دي دوي لره - او يقيناً دوي ضرور وائي بد كار د

الْقَوْلِ وَزُوْرًا ؕ وَاِنَّ اللّٰهَ لَعَفُوٌّ غَفُوْرٌ ②

وينا نه او دروغ او يقيناً الله تعالى ضرور معافي كوونكے بخنه كوونكے دے.

يعقوب عليه السلام فرمائيلي وو انما اشكوا بثي وحزني الى الله سورة يوسف ۸۶ دارنګ مخكښ يو روايت كښ ذكر شول چه دے زنانه هم ويلي وو اللّٰهُمَّ اشكوا ليك نو معلومه شوه چه د بخاري په روايت كښ تشكوا الى رسول الله مجازاً ويلي شوي دي مراد د هغے نه جدال كول دي د نبي صلى الله عليه وسلم سره.

والله يَسْمَعُ تَحَاوُرَكُمَا دا قرينه ده چه مراد د تُجَادِلُكَ نه محاوره كول دي جګړه كول مراد نه دي. ليكن هر كله چه د زنانه د طرف نه په لهجه كښ سختي ده د وجے د خفګان د هغے نه د دے وجے نه هغے ته جدال اُويلي شو.

۲ په دے كښ رد دے په رسم د جاهليت باندے او هغه سبب د فساد او د تفرق وو هغه دا چه چا به خپلے ښځے ته اُويل چه ته په ما باندے زما د مور د شا پشان يې نو هغه به دوي پشان د مور هميشه حرامه ګنړله او طلاق ايدي به يې ګنړلو او رد يې په درے طريقو سره كړيدے يو دا چه اِنْ اُمَّهٰتُهُمْ اه دويم مُنْكَرًا مِّنَ الْقَوْلِ ، دريم زُوْرًا - يُظٰهِرُوْنَ دا د ظهار نه ماخوذ دے او ظهار د ظهر نه دے ظهر په اصل كښ ملا (شا) ته ويلي شي او دا كنايه وي د سورلئ نه او د سورلئ نه مراد جماع كول وو - او د دے الفاظ اتفاقيه دا وي چه اُوائي ښځے ته انْتِ عَلَيَّ كَظَهْرِ اُمِّي او دا رنګ د مور په ځائے چه نيا ذكر كړي - او كه چرے لور يا خور يا نور محرومانو سره تشبيه وركړي نو په هغے كښ د اهل علم اختلاف دے ابن كثير ويلي دي چه صحيح دا ده چه په هغے سره هم ظهار (باقي په بل مخ)

وَالَّذِيْنَ يُظٰهِرُوْنَ مِنْ نِّسَآىِٕهِمْ ثُمَّ
او هغه كسان چه ظهار كوي د زنانو خپلو سره بيا
يَعُوْدُوْنَ لِمَا قَالُوْا فَتَحْرِيْرُ رَقَبَةٍ مِّنْ
واپس كيږي (رماتولو د) هغه خبرے ته چه دوي ويلے وي نو آزادول د مريئ دي
قَبْلِ اَنْ يَّتَمَآسَّا ۭ ذٰلِكُمْ تُوْعَظُوْنَ
مخكښ د يو ځائے كيدلو د دوي نه دا وعظ دركيديشي تاسو ته
بِهٖ ۭ وَاللّٰهُ بِمَا تَعْمَلُوْنَ خَبِيْرٌ ۳ فَمَنْ لَّمْ
په دے سره او الله تعالى ستاسو په عملونو باندے خبردارے دے . نو څوک چه نه

لازميږي مِنْكُمْ دا لفظ دليل دے چه ظهار صرف د سړي حق دے پشان د طلاق، او هغه قول صحيح نه دے چه څوک وائي چه د ښځے د جانب نه هم ظهار كيدے شي . مِنْ نِّسَآىِٕكُمْ مراد تر پنه زوجات دي نو دا دليل دے چه د خپلے وينځے سره ظهار نشي كيدے . منكرا من القول يعني دا شرعًا ناجائز دے او اهل عقل هم بد ګڼړي وَزُوْرًا يعني د حقيقت (واقع) نه مخالف دے ځكه دا چه جمله خبريه شي نو ښځه خو مور نه ده او كه جمله انشائيه شي نو ښځه مستقبل كښ هم د خاوند د پاره مور نشي كيدے . وَاِنَّ اللّٰهَ لَعَفُوٌّ غَفُوْرٌ، عفو په مقابل د منكر او غفور په مقابل د زور كښ دے په دے شرط سره چه كفاره وركړي او توبه اوباسي .

۳ په دے ايت كښ تفصيل د كفارے د ظهار دے يعني په ظهار سره ابدي تحريم نه راځي بلكه كفاره فقط لازميږي .

ثُمَّ يَعُوْدُوْنَ لِمَا قَالُوْا په دے كښ احتمالات مفسرينو ليكلے دي اول دا چه د دے لفظ تكرار اوكړي دا عود دے دويم دا چه جاهليت كښ ئے كړے وي او بيا ئے په اسلام كښ اوكړي . دريم دا چه اراده د جماع اوكړي د پاره د تحليل او مراد د لِمَا قَالُوْا نه لِنَقْضِ مَا قَالُوا دے يا په عبارت كښ تقدير دے يعني يَعُوْدُوْنَ لِتَحْلِيْلِ مَا حَرَّمُوْا . څلورم دا چه عود دا دے چه دومره زمانه ئے روستو د ظهار نه اوساتي چه طلاق پكښ وركيدے شي ليكن طلاق ورنكړي .

يَجِدْ فَصِيَامُ شَهْرَيْنِ مُتَتَابِعَيْنِ مِنْ

موقی روس د سپ ازادولو) نو روژے نیول دی دوه میاشتے پرلہ پسے مخکښی

قَبْلِ أَنْ يَتَمَاسَّا ۖ فَمَنْ لَمْ يَسْتَطِعْ

دَ یوځائے کیدلو دَ دواړونه نو څوک چه وَس نه لری ( دَ روژو نیولو)

فَإِطْعَامُ سِتِّينَ مِسْكِينًا ۚ ذَٰلِكَ لِتُؤْمِنُوا

نو خوراک ورکول دی شپیتهٔ مسکینانو ته دا دَ دے دپاره چه ایمان راؤړئے تاسو

بِاللَّهِ وَرَسُولِهِ ۚ وَتِلْكَ حُدُودُ اللَّهِ ۗ وَلِلْكَافِرِينَ

په الله تعالیٰ او په رسول دَ هغه باندے او دا پولے دَ الله تعالیٰ دی او خاص کافرانو لره

عَذَابٌ أَلِيمٌ ﴿٤﴾ إِنَّ الَّذِينَ يُحَادُّونَ اللَّهَ

عذاب دردناک دے ۔ یقیناً هغه کسان چه خلاف کوی دَ پولو دَ الله تعالیٰ

مِنْ قَبْلِ أَنْ يَتَمَاسَّا مراد دَ مس نه جماع ده او قُبل اولمس په دَس سره هم پدیکښ داخل دی ۔ لیکن که چرے جماع وغیره ئے دَ کفارے نه وړاندے کړے وی نو صحیح دا ده چه استغفار دِ غواړی او کفاره په یوه وی۔

تُوْعَظُوْنَ په د ه وعظ زجر او منع ته ویلے کیږی یعنی کفاره کښی مقصد زجرهم دے او مغفرت هم دے ۔

سل کفاره په دے ترتیب سره ضروری ده اول تحریر دَ رقبے چه په هغے باندے قدرت نه وی نو روژے دوه میاشتے او چه دَ هغے وَس نه وی نو طعام ورکول شپیته مسکینانو ته۔ تفصیلی مسائل دَ دے تفسیر قرطبی کښی او دا رنګ په کتابونو دَ محدثینو او فقهاؤ کښی ذکر دی۔

فائده:۔ دَ تحریر رقبه سره فَمَنْ لَمْ يَجِدْ او دَ صیام سره ئے فَمَنْ لَّمْ يَسْتَطِعْ ذکر کړے دے ځکه وَجَدَ اکثر دَ مالی قوت سره ذکر کیږی لکه سورة طلاق سل او استطاعت اکثر ذکر کیږی په بدنی طاقت کښی۔

ذَٰلِكَ لِتُؤْمِنُوا بِاللَّهِ وَرَسُولِهِ ۔ کفاره ورکول په دے ترتیب سره ۔ او دارنګ دَ ظهار دَ قول نه ځان بچ کول ۔ او دَ وخت دَ کفارے ( پاتے په بل مخ)

وَرَسُوْلَهٗ كُبِتُوْا كَمَا كُبِتَ الَّذِيْنَ مِنْ

او د رسول د هغه نه ذليل كړے شويدي لكه چه ذليل كړے شويدي هغه كسان چه

قَبْلِهِمْ وَقَدْ اَنْزَلْنَآ اٰيٰتٍۭ بَيِّنٰتٍ ؕ وَلِلْكٰفِرِيْنَ

د دوی نه مخکښ وو او يقيناً نازل کړے دی مونږ ايا تونه واضح او خاص کافرانو لره

عَذَابٌ مُّهِيْنٌ ۚ ﴿۵﴾ يَوْمَ يَبْعَثُهُمُ اللّٰهُ

عذاب رسوا کوونکے دے. په هغه ورځ چه راپورته به کړی دوی لره الله تعالیٰ

پورے ځان د مساس (جماع) نه ساتل دا قول يُّ ذکر کړه په تعبير د ايمان سره نو معلومه شوه چه اعمال هم ايمان دے . وَتِلْكَ حُدُوْدُ اللّٰهِ حد هغه وی چه تعين ئے کړے شوی وی او د هغے د وجے نه زياتے او کمے کول په هغے کښ منع وی نو احکام د الله تعالیٰ کښ هم زياتے کول په ابتداع سره او کمے کول په فِسق سره حرام دی.

وَلِلْكٰفِرِيْنَ يعنی څوک چه د حدودو د الله تعالیٰ نه انکار کوی نو هغه کافر حقيقی دے او څوک چه انکار نه کوی ليکن په هغے باندے عمل نه کوی نو کافر حکمی دے په دے لفظ کښ دواړو مرتبو د کفر ته اشاره ده.

ف د حدودو د ذکر نه روستو مخالفت کوونکی د حدودو ته تخويف ورکوی. يُحَآدُّوْنَ محادّه مخالفت کول د حدودو شرعيه او د ځان نه حدود مقرر کولو ته ويلے کيږی او حدود لفظ عام دے هغه سزاګانو ته شامل دے چه شرع مقرر کړيدی لکه حد د زِنا په تَسل دورو وهلو يا په رجم کولو او حد د سرقے (غلا) په لاس پريکولو او حد د قذف (تهمت د زنا کارئے) په اتيا دورو وهلو او قصاص او داريګ شامل دے ټولو احکاموته چه په کتاب الله او په صحيح حديث سره ثابت وی. مفسر الوسی په روح المعانی کښ تفصيلی بحث ليکلے دے چه د هغے حاصل دا دے چه په دے ايت کښ سخت وعيد دے بادشاهان او اُمراء سوء لره چه مخالف د حدود شرعيو نه د ځان نه احکام مقرره وی او هغے ته د قانون نوم ورکوی. بيا يُّ ويلے دی چه هر کله د قانون او شرعے په مينځ کښ مقابله راشی نو هغه څوک چه قانون غوره ګڼړی نو هغه کافر دے ليکن په دے شرط سره چه قانون ته خائسته وائي او د

جَمِيْعًا فَيُنَبِّئُهُمْ بِمَا عَمِلُوْا ۭ اَحْصٰىهُ اللّٰهُ

| نو خبر به ورکړي دوی لره | په عملونو د دوی ، | راګیر کړے دے دی هغه | الله تعالیٰ |
|---|---|---|---|

حکمت سره موافق او فائده مند ګنړي او امر شرعي ته بد ګوري او وائي دا د انساني مصلحت سره موافق نه دے . هاں هغه امور سیاسیه انتظامیه د تعزیرات یا د فوجي نظام باره کښ چه اصحاب الراي یې جوړ وي او د شریعت د اصولو سره یې مصادمة (ټکراؤ) نه وي یا صرف د فقهي اجتهادي اصولو نه مخالف وي نو هغه جائز دي . په دے باب کښ د شیخ الاسلام ابن تیمیه رحمه الله کتاب السیاست الشرعیه کتل پکار دي.

فائده :- محادة اکثر په باره د منافقینو کښ ذکر کیږي لکه سورة توبه ۶۳ کښ محکه چه په دے کښ مخالفت کول دي لیکن په پټه باندے او مشاقه اکثر په باره د ښکاره کفر کوونکو کښ ذکر کیږي لکه سورة حشر ۴ کښ او سورة انفال ۱۳ کښ . او مبتدعین هم د دے ایت په مصداق کښ داخل دي محکه چه مبتدع هم وخت یا کیفیت او مقدار د عباداتو د خپل ځان نه داسے جوړوي چه په شریعت کښ د هغے ثبوت نه وي . کُبِتُوْا اه کبت په معنٰی د ذلت او د شرمنده کیدو او د هلاکت او د لعنت او پرځے غورځیدلو راځي . او دا جمله خبریه ده په معنٰی د مستقبل سره یا جمله دعائیه ده په طریقه د تعلیم بندګانو ته . كَمَا كُبِتَ الَّذِيْنَ اه مراد د دے نه هغه یهودیان دي چه د هغوی د ذلیل کیدلو ذکر سورة بقرا و سورة نساء کښ تیر شوے دے او سورة حشر کښ هم راځي .

وَقَدْ اَنْزَلْنَا اٰيٰتٍۭ بَيِّنٰتٍ مراد د دے نه احکام او حدود الٰهیه دي چه محادین د هغے مخالفت کوي .

وَلِلْكٰفِرِيْنَ عَذَابٌ مُّهِيْنٌ تیر شوي ایت کښ الکافرین نه مراد منکرین د حکم شرعي د ظهار وو او دلته مراد ترینه منکرین د حدود الله عموماً دي او په دے ایت کښ ذلت دنیویه د هغوی یې ذکر کړے دے نو د هغے په مناسبت سره عذاب مهین ذکر کړے شو .

وَنَسُوْهُ ؕ وَاللّٰهُ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ شَهِيْدٌ ⑥

او دوی هیر کړیدی او الله تعالیٰ په هر څیز باندے حاضر دے۔

اَلَمْ تَرَ اَنَّ اللّٰهَ يَعْلَمُ مَا فِي السَّمٰوٰتِ

آیا ته نه گورے چه یقیناً الله تعالیٰ عالم دے په هغه څیزونو چه په اسمانونو کښ دی

وَمَا فِي الْاَرْضِ ؕ مَا يَكُوْنُ مِنْ نَّجْوٰى

او په هغه څیزونو چه په زمکه کښ دی نه کیږی هیڅ جرګه

ثَلٰثَةٍ اِلَّا هُوَ رَابِعُهُمْ وَلَا خَمْسَةٍ اِلَّا هُوَ

د دریے کسانو مګر الله تعالیٰ څلورم د هغه دے او نه د پنځه کسانو مګر هغه ئے

سَادِسُهُمْ وَلَآ اَدْنٰى مِنْ ذٰلِكَ وَلَآ اَكْثَرَ

شپږم دے او نه کم د دے نه او نه زیات

اِلَّا هُوَ مَعَهُمْ اَيْنَ مَا كَانُوْا ۚ ثُمَّ يُنَبِّئُهُمْ

مګر هغه د دوی سره وی هر ځائے چه دوی وی بیا به خبر ورکړی دوی له

ف۶ دا هم تخویف کښ داخل دے فَيُنَبِّئُهُمْ بِمَا عَمِلُوْا اشاره ده چه ځادیتو اګر چه په دُنیا کښ مخالفت پټ کوؤ لیکن په ورځ د قیامت به ئے الله تعالیٰ ښکاره کړی۔ اَحْصٰهُ اللّٰهُ اه دا دلیل د ینبئهم دے احصاء په معنیٰ د شمارہ کښ راګیرول دے چه یو تریته هم پاتے نشی۔

وَاللّٰهُ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ شَهِيْدٌ د مشاهدے نه ماخوذ دے په معنیٰ د نظر کوؤنکی یا د شهود نه ماخوذ دے په معنیٰ د حضور او د علم یعنی حاضر ناظر او عالم دے۔

بِمَا عَمِلُوا يَوْمَ الْقِيٰمَةِ ۭ اِنَّ اللّٰهَ بِكُلِّ شَيْءٍ

په هغه عملونو چه دوی کړیدی په ورځ دَ قیامت یقیناً الله تعالیٰ په هر خیز باندے

عَلِيْمٌ ۞ اَلَمْ تَرَ اِلَى الَّذِيْنَ نُهُوْا عَنِ النَّجْوٰى

پوهه دے۔ ایا ته نه گورے هغه کسانو ته چه منع کړے شویدی دَ جړگو کولو نه

ے دا تائید دے دَ ما قبل (وَاللّٰهُ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ شَهِيْدٌ) او تنبیه ده چه نجویٰ کولو کښ دَ الله تعالیٰ نه ویره کوئے یعنی په کتاره سره جړگے مکوئے الله تعالیٰ تاسو باندے عالم دے۔ په دے ایت کښ په اوله جمله کښ عمومی علم دَ الله تعالیٰ ئے بیان کړو په اعتبار دَ مکانانو سره یعنی علم دَ الله تعالیٰ په یو مکان پورے خاص نه دے او په دو یمه جمله کښ عموم دَعلم دَ الله تعالیٰ ذکر کوی په اعتبار دَ شمار دَ خلقو سره په وخت دَ جړگه کولو کښ۔ او په دریمه جمله کښ تنبیه ده په جــزا ورکولو سره په ورځ دَ قیامت کښ او په څلورمه جمله کښ عموم دَ صفت دَ الله تعالیٰ دے هر خیز ته که مکان وی که زمان وی که عدد وی که قول وی او که عمل وی که ماضی وی او که حال وی یا مستقبل وی وغیره۔

مَا يَكُوْنُ مِنْ نَّجْوٰى مَا نافیه دے۔ يَكُوْنُ دا كان مَا ته په معنیٰ دَ وجود دے۔ مِنْ نَّجْوٰى مِنْ دَ تعمیم دَ نفی دَ پاره دے نَجْوٰى مصدر دے جړگه کولو ته وئیلے کیږی۔ او مضاف دے ثلثة ته یا مضاف محذوف دے یعنی اهل نجویٰ او ثلثة صفت دے او نجویٰ او سر کښ یو فرق دے چه سِرّ پټ راز ساتل دَ ځان سره او نجویٰ مشوره کول دَ بل چا سره په پټه باندے دَ نورو خلقو نه۔ بل فرق دا دے چه سِر دَ دوه کسانو په مینځ کښ او نجویٰ دَ دوؤ نه دَ زیرو کسانو په مینځ کښ کیدے شی۔

ثَلٰثَةٍ او خَمْسَةٍ تخصیص ئے دَ دے وجے نه او کړو چه اکثر وخت جړگه کښ دوه طرفونه وی او یو یکښ فیصله کوؤنکی پکار وی نو دَ هغے ادنیٰ عدد درے شول او ورپسے پنځه شول او کله کم وی او کله زیات وی په سبب دَ ضرورت سره نو هغه ئے په وَلَا اَدْنٰى مِنْ ذٰلِكَ وَلَا اَكْثَرَ سره ذکر کړو او بله وجه دا ده چه خوره عدد وتر دے په نسبت دَ زوج سره۔

اِلَّا هُوَ رَابِعُهُمْ اه ثَالِثُهُمْ ئے نه دے وئیلے اشاره ده (ریاتے په بل مخ)

ثُمَّ يَعُوْدُوْنَ لِمَا نُهُوْا عَنْهُ وَيَتَنَاجَوْنَ

بیا راګرځي هغه کار ته چه منع شوي دي ددغه نه او جرګې کوي

بِالْاِثْمِ وَالْعُدْوَانِ وَمَعْصِيَتِ الرَّسُوْلِ

په ګناه او ظلم او په نافرماني د رسول سره

وَاِذَا جَآءُوْكَ حَيَّوْكَ بِمَا لَمْ يُحَيِّكَ بِهِ اللّٰهُ

او هر کله چه دوی تا ته راشي نو سلام کوي تا ته په هغه طريقه چه سلام نه دے کړے تا ته په هغه سره الله تعالی

وَيَقُوْلُوْنَ فِيْٓ اَنْفُسِهِمْ لَوْلَا يُعَذِّبُنَا اللّٰهُ

او دوی وائي په خپلو زړونو کښې ولے سزا نه راکوي مونږ ته الله تعالی

بِمَا نَقُوْلُ حَسْبُهُمْ جَهَنَّمُ يَصْلَوْنَهَا

د هغه چه مونږ وايو . پوره دے دوی لره جهنم ورننوځي به دوی هغے ته

فَبِئْسَ الْمَصِيْرُ ﴿۸﴾ يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْٓا

نو بد ځائے د ورتللو دے . اے ايمان والو

چه الله تعالی د مخلوق د جنس نه نه دے بلکه د دوی نه غير دے لکه څلورم چه د دريو نه غير وی او مراد د دے نه حد کښې واقع کيدل نه دی بلکه معيت مراد دے لکه چه ورپسے مَعَهُمْ يَـٔ ذکر کړے دے او پدے ذکر کولو کښې اشاره ده چه په جرګه د ثلاثه کښې (مثلاً) دوه تنه خبرے کوی او دريم يو اځے پاتے شی نو الله تعالی هغه ته تسلی ورکوی چه څه تا سره ملګرے يم - او تفصيل د معيت په تفسير د سورة حديد کښې تير شويدے او د دے په تفسير کښې ابن جرير ليکلی دی چه ضحاک ويلی دی چه الله تعالی د عرش د پاسه دے او علم يـٔ د مخلوق سره وی په هر ځائے کښې دوی موجود وی او ابن کثيرؒ ويلی دی اجماع ده په دے خبره باندے چه مراد پدے ايت سره معيّت د علم د الله تعالی دے او پدے کښې شک نيشته او سمع د الله تعالی سرهٔ د علم نه محيط ده په دوی باندے او بصر د هغه نافذ دے په ټول مخلوق کښې. او امام احمدؒ ويلی دی چه دا ايت يـٔ په علم سره شورو کړيدے او په علم سره يـٔ ختم کړيدے.

ـــٔ هر کله چه تير شوی ايت کښې تنبيه ذکر کړه چه جرګے کولو کښې الله تعالی حاضر ناظر

إِذَا تَنَاجَيْتُمْ فَلَا تَتَنَاجَوْا بِالْإِثْمِ وَالْعُدْوَانِ

هرکله چه جرګې کوئې تاسو نو جرګې مه کوئې په ګناه او ظلم سره

وَمَعْصِيَتِ الرَّسُولِ وَتَنَاجَوْا بِالْبِرِّ

او په نافرمانئ د رسول سره او جرګې کوئې په نیکئ کولو

اوګنړئ یعنی نا جائز جرګې مه کوئې نو اوس په دې کښې زجر دے په ځلورو کارونو د مفسدانو سره. اول عود نجوی منهی عنه ته. دویم تناجی د پاره ناجائز کارونو. دریم سلام کول خلاف د سنت نه ځلورم ځان د ګناه او د عذاب نه پاک ګنړل. او دا کارونه منافقانو یهودیانو فاسقانو کافرانو ټولو کښې موجود دی نو ایت ټولو ته شامل دے نُهُوا عَنِ النَّجْوٰى دا نهی په سورة نساء ۱۱۴ کښې هم ده او دا رنګ ابن کثیر حدیث ذکر کړے دے چه په هغې کښې نهی د نجوی نه موجود ده او النجوی کښې الف لام عهدی دی یعنی نجوی د معصیت او د مؤمنانو د خفه کولو د پاره.

بِالْإِثْمِ مراد د دے نه هر هغه ګناه ده چه د حقوق الله سره تعلق لری لکه کفر، شرك، دروغ ویل او بدکاری وغیره.

وَالْعُدْوَانِ هغه ګناه ده چه حقوق د بندګانو سره تعلق لری لکه ظلم کول، بهتان تړل، غیبت کول، مال د غیر غصب کول وغیره.

وَمَعْصِيَتِ الرَّسُولِ هر هغه ګناه ده چه حق د پیغمبر سره تعلق لری لکه د هغه د سنت نه مخالفت کول، د هغه بے ادبی کول، بدعات او رسمونه رواجوته کول.

حَيَّوْكَ بِمَا لَمْ يُحَيِّكَ بِهِ اللّٰهُ دا شامل دے هغه الفاظ او طریقې د سلام ته چه د شرع نه خلاف وی لکه لفظ السَّامُ عَلَيْكَ، په خیر راغلے، په خه چار شے. اَنْعِمْ صَبَاحًا (صباد خه شه)، ورځ د خه شه یا په ګوتو او په لاس اوچتولو سره سلام کافی ګنړل او ابتداء په السّلام علیکم سره نه کول. او په دا سے حالت کښې هغه حقدار د جواب د سلام نه دے. يُحَيِّكَ بِهِ اللّٰهُ الله تعالی تحیه په لفظ د سلام سره ذکر کړې ده لکه سَلَامٌ عَلٰى عِبَادِهِ الَّذِيْنَ اصْطَفٰى. وَسَلَامٌ عَلَى الْمُرْسَلِيْنَ. وَيَقُوْلُوْنَ لَوْلَا اه مقصد دا دے چه دا (بے ادبی د نبی صلی الله علیه وسلم) ګناه نه ګنړی ځکه چه تر اوسه پورې په دوی باندې عذاب نه دے راغلے. بِمَا نَقُوْلُ مراد د دے نه ناجائز تناجی، او تحریف په سلام کښې دے.

وَالتَّقْوٰى ۭ وَاتَّقُوا اللّٰهَ الَّذِيْٓ اِلَيْهِ

او تقوىٰ سره . او ويره كوئ د الله تعالىٰ نه هغه ذات چه هغه ته په

تُحْشَرُوْنَ ۝ اِنَّمَا النَّجْوٰى مِنَ الشَّيْطٰنِ

جمع كړے شئ تاسو . يقينًا دا قسم جرگے د شيطان (په وسوسے سره دي)

لِيَحْزُنَ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَلَيْسَ بِضَاۗرِّهِمْ

د دے د پاره چه غمژن كړي مؤمنانو لره او نه دي ضرر وركوونكي مؤمنانو ته

ربط: روستو د زجر وركولو نه مفسدانو ته په ناجائز تناجي كولو مؤمنانو لره اول قانون اصلاحي د تناجي په باره كښ ذكر كوي. حاصل دا دے چه كله مؤمنان يو جرگه، اجلاس، ميټنگ كوي يا يو اجلاس ته را او بللے شي نو ضروري دا ده چه د ناجائز اجلاس كولو او د هغے د شركت نه ځان بچ اوساتي. اِذَا تَنَاجَيْتُمْ په دے شرطلگولو كښ اشاره ده چه تناجي كول مامور به نه ده ليكن كه چرے ضرورت پريوځي نو تناجي كښ د ادب لحاظ اوكړئ. بِالْبِرِّ وَالتَّقْوٰى بِرّ اشاره ده امتثال د مامو راتو ته او تقوى اشاره ده اجتناب د منهياتو ته يا بِرّ احسان كول د مخلوق سره او تقوىٰ حقوق الله ته اشاره ده.

فائده: په سورة نساء ۱۱۴ كښ استثناء ئے كړے ده په نجوىٰ كولو كښ د درے ماموراتو نه او په دے ايت كښ امر دے په دوه اعمالو سره وجه دا ده چه په سورة النساء كښ (يُبَيِّتُوْنَ مَا لَا يَرْضٰى مِنَ الْقَوْلِ) ذكر كړے دے يعنى د منافقانو جرگے په باره د اقوالو كښ او امر كول هم د قبيلے د اقوالو نه دے نو هغه سورت كښ (اِلَّا مَنْ اَمَرَ) سره درے مامورات ذكر كړل او په دے سورت كښ ئے محادة ذكر كړے ده او محادة كول عمل دے او بِرّ او تقوى د محادے نه خلاف عمل كول دي نو دلته دا دواړه عملونه د تناجي د پاره خاص كړل، بيا وجه د فرق دا ده چه په هغه سورت كښ د منافقانو په نجوىٰ كولو باندے رد كول مقصد دے او د منافقانو عادت دا دے چه امر كوي په بخل كولو او په منكر سره او د خلقو په مينځ كښ فساد پيدا كوي نو هلته ئے د هغے مقابل خيزونه ذكر كړل يعنى امر په صدقه كولو او معروف او اصلاح كول. او په دے سورت كښ مؤمنانو ته خطاب دے او د ايمان سره مناسب دوه كارونه دي بِرّ او تقوىٰ.

شَیْـًٔا اِلَّا بِاِذْنِ اللّٰهِ ؕ وَعَلَى اللّٰهِ فَلْيَتَوَكَّلِ

هیڅ ضرر مگر په حکم دَ الله تعالیٰ سره او خاص په الله تعالیٰ باندے توکل کوی

الْمُؤْمِنُوْنَ ⑩ يٰۤاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْۤا اِذَا قِيْلَ

مؤمنان - اے ایمان والو کوم وخت چه اویلے شی

لَكُمْ تَفَسَّحُوْا فِى الْمَجٰلِسِ فَافْسَحُوْا

تاسو ته ځائے پریږدئ یو بل ته په ځایو نو دَ ناستے کښ نو ځائے پریږدئ

يَفْسَحِ اللّٰهُ لَكُمْ ۚ وَاِذَا قِيْلَ انْشُزُوْا

ځائے به فراخ کړی الله تعالیٰ تاسو لره او کوم وخت چه اویلے شی پاسئ دَ خپل ځائے نه

فَانْشُزُوْا يَرْفَعِ اللّٰهُ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا مِنْكُمْ ۙ

نو پاسئ اوچتوی الله تعالیٰ مؤمنانو لره ستاسو نه

وَالَّذِيْنَ اُوْتُوا الْعِلْمَ دَرَجٰتٍ ؕ وَاللّٰهُ

او هغه کسان چه علم ورکړے شوے دے په ډیرو درجو سره او الله تعالیٰ

سڵ په دے کښ رد دے په بے ضرورته جرگے کولو باندے او هغه جرگے کول د منافقانو دی په مخالفت دَ مؤمنانو کښ ۔ اِنَّمَا النَّجْوٰى الف لام عهدی دی یعنی نجوی مذمومه چه اثم عدوان او معصیت سره وی او داخل ده په دے کښ هغه چه په حدیث مسلم کښ دَ هغے نه نهی کړے شوے ده چه رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمائیلی دی "چه هر کله تاسو درے کسان یئ نو دوه تنه دِ دے بغیر دَ دریم نه تناجی (جرگه) نه کوی دے دَ پاره چه هغه دریم غمژن نه شی "

او قرطبی ویلے دی چه تخصیص په درے پورے نیشته ډیرو ته هم شامل دے۔

لِيَحْزُنَ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا یعنی منافقان چه هر کله جرګه کوی نو ضرور دَ مؤمنانو په مخالفت کښ یئے کوی هغوی ته دَ ضرر رسولو دَ پاره یئے کوی۔

وَعَلَى اللّٰهِ فَلْيَتَوَكَّلِ اه یعنی هر کله چه مؤمنان دَ هغوی دَ جرګو نه خه و یره محسوسه کړی نو دَ هغوی دَ شر نه دِ پناه غواړی او په الله تعالیٰ باندے دِ ځان اوسپاری او دَ الله تعالیٰ دَ مدد انتظار دِ دے کوی۔

بِمَا تَعْمَلُونَ خَبِيرٌ ⑪ يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا

ستاسو په عملونو باندے خبردار دے۔ اے ایمان والو

سلہ دا دویم ادب دَ مؤمنانو دَ پاره دَ مجلس دَ تنا جی سره متعلق دے چه په دیکښ امر دے په اکرام او عزت دَ ملګرو دَ ایمان دَ وجے نه او دَ اهل علمو زیات اکرام او عزت کول۔ او په دیکښ اشاره ده چه دَ مجلس او جماعت شرکاء به مساوی نه ګنړئ بلکه علم والو له به افضله مرتبه او عهده ورکیدیشی۔
إِذَا قِيلَ لَكُمْ تَفَسَّحُوا فِي الْمَجَالِسِ اه تَفَسَّحُ نه مراد دا دے چه په خپل ځائے باندے دا سے کینئ چه دَ بل ملګری ځائے بند نه کړی دا معنٰی نه ده چه فراخ او کهلاؤ کینئ او دَ بل چا دَ کینا ستلو ځائے بند کړی۔ الْمَجَالِسِ دَ دے نه مراد عام مجالس دَ ذکر او دَ خطبے او ریدلو دی او مجلس دَ مشورے کولو او مجلس دَ درسونو وغیره دی۔ يَفْسَحِ اللَّهُ لَكُمْ فراخی دَ دُنیا او آخرت ته شامل دے او هر کله چه جزاء دَ عمل دَ جنس نه وی نو دَ جزا نه ئے تعبیر او کړو په یفسح سره۔ او حدیث صحیح کښ هم راغلے دی چه یو شخص دِ بل چا لره دَ مجلس نه په دے مقصد باندے نه پاسوی چه دَ هغه په ځائے باندے پخپله کینی۔ او بل حدیث کښ وارد دی چه هر کله یو شخص دَ خپل ځائے نه (دَ څه ضرورت) دَ پاره پاسیږی او اراده دَ واپسے لری نو بل شخص دِ دَ هغه په ځائے باندے نه کینی۔
وَإِذَا قِيلَ انشُزُوا اه مراد دَ دے دا دے چه امیر مجلس چا ته امر او کړی چه دَ خپل ځائے نه پورته شه دَ دے دَ پاره چه مشر سری له ځائے ورکړی نو دا شخص به دا امر منی او دا رنګ چه امر او کړی دَ مانځه دَ پاره، جهاد دَ پاره، بل څه کار خیر دَ پاره چه دَ خپل ځائے نه او دریږئ نو دا امر به هم منلے کیږی۔
فائده:۔ راتلونکی شخص دَ پاره او دریدلو کښ اختلاف دے دَ اهل علمو۔ دَ وجے دَ احادیثو مختلفو نه بعض اهل علم دَ جواز مطلقًا قائل دی او بعض مطلقًا منع کوی او بعضو پکښ تفصیل کړیدے او دا غوره دے تفصیل دا دے چه دَ سفر نه راشی یا حاکم په ځائے دَ ولایت خپل کښ وی نو هغوی ته قیام جائز دے او نور چا ته نه دے جائز۔ او دا رنګ خوک چه په دے قیام خوشحالیږی یا خوک چه دَ دے نه دَ خپل ځان دَ پاره منع کوی او په هغے خفه کیږی لکه رسول الله صلی الله علیه وسلم نو هغه دَ پاره قیام منعه دے۔ دا رنګ چه یو شخص دَ ځان دَ پاره منع کړے وه۔

## إِذَا نَاجَيْتُمُ الرَّسُولَ فَقَدِّمُوا بَيْنَ يَدَيْ

هر كله چه جرګه كول غواړئ د رسول صلى الله عليه وسلم سره نو اولېږدئ مخكښ د

ناست وي او بل شخص ورته بې ضرورته ولاړ وي او دے په هغې باندے خوشحاله وي نو دا ناجائز دے او دا رنګ د دے عادت جوړول هم منع دي او ابن حجر د ابن رشد نه نقل كړيدي چه قيام په څلور قسمه دے اول قسم حرام دے هغه دا چه يو شخص غواړي د وجے د تكبر نه چه ما ته دِ قيام اوكړے شي دويم قسم مكروه دے هغه دا چه يو شخص قيام په دے وجے سره بداګنړي چه متكبرينو سره تشبيه رانشي او يا زما په زړه كښ تكبر پيدانشي دريم قسم جائز دے هغه دا چه يو شخص قيام د خلقو نه نهٔ غواړي او د هغه د اكرام او د ېرّ دَ وجے نه هغه ته قيام اوكړے شي څلورم قسم مستحب دے هغه قيام د هغه چا د پاره دے چه د سفر نه راشي يا هغه څوك چه هغه ته په څه نعمت باندے مبارك ورکيدے شي يا په څه مصيبت كښ تعزيه وركيدے شي. (زيات تفصيل فتح البارى ص۴۵ جلد ۱۱ كښ دے)

يَرْفَعِ اللَّهُ الَّذِينَ آمَنُوا (دا جواب د امر (فانشزوا) دے او جزاء د جنس د عمل نه وي يعني چه تاسو په امر د شرع پورته شئ نو الله تعالى به تاسو په شرط د ايمان سره پورته كړي او اشاره ده چه ايمان سبب د رفعت دے.

وَالَّذِينَ أُوتُوا الْعِلْمَ دَرَجَاتٍ په دے كښ دوه توجيه دي اول دا چه په كلام كښ تقدير دے يَرْفَعُ اللَّهُ الَّذِينَ آمَنُوا فِي الْكَرَامَةِ فِي الدُّنْيَا وَالثَّوَابِ فِي الْآخِرَةِ وَيَرْفَعُ الَّذِينَ أُوتُوا الْعِلْمَ دَرَجَاتٍ كَثِيرَةً عَلَى عَامَّةِ الْمُؤْمِنِينَ. يعني اول رفعت په ايمان سره دے بيا ډيرے درجے او رفعت په علم سره دے. او اشاره ده چه رفعت په نيز د الله تعالى په ايمان او په علم سره دے نه په سبقيت د مجالسو سره.

دويم توجيه دا چه والذين روستنے عطف دے په والذين مخكني باندے او يوه جمله ده معنى دا چه پورته كوي الله تعالى هغه كسان چه ايمان ئې راوړے وي او عالمان هم وي په ډيرو درجاتو سره، ليكن اوله توجيه غوره ده په سبب د تكرار د موصول سره. او د دے ايت په تفسير كښ ابن كثير، قرطبي، شربيني، الوسي د علم فضيلت په تفصيل (راټ په بل مخ)

نَجْوٰىكُمْ صَدَقَةً ؕ ذٰلِكَ خَيْرٌ لَّكُمْ وَاَطْهَرُ ؕ

جرگے ستاسو نه خیرات دا غوره ده تاسو لره او پاکوونکے ده

فَاِنْ لَّمْ تَجِدُوْا فَاِنَّ اللّٰهَ غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ ﴿۱۲﴾

نو که تاسو نه موموئ (صدقه) نو یقیناً الله تعالیٰ بخنه کوونکے رحم کوونکے دے.

ءَاَشْفَقْتُمْ اَنْ تُقَدِّمُوْا بَيْنَ يَدَيْ نَجْوٰىكُمْ

ایا او یریدلئ تاسو چه اولیږئ مخکښ د جرگے ستاسو نه

صَدَقٰتٍ ؕ فَاِذْ لَمْ تَفْعَلُوْا وَتَابَ اللّٰهُ عَلَيْكُمْ

خیرات نو نه نو کله چه او نکړئ (د عجز د وجے نه) او اسانتیا راوستله الله تعالیٰ په تاسو باندے

سره لیکلی دے او محمود کرمانی په غرائب التفسیر کښ د ابن مسعود رضی الله عنه نه روایت ذکر کړے دے چه اے خلقوخان پدے ایت باندے پوهه کړئ د پاره د دے چه په علم کښ رغبت اوکړئ. او قرطبی لیکلی دی چه مراد د اوتوا العلم نه علماء د قرآن دی.

۱۲ دا دریم قانون او ادب د نجویٰ کولو دے او مقصد په دے کښ تخفیف وو په نبی صلی الله علیه وسلم باندے او بنکاره کول وو د اخلاص د مناجات کوونکو. وجه دا وه چه منافقینو خلقو به بے ضرورته د نبی صلی الله علیه وسلم سره جرگے کولے او د هغه وخت به ئے ضائع کولو او نورو مسلمانانو له به ئے د نجویٰ کولو وخت نه ورکوؤ نو دا قانون الله تعالیٰ مقرر کړو چه څوک د نبی صلی الله علیه وسلم سره نجویٰ کول غواړی نو وړاندے به صدقه اوکړی د پاره د دے چه اخلاص ئے معلوم شی او دا حکم مختص وو په نجویٰ د نبی صلی الله علیه وسلم پورے. فَقَدِّمُوْا ا ه ظاهر دا ده چه دا د پاره د وجوب دے. ذٰلِكَ خَيْرٌ لَّكُمْ وَاَطْهَرُ دا فائدے د دے حکم دی. خَيْرٌ یعنی ډیر اجر او ثواب دے او د مسکینانو فقراء سره همدردی ده او ذریعه ده د پاره د فائدے اخستلو د مشورے د رسول الله صلی الله علیه وسلم نه. وَاَطْهَرُ پاکوونکے د بخل او د محبت د دنیا نه او د ارنگ د نفاق نه. فَاِنْ لَّمْ تَجِدُوْا مراد د دینه عدم طاقت مالیه دے یعنی مسکین او فقیر باندے دا صدقه واجب نه ده -

فَأَقِيمُوا الصَّلٰوةَ وَاٰتُوا الزَّكٰوةَ وَأَطِيعُوا اللّٰهَ

نو پابندي دَ مونځ کوئ او ورکوئ زکوٰة او اطاعت کوئ دَ الله تعالیٰ

وَرَسُولَهُ ۚ وَاللّٰهُ خَبِيرٌ بِمَا تَعْمَلُونَ ﴿۱۳﴾

او دَ رسول دَ هغه او الله تعالیٰ خبردار دے په هغه عملونو باندے چه تاسو کوئ .

سلا ءَ اَشْفَقْتُمْ خطاب عام دے مؤمنانو او منافقانو ته . منافقان او بيريدل دَ صدقے ورکولو نه په سبب دَ بُخل سره . او مؤمنان او بيريدل دَ دوام دَ دے حکم نه يعني دوي اُويل که چرے دا حکم هميشه پاتے شي او مونږ خو فقراء يو هر وخت دَ صدقے طاقت نه لرو نو دَ نبي صلي الله عليه وسلم سره به دَ نجویٰ کولو نه محرومه پاتے شو . فَإِذْ لَمْ تَفْعَلُوا منافقانو په دے باندے عمل اونکړو دَ وجے دَ نفاق نه . ليکن مؤمنانو عمل او نکړو دَ دے وجے نه چه فرصت دَ صدقے ورکولو ورته ملاؤ نشو ځکه چه حکم کښې تبديلي ډيره زر راغله او مفسرينو په تفسير دَ دے ايت کښې دوه روايتونه دَ علي رضي الله عنه نه نقل کړيدي يو دا چه هغه عمل کړے وو په دے ايت باندے او نورو صحابو ته موقع ملاؤ نشوه ليکن هغه روايت د دے لفظ فَإِذْ لَمْ تَفْعَلُوا نه مخالف دے او قرطبي ويلے دي چه هغه روايت ضعيف دے . او دويم روايت په ..... امام ترمذي او ابن جرير سره نقل دے چه په هغے کښې ثابت شوے ده چه علي رضي الله عنه خو په دے عمل نه دے کړے ليکن نبي صلي الله عليه وسلم نه ئے مشوره ورکړه چه دا صحابه کرام خو دَ دے طاقت نشي لرلے نو الله تعالیٰ دَ هغه دَ وجے نه تخفيف راوستلے دے . وَتَابَ اللّٰهُ عَلَيْكُمْ دلته توبه په معنیٰ دَ تخفيف سره ده لکه سورة مزمل سلا کښې هم توبه په معنیٰ دَ تخفيف ده ځکه دلته دَ گناه صدور نه دے ثابت شوے .

فَأَقِيمُوا الصَّلٰوةَ اه يعني که چرے په مستحباتو باندے عمل نه شئ کولے نو پرواه نيشته خو فرائضنو باندے هميشه عمل جاري ساتئ او په هغے کښې نسخ يا تخفيف نه راځي .

فائده :- مشهوره دا ده چه اول ايت په دويم سره منسوخ شويدے او ويلے شويدي چه دَ منسوخيت دَ پاره په اول حکم باندے عمل ريا تے په بل مخ)

أَلَمْ تَرَ إِلَى الَّذِينَ تَوَلَّوْا قَوْمًا غَضِبَ اللَّهُ
ایا نه گورے ته هغه کسانو ته چه دوستانه کوی د داسے قوم سره چه غضب کړیدے الله تعالیٰ
عَلَيْهِمْ ۖ مَا هُمْ مِنْكُمْ وَلَا مِنْهُمْ وَيَحْلِفُونَ
په هغوی باندے نه دی هغوی ستاسو نه او نه د دوی نه او قسمونه کوی
عَلَى الْكَذِبِ وَهُمْ يَعْلَمُونَ ﴿١٤﴾ أَعَدَّ اللَّهُ
په دروغو باندے او دوی پو هیږی . تیار کړیدے الله تعالیٰ

کول هم شرط نه وی په سبب د دے واقعے سره - لیکن تحقیق دا دے چه د متقدمینو علماؤ په نیز نسخ صرف تبدیلۍ ته ویلے کیږی، نو دا نسخ دے لیکن د متأخرینو په اصطلاح کښ دا نسخ نه دے نو بیا په دے کښ دوه قولونه دی اول دا چه دا تخفیف د حکم دے د وجوب نه استحباب ته لکه چه سورة انفال ۶۶ کښ تیر شویدی او دویم قول دا دے چه دویم ایت شرح د اول ایت ده یعنی معلومه شوه په دویم ایت سره چه په اول ایت کښ هم امر د وجوب د پاره نه وو د دے وجے نه هیچ چاپه هغے باندے عمل نه دے کړے صرف د دے د پاره حکم وو چه د منافقانو او د مخلصانو په مینځ کښ فرق راشی - لیکن اول قول په دے دواړو قولونو کښ غوره دے چه دا تخفیف دے . نسخ هم نه دے او صرف شرح هم نه ده -

۱۴ د دے ایت نه تر اخره پورے دویم باب دے په دے کښ زجرونه دی منافقینو مفسدینو ته او د هغوی پنځلس قباحتونه ذکر کوی او تخویف ورکوی په ۱۵ او ۱۷ کښ او په اخر کښ صفت د مؤمنانو دے په ذکر د براءت د هغوی د محادینو مفسدینو نه او بشارت دے مؤمنانو ته - په دے (۱۴) کښ درے قباحتونه د منافقینو ذکر کړے دی -

اول قباحت تَوَلَّوْا قَوْمًا غَضِبَ اللَّهُ عَلَيْهِمْ مراد د دے نه یهودیان دی ځکه چه په دوی کښ اسباب د غضب الٰهی موجود دی ډیر زیات نو ته د قران کریم په دے باندے شاهد دی لکه سورة بقره ۶۱ ۹۰ او سورة ممتحنه ۱۳ .
دویم قباحت مَا هُمْ مِنْكُمْ وَلَا مِنْهُمْ لکه چه سورة نساء ۱۴۳ کښ تیر شویدی.
دریم قباحت د يَحْلِفُونَ عَلَى الْكَذِبِ په دعویٰ د ایمان او اسلام کښ

لَهُمْ عَذَابًا شَدِيْدًا ۭ اِنَّهُمْ سَاۗءَ مَا كَانُوْا

دوی لره عذاب سخت یقینا دوی ناکاره دی هغه عملونه

يَعْمَلُوْنَ ۝۱۵ اِتَّخَذُوْٓا اَيْمَانَهُمْ جُنَّةً

چه دوی کوی . جوړ کړے دی دوی قسمونو خپل ډال

فَصَدُّوْا عَنْ سَبِيْلِ اللّٰهِ فَلَهُمْ عَذَابٌ

نو بند شول (یا بندول کوی) د لارے د الله تعالیٰ نه نو دوی لره عذاب

مُّهِيْنٌ ۝۱۶ لَنْ تُغْنِيَ عَنْهُمْ اَمْوَالُهُمْ

رسوا کوونکے دے . هیچرے به دفع نه کړی د دوی نه مالونه د دوی

او شهادت د رسالت د دے رسول کښې د ُغوژن وی او حال دا چه قسمونه هم کوی۔ په صیغه د مضارع کښې تجدد ته اشاره ده او لفظ د علیٰ کښې جراءت او زړورتیا ته اشاره ده یعنی مُجْتَرِئِيْنَ عَلَى الْكَذِبِ . (زړورتیا کوونکی دی په دروغو او په قسم کولو کښې)۔ وَهُمْ يَعْلَمُوْنَ یعنی سرهٔ د علم او د قصد نه دروغ وائی او قسم کوی نو دا یمین غموس دے۔

سـ۱۵ د دے ایت په اوله جمله کښې تخویف دے او دویمه جمله کښې یل قباحت د دوی ذکر کوی چه هغه علت د عذاب دے۔

سـ۱۶ دا جمله مستأنفه ده په جواب د سوال کښې ده چه که څوک اُووائی چه دوی سرهٔ د پوهے وئے په دروغه قسم کوی نو جواب ورکوی۔ او دا رنګ دا جمله تفصیل د سَاۗءَ مَا كَانُوْا يَعْمَلُوْنَ دے او په دیکښې د دوی دوه قباحتونه بیان ذکر کړیدی او په آخری جمله کښې تخویف دے۔ اَيْمَانَهُمْ مراد ترینه دروغ قسمونه د دوی دی۔ جُنَّةً ډال ته وئیلے کیږی چه په هغے سره ځان د ګذار د تورے ، توپک وغیره نه بچ کوی. نو دا رنګ دوی په دے قسمونو سره ځان د مؤمنانو د زجر او هرے شرمندګئ نه بچ کوی۔ فَصَدُّوْا عَنْ سَبِيْلِ اللّٰهِ دا لازمی دے یعنی بند شول د حق نه ، یا متعدی دے یعنی خلق منع کوی د لارے د الله تعالیٰ نه ، فا دلالت کوی چه دا قسمونه د دوی سبب دے د پاره د صَدٌّ عَنْ سَبِيْلِ اللّٰهِ - فَلَهُمْ عَذَابٌ مُّهِيْنٌ دا فا هم دلالت کوی (یا تے په بل مخ)

وَلَآ أَوْلَادُهُمْ مِّنَ اللهِ شَيْـًٔا ۚ أُولَـٰٓئِكَ

او نه اولاد دَ دوی دُ (عذاب) دَ الله تعالٰی نه هیڅ څیز - دغه کسان

أَصْحَـٰبُ النَّارِ ۖ هُمْ فِيهَا خَـٰلِدُونَ ﴿١٧﴾

اُور والا دی دوی به په هغې کښې همیشه وی -

يَوْمَ يَبْعَثُهُمُ اللهُ جَمِيعًا فَيَحْلِفُونَ لَهُۥ

په کومه ورځ چه راپورته به کړی الله تعالٰی دے ټولو لره نو قسمونه به کوی دوی هغه ته

كَمَا يَحْلِفُونَ لَكُمْ ۖ وَيَحْسَبُونَ أَنَّهُمْ

لکه چه قسمونه کوی تاسو ته او گمان کوی دوی چه یقینًا دوی

عَلَىٰ شَيْءٍ ۚ أَلَآ إِنَّهُمْ هُمُ الْكَـٰذِبُونَ ﴿١٨﴾

په څیز (فائده مند) باندے دی خبر شئ یقینًا دوی دروغژن دی -

چه صَدّ عَنْ سَبِيْلِ الله علت دے دَپاره دَعذاب دَ دوی - او هرکله چه دوی په دروغ قسم کښې توهین کوی دَ نوم دَ الله تعالٰی او دا رنګ دَ مؤمنانو اهانت کوی دَ دے وجے نه عذاب مُهِين ئے ذکر کړو۔

سے دا تخویف اخروی دے په ذکر دَ دوه قباحاتو دَ دوی سره - او رد دے په زعم دَ هغه چا باندے چه په مالونو او په اولاد سره لوئی او تکبر کوی - اَمْوَالُهُمْ په فدیه ورکولو او په رشوت ورکولو سره فائده نه ورکوی - وَلَآ اَوْلَادُهُمْ لفظ دَ لَا ئے دَ تاکید دَ نفی دَپاره مکرر راوړے دے - اولاد په مدد کولو او دا رنګ په دنیا کښې په دُعا کانو غوختلو او په نیک عملونو سره مور او پلار (مشرکانو) ته فائده نشی ورکولے مِنَ اللهِ دَ عذاب دَ الله تعالٰی نه. شَيْئًا مفعول به دے یا مِنَ اللهِ په معنٰی دَ عندالله دے او شیئًا مفعول مطلق دے یعنی شَيْئًا مِنَ الْإِغْنَاءِ دا رنګ ایت په سورت آل عمران سنا ۱۱۶ کښې تیر شویدے۔

سنا په دے کښې دَ دوی درے قباحات ذکر کوی - يَوْمَ متعلق دے په اصحاب النار پورے یا په اذکروا پټ پورے فَيَحْلِفُونَ لَهُۥ قسمونه به کوی چه مونږ په هدایت باندے وؤ او مونږ هیڅ کفر نه دے کړے پشان دَ مشرکانو به قسم کوی لکه

اِسْتَحْوَذَ عَلَيْهِمُ الشَّيْطٰنُ فَاَنْسٰهُمْ ذِكْرَ اللّٰهِ ؕ

غلبه کړيدہ په دوی باندے شیطان نو هیر ئے کړو د دوی نه ذکر د اللہ تعالیٰ

اُولٰٓئِكَ حِزْبُ الشَّيْطٰنِ ؕ اَلَآ اِنَّ حِزْبَ

دغه کسان ډله د شیطان دہ خبر شئ یقیناً ډله

الشَّيْطٰنِ هُمُ الْخٰسِرُوْنَ ﴿۱۹﴾ اِنَّ الَّذِيْنَ

د شیطان دوی تاوان والا دی - یقیناً هغه کسان

سورة انعام ۲۳ کښ - كَمَا يَحْلِفُوْنَ لَكُمْ یعني دوی په دُنیا کښ په دروغ قسمونو باندے عادت وو -
ابن کثیر وئیلے دی چه چا په کم عمل باندے ژوند تیر کړے وی نو په هغے باندے مړ کیږی او په هغے باندے بیا ژوندے کیږی -
يَحْسَبُوْنَ اَنَّهُمْ عَلٰى شَيْءٍ عطف دے په اول یحلفون یا په دویم باندے یعني په دُنیا او اخرت دواړو کښ د دوی گمان دے چه په دروغه قسم کول په مونږ د پاره فایده مند وی او دا د وی خپل کمال گنړی - اَلَآ اِنَّهُمْ هُمُ الْكٰذِبُوْنَ یعني دوی په دے قسم د ورځ اخرت او گمان کولو کښ دروغژن دی لکه چه په دُنیا کښ دروغژن وو او هر کله چه دوی په قسم کولو سره خپل دروغ پټوی نو اللہ تعالیٰ په اثبات د کذب د دوی کښ تاکید اوکړو په لفظ د اَلَآ او اِنَّ او هُمْ ضمیر فصل، او لام تاکیدی سره او په جملے اسمیه سره -
۱۹ په دے ایت کښ نور درے قبائح د دوی ذکر دی - اِسْتَحْوَذَ دا د تیر شوے قبائحو د پاره علت دے د دے وجے نه په عطف سره نه دے ذکر کړے -
اِسْتَحْوَذَ د حوذ نه ماخوذ دے په معنیٰ د راګیرولو، او په تیزئے او اسانئیا سره شړلو ته وئیلے کیږی او دا مستلزم دے غلبے او قوت لره یعني شیطانانو په دوی باندے داسے قوت او غلبه په وسوسے کولو او گمراه کولو سره موندلے ده لکه چه هغه د دوی بادشاه دے او دوی ئے رعیت دی -
فَاَنْسٰهُمْ فا دلالت کوی چه ما قبل سبب دے د پاره د مَا بَعْد - اِنْسَاءَ په معنیٰ د غافل کولو او د ترک سره دے ذِكْرَ اللّٰهِ او امر او نواهی د اللہ تعالیٰ او قرآن کریم او توحید ټولو ته دا لفظ شامل دے - ( پاتے په بل مخ )

حِزْبُ الشَّيْطَانِ حزب هغه تابعداری کوؤنکی ته ویلے کیږی چه اتباع دَ متبوع کښی کلک او تعصب کوؤنکی وی بل طرف ته په آسانه سره نه اوړی او نه دَ بل چاخبره اوری.

۲۰ په دے آیت کښی سخت زجر دے محادّه کوؤنکو ته عموماً ( که په هره زمانه کښی وی ) او په ۵ کښی زجر وُ محادّه کوؤنکو دَ دے امت ته دَ دے وجے نه په هغه آیت کښی دَ هغوی تشبیه ئے دَ مخکنو سره ورکړے وه دا یو فرق دے دَ دواړه آیاتونو دویم فرق دا دے چه هلته کښی دُعاءِ شر ( خبرے وے ) وه او په دے آیت کښی خبر او حکم کول دی دَ دوی په ذلت سره. دریم فرق دا دے چه په هغه آیت کښی دَ بنکاره کافرانو ذکر مراد وؤ او په دے آیت کښی منافقان مراد دی نو معلومه شوه چه تکرار نیشته دے أُولٰٓئِكَ فِي الْأَذَلِّينَ په دے کښی ډیر تاکید دے په ذکر دَ أولٰئك سره او په ذکر دَ حرف فِي سره چه دلالت کوی په استغراق او انغماس باندے او په ذکر دَ جمع دَ اذلین سره یعنی دوی غرق او ډوب دی په جماعت دَ ذلت والو کښی.

۲۱ روستو دَ تخویف نه بشارت دے ایمان والو ته په غلبه او نصرت الهیه سره. كَتَبَ مراد دَ دے نه لیکل دی په کتاب دَ تقدیر کښی او په هغے کښی هیڅ قسم تبدیلی نه راځی - او دیته سبقیت دَ کلمے ویلے شویدے په سورة صافات ۱۷۱ کښی. لَأَغْلِبَنَّ أَنَا دا ئے دَ تاکید دَپاره ذکر کړیدے غلبه په مخلوق او په دُشمنانو باندے خو دَ الله تعالیٰ صفتِ حقیقیه دے. وَرُسُلِيْ یعنی هغه رسولان چه جنګ کوی دَ دشمنانو سره نو غالب به وی په جنګ کښی په

لَا تَجِدُ قَوْمًا يُّؤْمِنُوْنَ بِاللّٰهِ وَالْيَوْمِ الْاٰخِرِ
او به نه مومې ته داسې قوم چه ایمان لري په الله تعالیٰ او په ورځ د روستې
يُوَآدُّوْنَ مَنْ حَآدَّ اللّٰهَ وَرَسُوْلَهٗ وَلَوْ كَانُوْٓا
چه دوستانه کوي د هغه چا سره چه خلاف ئې کړي دي حدود د الله تعالیٰ او د رسول د هغه نه اګرچه هغوی وي
اٰبَآءَهُمْ اَوْ اَبْنَآءَهُمْ اَوْ اِخْوَانَهُمْ اَوْ عَشِيْرَتَهُمْ ؕ
د دوی پلاران يا د دوی ځامن يا د دوی ورونړه يا د دوی قبيله
اُولٰٓئِكَ كَتَبَ فِيْ قُلُوْبِهِمُ الْاِيْمَانَ وَاَيَّدَهُمْ
دغه کسان ليکلې دے (پوخ) په زړونو د دوی کښ ايمان او کلک کړي دي دوی
بِرُوْحٍ مِّنْهُ ؕ وَيُدْخِلُهُمْ جَنّٰتٍ تَجْرِيْ
په روح سره د هغه د طرف نه او داخلوي دوی له جنتونو ته چه بهيږي
مِنْ تَحْتِهَا الْاَنْهٰرُ خٰلِدِيْنَ فِيْهَا ؕ رَضِيَ اللّٰهُ
لاندې د هغې نه ويالې هميشه به وي دوی په هغې کښ رضا دے الله تعالیٰ
عَنْهُمْ وَرَضُوْا عَنْهُ ؕ اُولٰٓئِكَ حِزْبُ اللّٰهِ ؕ
د دوی نه او دوی رضا دي د هغه نه دغه کسان ډله د الله تعالیٰ ده

اعتبار د عاقبت سره او په حجت کښ به خو تول غالب وي او داسې په سورة صافات ۱۷۲ کښ ذکر شوي دي۔

قَوِيٌّ په نصرت د دوستانو باندې۔

عَزِيْزٌ دے په مقابله د دشمنانو کښ غالب او داغلبه او قوت سبب دے د پاره د تذليل د دشمنانو چه په ايت تير شوي کښ ذکر شوي دے۔

ع ۳ ۹ ۳

أَلَآ إِنَّ حِزْبَ اللّٰهِ هُمُ الْمُفْلِحُوْنَ ﴿۲۲﴾ ع

خبر شئ یقیناً ډله د الله تعالیٰ خاص دوی کامیاب دی۔

۲۲ هر کله چه په سورت کښ د محادینو مفسدینو اوصاف ذکر کړے شول نو په دے ایت کښ ترغیب ورکوی مؤمنانو ته په براءت کولو سره د هغوی نه په ډیر تاکید سره۔ لَا تَجِدُ قَوْمًا الخ یعنی د ایمانوالو او د دوستانے کولو د دشمنانو د الله تعالیٰ او د رسول ﷺ په مینځ کښ جمع نشی کیدلے او د نه موندلو نه مراد نه کول د دے دی په طریقه د مبالغے سره۔ یُوَآدُّوْنَ مؤدة په اصل کښ په باطن کښ وی او اثر ئے په ظاهر کښ موجود وی یعنی باطنی او ظاهری دواړه دوستانے کول، او صرف بِرّ او قسط خو د بعضو کافرانو سره جائز دے چه هغوی اهل ذمه دی لکه په سورة ممتحنة ۸ کښ به راشی۔ وَلَوْ كَانُوْٓا اٰبَآءَهُمْ الخ یعنی د هیڅ نسب او قرابت لحاظ نه کوی په باره د براءت کولو کښ د محادینو نه۔ او په دے کښ اشاره ده چه په داسے حالت کښ د صله رحمئ ساتلو حکم نیشته دے او مفسرینو لیکلی دی چه د دے ایت اول مصداق صحابه کرام دی ځکه چه ابو عبیده رضی الله عنه خپل پلار لره په ورځ د بدر کښ قتل کړے وؤ او عبدالله رضی الله عنه ځوئے د عبدالله بن اُبَیّ د خپل پلار د قتل کولو اجازت د رسول الله صلی الله علیه وسلم نه طلب کړے وؤ او ابوبکر رضی الله عنه خپل پلار لره په سخته سپیره سره وهلے وؤ هر کله چه هغه نبی صلی الله علیه وسلم ته کنځل کړے وؤ او دا رنګ ابوبکر رضی الله عنه د خپل ځوئے د قتل اراده کړے وه په ورځ د بدر کښ او مصعب بن عمیر رضی الله عنه خپل رور لره په ورځ د بدر کښ قتل کړے وؤ او عمر رضی الله عنه او دا رنګ حمزه، علی او عبیده بن الحارث رضی الله عنهم ډیرو خپلوانو لره په دغه ورځ قتل کړیوؤ۔ اُولٰٓئِكَ كَتَبَ فِیْ قُلُوْبِهِمُ الْاِیْمَانَ اشاره ده یقین کامل ته چه هغه په محبت د غیر الله سره نه محو کیږی لکه چه پوخ خط لیکلے شوے په اوبو وغیره سره نه ورانیږی۔ وَاَیَّدَهُمْ بِرُوْحٍ مِّنْهُ مراد د روح نه قرآن کریم او علم د قرآن دے په روایت د ربیع سره۔ نو اشاره ده چه تقویت د ایمان په قرآن کریم سره راځی۔ رَضِیَ اللّٰهُ عَنْهُمْ وَرَضُوْا عَنْهُ اشاره ده چه دوی د الله تعالیٰ د وجے نه ناراض وؤ د مخلوق نه نو د هغے په عوض کښ دوی ته رضا ملاؤ شوه۔ اُولٰٓئِكَ حِزْبُ اللّٰهِ دا ئے په مقابل د

حزب الشیطان کښې ذکر کړے دے اشاره ده چه ولې د الله یاد انسان سره کول هغه ته ویلے کیږی چه د دوست د رضا کولو د وجے نه خپل خپلوان او خپل دوستان پریږدی او د هغوی سره هیڅ محبت او نصرت نه کوی.

فائده ۱ :- قرطبی د امام مالک نه نقل کړیدی چه دا آیت دلیل دے چه د منکرینو د تقدیر سره دوستانه لرل او د هغوی په مجلس کښې شرکت کول منع دی. او دا رنګ دا حکم د ټولو ظالمانو او بد عتیانو دے او شربینی ذکر کړیدی چه چا میلان او کړو هغه چاته چه د دین نه منحرف وی یا ئے مداهنت او کړو د عقیدے د بد عتی سره نو الله تعالیٰ نور د توحید لره د هغه د زړه نه اوباسی.

او په فضیلت د دے سورت کښې لیکلے دی چه دا د قرآن د سورتونو د شمارے په لحاظ سره دویم نصف دے یعنی اته پنځوستم دے او د دے په هر آیت کښې د الله تعالیٰ ذکر یو کرت یا دوه کرته موجود دے.

فائده ۲ :- په سورة مائده ۵۶ کښې فان حزب الله هم الغالبون ذکر دے او دلته ئے المفلحون ذکر کړیدے وجه دا ده چه سورة مائده ۵۷ کښې صرف ولاء ذکر کړیده او په دے سورت کښې براء ذکر کړیده د حزب الشیطان سره او براء اکمل ایمان دے په نسبت د صرف ولاء سره نو د صرف ایمان سره غلبه دنیویه ذکر کړه او د اکمل ایمان سره ئے چه براء ده اکمله نتیجه ذکر کړه چه هغه فلاح اخروی ده. (والله اعلم)

الحمد لله ختم شو تفسیر د سورة مجادله په فضل د الله تعالیٰ

---

| اٰیَاتُهَا ۲۴ رُکُوْعَاتُهَا ۳ | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِیْمِ | سُوْرَةُ الْحَشْرِ ۵۹ مَدَنِیَّةٌ ۱۰۱ |
| --- | --- | --- |

سَبَّحَ لِلّٰهِ مَا فِي السَّمٰوٰتِ وَمَا فِي الْاَرْضِ ج

پاکي وائي الله تعالیٰ لره هغه څیزونه چه په اسمانونو کښې دي او هغه څیزونه چه په زمکه کښې دي

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِیْمِ

سورة حشر او دَ دے بل نوم سورة بني نضیر دے۔

ربط دَ دے دَ مخکښې سورت سره په ډیرو وجوهو سره دَاوله وجه دا ده چه په سورة مجادله کښې زجرونه وُو مفسدینو ته او په دے سورة کښې تخویف دنیوی دے۔ دویمه وجه دا ده چه په هغه سورت کښې ئې محادّه ذکر کړے وه نو په دے سورت کښې مشاقه ذکر کوی۔ دریمه وجه دا ده چه په هغه سورت کښې دَ منافقانو یو قسم قبائح وو او په دے سورت کښې دَ هغوی بل قسم قبائح دی۔

دعویٰ دَ سورت۔ تخویف دنیوی مشاقینو دَ الله تعالیٰ او دَ رسول صلی الله علیه وسلم ته په تمثیل دَ بني نضیر سره په ۲ کښې او ذکر دَ توحید دے دَپاره دَامن دَ عذاب نه په ذکر دَ دویشت اسماء حسنیٰ دَ الله تعالیٰ سره په اول او په اخر دَ سورت کښې۔

خلاصه دَ سورت۔ دا سورت تقسیم دے دوه بابونو ته اول باب تر ۱۱ پورے دے په یکښې دعوی دَ توحید ۱ په ذکر دَ تسبیح دَپاره دَ دفع کولو دَ وهم یعني که څوک اعتراض اوکړی چه بني نضیرو ته عذاب ورکول په اخراج سره ظلم دے نو جواب اوکړے شو چه الله تعالیٰ دَ ظلم کولو نه پاک دے هغه چه ځکوی نو دَ خپل عزت دَ حاصلولو دَپاره نه کوی هغه خو عزیز دے او بے فائدے هم نه کوی هغه حکیم دے۔ بیا ذکر دَ عذاب دَ بني نضیرو دے په ۲ کښې بیا تخویف اخروی ذکر دے په ۳ کښې بیا سبب دَ دے عذاب ذکر کوی په ۴ کښې او دا دعوی دَ سورت ده بیا جواب دَ یو سوال دے په ۵ کښې بیا حکم دَ مال فیٔ دَ او دَ هغے مصارف دَ رے قسمونه ذکر کوی تر ۱۰ پورے۔

وَهُوَ الْعَزِيزُ الْحَكِيمُ ① هُوَ الَّذِيٓ أَخْرَجَ

او خاص هغه دے زورآور حکمتونو والا ۔ خاص هغه داسے ذات دے چه اُویستل ئے

الَّذِينَ كَفَرُوا مِنْ أَهْلِ الْكِتٰبِ مِنْ

کافران د کتابیانو د

دِيَارِهِمْ لِأَوَّلِ الْحَشْرِ ؕ مَا ظَنَنْتُمْ

کورونو د هغوی نه په اول راغونډولو سره گمان نه کوئ تاسو

أَنْ يَخْرُجُوا وَظَنُّوٓا أَنَّهُمْ مَانِعَتُهُمْ

چه دوی به اوځی او دوی گمان کوؤ چه یقینا بچ کوونکی دی دوی لره

حُصُونُهُمْ مِنَ اللّٰهِ فَأَتٰىهُمُ اللّٰهُ مِنْ حَيْثُ

قلعه گانے د دوی د الله تعالیٰ نه نو راغے دوی ته الله د داسے ځائے نه

لَمْ يَحْتَسِبُوا ۖ وَقَذَفَ فِي قُلُوبِهِمُ الرُّعْبَ

چه دوی گمان نه کوؤ او واچوله ئے د دوی په زړونو کښ ویره

يُخْرِبُونَ بُيُوتَهُمْ بِأَيْدِيهِمْ وَأَيْدِي الْمُؤْمِنِينَ ق

ورانول دوی کورونه خپل په لاسونو خپلو او په لاسونو د مؤمنانو

وقف النبي صلى الله عليه وسلم

تفسیر:۔ دا دعوی د توحید ده په ذکر د تسبیح سره مخکښ د واقعے د بنی نضیرو نه د پاره د جواب د اعتراض کوم چه مونږ په خلاصه کښ ذکر کړے دے الْعَزِيزُ په دے کښ اشاره ده عذاب د بنی نضیرو ته چه هغوی دُشمنان د الله تعالیٰ وو او الله تعالیٰ په دشمنانو باندے زورآور دے۔ او الْحَكِيمُ یعنی د دوی په عذاب ورکولو کښ ډیر حکمتونه وو۔

فَاعْتَبِرُوْا يٰۤاُولِى الْاَبْصَارِ ۝۲ وَلَوْلَاۤ اَنْ كَتَبَ اللّٰهُ

نو عبرت واخلئ اے د پوهے خاوندانو ۔ اوکه چرے نوے لیکلے الله تعالیٰ رپه تقدیرکښ)

۲ تفسیر سراج المنیر او ابن کثیر کښ دَ بنی نضیرو تفصیلی واقعه ذکر کړے ده۔ حاصل ئے دا دے چه دوی دَ نبی صلی الله علیه وسلم سره اول عهد کړے وؤ چه مونږ به یو بل سره جنګ نه کوؤ او نه به دَیو بل دَ دشمن سره ملګرتیا کوؤ لیکن دَ اُحد دَ غزوه نه روستو دوی دَ مشرکینِ مکه سره دَ ملګرتیا وعده اوکړه او دَ نبی صلی الله علیه وسلم دَ وژلو اراده ئے اوکړه نو نبی صلی الله علیه وسلم اول کعب بن اشرف دَ محمد بن مسلمة رضی الله عنه په ذریعه قتل کړو او بیا ئے سرهٔ دَ صحابه کرامو نه دَ بنی نضیرو دَ قلعے نه یو ویشت یا شپږ ورځے محاصره اوکړه نو دوی دَ صلح کولو مطالبه اوکړه نو نبی صلی الله علیه وسلم دَ صلح کولو نه انکار اوکړو او امر ئے اوکړو دَ دوی په جلا وطن کولو سره او اجازت ئے ورکړو چه په اوښ باندے څومره سامان څوک اوړلے شی نو هغه نه اجازت دے دَ اوړلو نو هغوی خپلے کوټے په خپل لاسونو سره اونړولے او مؤمنانو نه ئے پریکښ مدد طلب کړو او لرګی وغیره ئے په اوښانو باندے بار کړل او اکثر کسان دَ دوی په شام کښ اذرعات او اریحا مقام نه لاړل او دوه کورنئ دَ دوی (آل دَ بنی حقیق او آل دَ حی بن اخطب) خیبر نه لاړل او څوک حیره مقام نه لاړل او دَ هغوی باقی منقول او غیر منقول جائیداد نبی صلی الله علیه وسلم نه په مال فئ کښ پاتے شو او منافقانو دَ مدینے دَ هغوی سره دَ مدد کولو لوظ کړے وؤ لیکن هرکله چه هغوی دَ مدینے نه اوشړلے شول نو منافقانو ورسره هیڅ امداد او نکړو او مؤمنانو ته دَ هغوی منافقت هم ښکاره شو۔

مِنْ دِيَارِهِمْ دَ وطنِ اصلی نه شړل ډیر لوئے عقوبت دے او دَ اخراج نسبت الله تعالیٰ ته شوے دے ځکه چه دا امر دَ الله تعالیٰ وؤ خپل رسول ته۔ لِاَوَّلِ الْحَشْرِ دَ دوی څلور حشرونه وؤ یو حشر دَ مدینے نه خیبر ته۔ دوهم حشر په زمانه دَ عمر رضی الله عنه کښ دَ خیبر نه شام ته دریم حشر په نزدے دَ قیامت کښ په واسطه دَ اُور سره ریا به حقیقةً او دوی یا مراد ترینه فتنه ده) چه هغه په علاماتو دَ قیامت کښ ذکر شوے ده

عَلَيۡهِمُ الۡجَلَآءَ لَعَذَّبَهُمۡ فِى الدُّنۡيَا ؕ وَلَهُمۡ

په دوی باندے دَ وطن نه شړل · نو بل عذاب به ئے دوی ته ورکړے وے په دُنيا کښ · او دوی لره

ځلورم حشر په ورځ دَ قيامت کښ دے نو معلومه شوه چه په دے واقعه کښ اول حشر دے۔ يا مراد دَ اول نه هغه اول دے چه ثانی ورله نه وی يعنی په اوله فوج کشئ سره دوی کمزوری شول۔

مَا ظَنَنۡتُمۡ الخ اشاره ده چه دوی کمزوری نه وُ خو دَ دوی اخراج دَ الله تعالیٰ دَ قدرت او عظمت نښه ده۔

حُصُوۡنُهُمۡ جمع دَ حِصن ده او دَ دوی ځلور قلعه ګانے مشهورے وے، وطيح، نطاة، سُلالم، کُتيبه۔ او په دے جمله کښ مانعتهم اسم فاعل دَ مضاف دے هم مفعول دے او حصونهم دَ دے فاعل دے۔

فاتاهم الله الخ اِتيان دَ صفاتو دَ الله تعالیٰ نه دے په غير دَ تاويل او تشبيه نه لکه په سورة بقره ۲۱۰ کښ دے۔

مِنۡ حَيۡثُ لَمۡ يَحۡتَسِبُوۡا دَ دوی ګمان وُ چه منافقان به زمونږ امداد کوی او مؤمنان مونږ سره مقابله نشی کولے او قعله ګانے زمونږ مضبوطے دی نو دَ دے ګمانونو نه خلاف کار اوشو۔

وَ قَذَفَ فِىۡ قُلُوۡبِهِمُ الرُّعۡبَ تعبير په قذف سره ډير تشديد ته اشاره ده يعنی رعب ئے دَ دوی په زړونو کښ داسے اُويشتلو لکه چه ګټے ويشتلے کيږی۔ او دا فعل او قدرت دَ الله تعالیٰ دے او معجزه دَ نبی صلی الله عليه وسلم ده لکه چه صحيح حديث کښ چه رسول الله صلی الله عليه وسلم فرمائيلی دی "ما سره امداد کړے شويدے په رعب زما سره په دُشمن باندے دَ يو مياشتے په مزل سره"۔ يُخۡرِبُوۡنَ الخ دا تخريب دَ دے دَ پاره وُ چه کوم لرګی او دروازے چه دَ دوی خوښے وے نو ځان سره ئے اوړلے په اجازت دَ نبی صلی الله عليه وسلم سره او دارنګ دَ دے دَ پاره ئے هم تخريب کوؤ چه په دے کښ بيا مؤمنان اونه اوسيږی۔ وَ اَيۡدِى الۡمُؤۡمِنِيۡنَ يعنی دَ دوی نه چه کوم ديوالونه چتونه وغيره پاتے وُ هغه به دَ دوی په وړاندے مؤمنانو نړول دَ دے دَ پاره چه دوی ښهٔ غصه او ذليل شی۔

فَاعۡتَبِرُوۡا يٰۤاُولِى الۡاَبۡصَارِ اعتبار دَ ع ب ر دَ مادے نه دَ ے رباتے په يل مخ)

فِي الْآخِرَةِ عَذَابُ النَّارِ ۝ ذٰلِكَ بِأَنَّهُمْ

په آخرت کښې عذاب دَ اور دے . دا په دے وجه سره چه دوی

دلالت کوی په انتقال باندے لکه عبور (تیریدل په اوبو کښې او چه ته) عَبْرَةٌ (اوښکے چه دَ سترګو نه مخ ته اوبهیږی) نو دارنګ اعتبار او عبرت اغستل انتقال دے دَ یو معلوم نه (چه په اوریدلو یا په لیدلو سره معلوم شی) غیر معلوم ته په طریقه دَ فکر کولو سره او دیته قیاس هم ویلے کیږی لیکن لفظ شرعی (چه قرآن او سنت سره ثابت وی) پریخودل او غیر منقول استعمالول نامناسبه کار دے.
الْأَبْصَارِ دا لفظ عام دے نظر په بصر او په بصیرت سره دواړو ته شامل دے ځکه چه په عبرت اغستلو کښې اکثر سترګے هم استعمالیږی سرهٔ دَ بصیرت دَ زړه نه او بصائر خاص دے په بصیرت دَ زړه پورے. او په دیکښې اشاره ده چه دَ قرآن کریم قصّے او واقعات صرف دَ افسانه په طور سره اوریدل مقصد نه دے بلکه دَ هغے نه عبرت اغستل مقصد دے او هغه په غور او فکر کولو سره حاصلیږی.
دلته یو عبرت دا دے چه که یو انسان یا قوم علم والا وی او مالدار هم وی او ښکلے او قلعه ګانے ئے هم وی لیکن چه دَ الله تعالیٰ او دَ رسول الله صلی الله علیه وسلم دَ دین خلاف کوی نو دَ عذاب دَ دنیا نه او ذلت نه نشی بچ کیدلے. دویم عبرت دا دے چه دَ منافقانو او کافرانو په ملګرتیا او په وعدو باندے اعتماد کار نه دے دریم عبرت دا دے چه په خپل دنیوی قوّت او مالدارئ باندے هم غرور جائز نه دے.
۳ په دے آیت کښې تاکید دے په تخویف دنیوی سره او تخویف اخروی هم دے. لَوْلَا أَنْ كَتَبَ اللّٰهُ عَلَيْهِمُ یعنی دَ عذاب دنیوی په اجلاء پورے خاص نه دے نور دیرے نمونے دَ دنیوی عذابونو په مخکنو قومونو کښې تیر شویدی لیکن په دے قوم باندے خو دَ اجلاء تقدیر کړے شوی وو او تقدیر خوبدلیږی نه دا جمله هم صراحةً دلیل دے په تقدیراتو لیکلو باندے. الْجَلَاءَ فرق دَ اخراج او جلاء دا دے چه جلاء خاص ده په جماعت (دیرو کسانو) پورے او اخراج عام دے که یو شخص وی او که دیر وی او دارنګ جلاء هغه ده چه سرهٔ دَ اهل وعیال نه وی او اخراج عام دے لَعَذَّبَهُمْ په بل عذاب سره لکه قتل او قید کول پشان دَ مشرکین بدریا طوفانو ته، سیلئ، قحطونه وغیره.

شَآقُّوا اللّٰهَ وَرَسُوْلَهٗ ۚ وَمَنْ يُّشَآقِّ اللّٰهَ

خلاف کړے دے دَ الله تعالیٰ او دَ رسول دَ هغه او چا چه خلاف اوکړو دَ الله تعالیٰ

فَاِنَّ اللّٰهَ شَدِيْدُ الْعِقَابِ ﴿۴﴾ مَا قَطَعْتُمْ

نو یقیناً الله تعالیٰ سخت عذاب ورکوونکے دے۔ هغه چه تاسو پرے کړے دی

مِّنْ لِّيْنَةٍ اَوْ تَرَكْتُمُوْهَا قَآئِمَةً عَلٰٓى

څه اونے دَ کجورو یا پریخودے دی تاسو هغه اولاړے په

اُصُوْلِهَا فَبِاِذْنِ اللّٰهِ وَلِيُخْزِىَ الْفٰسِقِيْنَ ﴿۵﴾

دیخو نو خپلو باندے نو دا په حکم دَ الله تعالیٰ سره دی او دَ دے دَ پاره چه شرمنده کړی پوره نافرمانو لره۔

سے دا سبب دَ عذاب دے او دعویٰ دَ سورت ده. او مشاقه دَ شق نه ماخوذ دے چو دل او دوه ټکړے کیدلو ته وائی او دا په ښکاره مخالفت کولو کښ استعمالیږی۔ او دا سے په سورة انفال ۱۳ کښ هم تیر شوی دی۔

فائده :- سورة انفال کښ یُ وَمَنْ يُّشَاقِقِ بغیر دَ ادغام نه او په دے سورت کښ په ادغام سره ذکر کړے دے وجه داده چه مخالفت کول دَ کتابیانو ډیر سخت دی په نسبت دَ عوامو کافرانو نو په سورة انفال کښ دَ عوامو کافرانو ذکر دے او په دے سورت کښ دَ کتابیانو ذکر دے ادغام دلالت کوی په شدت باندے او فکِ ادغام په تخفیف باندے۔

ﮥ دا جواب دَ سوال دے هغه دا چه تاسو دَ فساد نه منع کوئے او حال دا دے چه تاسو (اے صحابو) دَ بنی نضیرو دَ کجورو اونے وسیزلے او پرے مو کړلے نو دا هم فساد دے ؟

حاصل دَ جواب دا دے چه دا په حکم دَ الله تعالیٰ سره شوی دی او نورے فائدے پکښ هم دی نو دا شرعاً جائز دی ۔ مَا قَطَعْتُمْ مِّنْ لِّيْنَةٍ قرطبی پدیکښ لس اقوال ذکر کړی دی. حاصل دا چه ټولو قسمونو دَ کجورو ته ویلے کیږی یا په هغوی کښ خاص قسم دے او دا په بویره مقام کښ وه او دَ دے په باره کښ یهودیانو او مشرکینِ مکه شعرونه ویلی وو او حسان بن ثابت رضی الله عنه دَ هغے په جواب کښ دا شعرونه جوړ کړے وو ۔ (پاتے په بل مخ )

وَمَآ اَفَآءَ اللّٰهُ عَلٰى رَسُوْلِهٖ مِنْهُمْ فَمَآ اَوْجَفْتُمْ

او هغه مالونه چه واپس کړيدى الله تعالىٰ په رسول خپل باندے دَ دوى نه نو نه دى زغلولے تاسو

عَلَيْهِ مِنْ خَيْلٍ وَّلَا رِكَابٍ وَّلٰكِنَّ اللّٰهَ

په هغے باندے هيڅ اسونه او نه اوښان او ليکن الله تعالىٰ

يُسَلِّطُ رُسُلَهٗ عَلٰى مَنْ يَّشَآءُ ۚ وَاللّٰهُ عَلٰى

زور اورکوى رسولان خپل په هغه چا باندے چه اوغواړى او الله تعالىٰ په

كُلِّ شَىْءٍ قَدِيْرٌ ۝٦ مَآ اَفَآءَ اللّٰهُ عَلٰى رَسُوْلِهٖ

هر څيز باندے قدرت والا دے. هغه چه واپس کړے دى الله تعالىٰ خپل رسول ته

تَعَاقَدَ مَعْشَرٌ نَصَرُوْا قُرَيْشًا - وَلَيْسَ لَهُمْ بِبَلْدَتِهِمْ نَصِيْر - هُمُوا اُوْتُوا الْكِتَابَ فَضَيَّعُوْهُ - وَهُمْ عُمْىٌ مِنَ التَّوْرَاةِ بُوْر - كَفَرْتُمْ بِالْقُرْاٰنِ وَقَدْ اُبِيْتُمْ بِتَصْدِيْقِ الَّذِىْ قَالَ النَّذِيْر - وَهَانَ عَلٰى سَرَاةِ بَنِىْ لُؤَىٍّ - حَرِيْقٌ بِالْبُوَيْرَةِ مُسْتَطِيْر -

وَلِيُخْزِىَ الْفَاسِقِيْنَ دا بو حکمت دَ دغه عمل دے ليکن امتثال دَ امرِ شرعى دَ حکمت دَ هغے نه مخکښ وى. يعنى په شرعى حکم به عمل ضرور کيديشى اګرچه حکمت ئے معلوم نه وى.

سلا هر کله چه مالونه پاتے شوے دَ بنى نضير و نه مالِ فئ وو نو په دے ايت کښ دَ هغے او دَ مالِ غنيمت په مينځ کښ فرق ذکر کوى.

وَمَآ اَفَآءَ اللّٰهُ عَلٰى رَسُوْلِهٖ فئ په اصل کښ واپس کيدل دى خپل زور مکان ته لکه فئ دَ زوال. نو اشاره ده چه دَ دے مالونو اصل مستحق نبى صلى الله عليه وسلم او مؤمنان دى ليکن کافرانو په زور او ظلم سره قبضه کړيدى يا دا چه الله تعالىٰ دوى ته لګ وخت دَ امتحان دَ پاره ورکړيدى او بيا ئے ترينه واپس اخلى.

فَمَآ اَوْجَفْتُمْ دا علت قائم دے په ځائے دَ جزاء محذوف يعنى فَلَا اِسْتِحْقَاقَ فِيْهِ لِلْمُجَاهِدِيْنَ (په دے کښ حق دَ عامو مجاهدينو نيشته) ځکه چه تاسو په زور دَ جنګ سره دَ کافرانو نه نه دى اخستلے. نو کوم مال چه دَ کافرانو نه بغير دَ جنګ نه حاصل شى نو هغه مالِ فئ وى لکه مالونه دَ بنى نضير. دا رنګ چه دَ کافرانو نه جزيه او اخراج حاصل شى يا دَ هغوى نه څه مال بے وارثه پاتے شى

مِنْ اَهْلِ الْقُرٰى فَلِلّٰهِ وَلِلرَّسُوْلِ وَلِذِى

دَ کلو والو نه نو خاص دَ الله تعالیٰ دَ پاره دی او دَ رسول صلی الله علیه وسلم دَ پاره او دَ

الْقُرْبٰى وَالْيَتٰمٰى وَالْمَسٰكِيْنِ وَابْنِ السَّبِيْلِ

خپلوانو دَ هغه دَ پاره او دَ یتیمانو او مسکینانو او مسافرو دَ پاره دی

كَیْ لَا يَكُوْنَ دُوْلَةً ۢ بَيْنَ الْاَغْنِيَآءِ مِنْكُمْ

دَ دے دَ پاره چه نه وی ادل بدل کیدونکے په مینځ دَ مالدارو کښی ستاسو نه

وَمَآ اٰتٰىكُمُ الرَّسُوْلُ فَخُذُوْهُ ۚ وَمَا نَهٰىكُمْ

او هغه څیز چه درکړیدے رسول صلی الله علیه وسلم نو او نیسئ هغه او هغه څیز چه منع کړی ئے تاسو

عَنْهُ فَانْتَهُوْا ۚ وَاتَّقُوا اللّٰهَ ۖ اِنَّ اللّٰهَ شَدِيْدُ

دَ هغے نه نو منع شئ او ویره کوئ دَ الله تعالیٰ نه یقیناً الله تعالیٰ سخت

الْعِقَابِ ۞ لِلْفُقَرَآءِ الْمُهٰجِرِيْنَ الَّذِيْنَ

عذاب ورکوونکے دے۔ (دا مالونه) دَ پاره دَ فقیرانو مهاجرینو دی هغه کسان

نو دیته هم مالِ فئ ویلے کیږی او کوم مال چه دَ کافرانو نه په جنګ سره حاصل شی نو هغے ته مالِ غنیمت ویلے کیږی دَ هغے تقسیم ئے په سورة انفال ۴۱ کښی ذکر کړیدے۔ وَلَا رِكَابٍ جمع دَ راکبة ده او په عرف دَ عربو کښی دَ دے اطلاق صرف په راکب دَ اوښ باندے کیږی او دَ آس راکب ته فارس وائی۔ معلومه شوه چه صحابه کرام دَ بنی نضیرو کلو ته پیاده تللی وو مګر نبی صلی الله علیه وسلم په اوښ یا په حمار باندے سور ورغلے وو۔ يُسَلِّطُ رُسُلَهٗ یعنی دَ رعب دَ رسول دَ وجے نه هغه خلقو خپل مالونه پریخودلے دی لکه چه مخکښی تیر شویدی۔

ک په دے ایت کښی مصارف دَ مالِ فئ ذکر کوی روستو دَ ذکر دَ غیر مستحقینو او رد دے په طریقه دَ جاهلیت باندے۔ مِنْ اَهْلِ الْقُرٰى کلی دَ بنی نضیر او فدك او بعض کلی دَ بنی قریظه او (پاتے په بل مخ)

أُخْرِجُوْا مِنْ دِيَارِهِمْ وَأَمْوَالِهِمْ يَبْتَغُوْنَ

ویستلی شوے دی دَ کورونو خپلو او مالونو خپلو نه لټوی دوی

خیبر وغیره۔ فَلِلّٰهِ مراد دَ دے نه اختیار او تصرف دَ الله تعالیٰ دے او لام
دَ تصرف مستقل دَ پاره دے۔ وَلِلرَّسُوْلِ دا لام دَ استحقاق او دَ اختیار دَ تقسیم
دَ پاره دے۔ یعنی رسول الله صلی الله علیه وسلم خپل خرچ او دَ اهل خرچه
به دَ دے مال نه کوله او باقی به ئے تقسیمولو۔ وَلِذِي الْقُرْبٰى دا لام صرف
دَ استحقاق په طور دَ مصرف سره دے او مراد دَ دوی نه مؤمنان دَ بنی هاشم
او بنی مطلب دی اګرچه اغنیاء وی دَ الْيَتٰمٰى نه مراد نا بالغ مذکر او مؤنث دی
چه پلار ئے مړ وی اګرچه مور ئے ژوندے وی۔ وَالْمَسٰكِيْنِ دا لفظ فقراء
ته هم شامل دَے او کله چه دا دواړه لفظونه په یو ځائے کښې ذکر کړے شی نو بیا ئے فرق
کیدے شی لکه په سورة توبه ستے کښې۔ وَابْنِ السَّبِيْلِ مراد دَ دینه مسافر دَے
اګرچه په وطن کښې مالدار وی لیکن په سفر کښې محتاج ګرځیدلے وی۔
دا مصارف ئے په سورة انفال کښې هم ذکر کړے دی لیکن هلته دَ دوی حق
صرف په خمس دَ غنیمت کښې وو یعنی په ټول غنیمت کښې حق
نه لری او په مالِ فئ کښې دَ دوی حق مطلق دے روستو دَ تخمیس نه یعنی
خمس دَ نبی صلی الله علیه وسلم او باقی څلور حصے دَ دے څلور و قسمونو
دَ پاره دی۔ او دا قول غوره دے اګرچه بل قول دا دے چه دلته دَ دوی
حق پشان دَ خمس دَ غنیمت دے یعنی خمس الخمس خو هغه قول
مرجوح دے۔ كَيْ لَا يَكُوْنَ دُوْلَةً بَيْنَ الْأَغْنِيَاءِ مِنْكُمْ پدے جمله کښې
رد دے په رسم دَ جاهلیت باندے په باره دَ مالِ فئ کښې ځکه چه په جاهلیت
کښې مالِ فئ او مال غنیمت کښې به پوره څلورمه حصه دَ رئیس دَ هغوی وه دَ دے
وجے نه هغه ته به مرباع یا ربیع القوم ویلے کیدلو او باقی درے حصو کښې به
هم دَ هغه اختیار وو که چا ته به ئے ورکولے او که نه ورکولے او اکثر به ئے
مالدارو کښې تقسیمولے او دا دلالت کوی چه په اسلام کښې سرمایه دارانه نظام
نیشته لکه چه په یکښې سوشلسټ نظام هم نیشته بلکه هر چا ته به که مالدار
وی او که غریب وی دَ هغه حق شرعی ورکیدلے شی۔ دُوْلَةً په پیش دَ دال
سره هغه مالونو ته چه اړی راوړی په مینځ دَ خلقو کښې او دا اسم دے۔ او په

فَضۡلًا مِّنَ اللّٰهِ وَرِضۡوَانًا وَّيَنۡصُرُوۡنَ اللّٰهَ

| د الله تعالیٰ | او مددګوی دوی | او رضا د هغه | الله تعالیٰ | د | فضل |
|---|---|---|---|---|---|

زور د دال سره په جنګ کښ غالب کیدل او تسلّط او بادشاهئ ته ویلے کیږی او دا مصدر دے۔ وَمَآ اٰتٰكُمُ الرَّسُوۡلُ فَخُذُوۡهُ الآية دا لفظ عام دے ټولو اوامرو د قران او سنت ته او مال فئ پکښ داخل دے۔
او ما امرکم یئ نه دی ویلے د پاره د دے چه شامل شی هر هغه قول او فعل او حال ته چه د صحیح حدیث نه ثابت وی نوکوم عمل چه نبی صلی الله علیه وسلّم همیشه د پاره ترک کړے وی نو مونږ په هغه ترک کوؤ دغه حال هم په ما اتاکم کښ داخل دے لکه چه ملا علی قاری په مرقات شرح مشکوٰة ص۲/۱ کښ لیکلی دے لکه هر قسم بدعات چه نبی صلی الله علیه وسلّم کړے نه وی او هغے ته یئ خصوصی ترغیب هم نه دے ورکړے نو د هغے پریخودل سنت دی او د دے تعمیم د پاره دلیلونه دادی ، اول دلیل حدیث د صحیحین د ابو هریره رضی الله عنه دے چه رسول الله صلّی الله علیه وسلّم فرمائیلی دی "هرکله چه څه تاسو ته څه امر اوکړم نو په هغے باندے د خپل استطاعت موافق عمل کوئ او د کوم څیز نه چه ما نهی کړے ده نو د هغے نه ځان بچ اوساتئ" (بخاری کتاب الاعتصام او مسلم کتاب الفضائل باب توقیر رسول الله صلّی الله علیه وسلّم) - دویم حدیث د ابن مسعود رضی الله عنه دے چه صحیح مسلم کښ راوړے دے چه هغه په خالونو لګوونکو زنانو او د مخ نه ویښته ویستونکو او غاښونه فراخوونکو زنانو باندے لعنت د الله تعالیٰ ذکر کړو نو یو زنانه د بنی اسد قبیلے چه نوم یئ ام یعقوب وه ورپسے راغله ورته یئ اُویل چه تا ولے لعنت کړے دے په فلانکے فلانکے زنانه باندے هغه اوفرمائیل "ایا څه په لعنت نه کوم په هغه چا چه رسول الله صلی الله علیه وسلّم په هغوی باندے لعنت کړے وی او د الله تعالیٰ په کتاب کښ وی نو هغے اویل چه ما خو ټول قران لوستلے دے او دا مسئله مِ پکښ نه ده موندلے هغه ورته اُویل که تا (صحیح) لوستلے وے نو تا به پکښ دا مسئله موندلے وه "ایا دا ایت تا نه دے لوستلے وما اٰتاکم الرسول فخذوه الآية - دریم دلیل هم د ابن مسعود رضی الله عنه روایت دے په باره د حکم د محرِم کښ ر پاتے په بل مخ)

وَرَسُوْلَهٗ ؕ اُولٰٓئِكَ هُمُ الصّٰدِقُوْنَ ۚ ⑧

او دَ رسول دَ هغه   دغه کسان   دوی   رشتني   دي -

چه کنها لے جائے ویستل په هغه باندے لازم دی او دا ایت ئے په دلیل کښ ذکر کړیدے دا قرطبی ذکر کړیدے خلورم قول دَ امام شافعی رحمة الله علیه په باره دَ جواز دَ قتل کولو د محرم کښ مخ لره دائے دَ دے ایت او دَ یو حدیث نه ثابت کړیدے چه په هغے کښ اتباع دَ قول دَ عمر رضی الله عنه سره ئے اثبات کړیدے او دَ دے ایت دَلاندے داخل کړیدے دا قرطبی ذکر کړیدی پنځم دلیل نسائی کښ حدیث دَ ابن عمر او ابن عباس رضی الله عنهما راوړے دے او ابن کثیر نقل کړیدے. شپږم دلیل دَ ما اتاکم په مقابله کښ ما نهاکم راوړے دے دلیل دے چه تمام اوامر دَ رسول الله صلی الله علیه وسلم مراد دی. دا ټول دلیلونه دلالت کوی چه څوک ما اتاکم لره په مال فئ پورے خاص کوی او دَ رسول الله صلی الله علیه وسلم دَ اتباع دَ حدیث نه انکار کوی لکه منکرین حدیث نو دوی ګمراه دی او دَ دوی دا استدلال باطل دے چه دوی وائی چه ایتاء صرف په مالونو او محسوساتو کښ استعمالیږی وجه دا ده چه استعمال دَ ایتاء په غیر دَ مالونو کښ هم شوید لکه په سورة اعراف ۱۳۲ او ۲۰۳ سورة انبیاء ۳ غافر ۵ انعام ۱۲ او نور هم ډیر دی) او په دے ایت کښ رد دے په بدعاتیانو باندے چه هغوی دَ بدعاتو دَ جواز دَ پاره وائی چه سنت دَ نبی صلی الله علیه وسلم امر دے او نهی ده او په بدعاتو کښ (چه دوی ئے کوی) نهی نیشته حاصل دَ رد دا دے چه سنت دَ نبی صلی الله علیه وسلم دَ امر و نهی نه علاوه ترک ته هم شامل دے نو ترک دَ نبی صلی الله علیه وسلم یو عمل لره دلیل دے دَ هغے په نهی باندے او دا دَ ما اتاکم دَلاندے داخل دے لکه چه مخکښ ذکر کړے شول -

ف په دیکښ اصل مستحقین دَ مال فئ ذکر کوی چه هغه درے قسمه دی او علت دَ استحقاق ته اشاره کوی او صفات دَ مهاجرینو پنځه ذکر کوی -

للفقراء بدل دے دَ لِذِی الْقُرْبٰى نه یا مبتدا محذوف ده یعنی اَمْوَالُ الْفَیْئِ لِلْفُقَرَاءِ او دا صفات دَ مهاجرینو په اول وخت کښ وو روستو اکثر مالدار شول - الَّذِیْنَ اُخْرِجُوْا الخ په دے وصف کښ اشاره ده چه حقیقی مهاجرین

وَالَّذِينَ تَبَوَّءُو الدَّارَ وَالْإِيمَانَ مِن قَبْلِهِمْ

او هغه کسان چه اباد شوي دي په کورونو کښې (او حاصل کړي يې) ايمان مخکښې د راتللو د مهاجرينو نه

يُحِبُّونَ مَنْ هَاجَرَ إِلَيْهِمْ وَلَا يَجِدُونَ

مينه کوي د هغه چا سره چه هجرت کوي دوي ته او دوي نه مومي

فِي صُدُورِهِمْ حَاجَةً مِّمَّا أُوتُوا وَيُؤْثِرُونَ

په خپلو سينو کښې خفګان د هغه څيز نه چه ورکړې شي (مهاجرينو ته) او غوره کوي

عَلَىٰ أَنفُسِهِمْ وَلَوْ كَانَ بِهِمْ خَصَاصَةٌ

په خپلو ځانونو باندې (مهاجرينو لره) اګر چه دي په دوي باندې لوږه

وَمَن يُوقَ شُحَّ نَفْسِهِ فَأُولَٰئِكَ هُمُ الْمُفْلِحُونَ ⑨

او څوک چه بچ او ساتلې شو د حرص د نفس نه نو دغه کسان دوي کامياب دي.

مراد دي ځکه چه مهاجر خو هغه چا ته هم ويلې شي چه د ګناهونو نه ځان ساتي.
مِنْ دِيَارِهِمْ وَأَمْوَالِهِمْ اشاره ده چه کورونه او مالونه د دوي وو ليکن د هغې نه په هجرت کولو سره دوي فقيران شول ځکه چه د دوي د قبضې او د تصرف نه بهر شول، او ملکيت د دوي د هغې نه زائل شويدې يا نه د زائل شوې دا د دې نه نه معلوميږي - او اهل اول د خو اکثر د مهاجرينو سره يو ځائې وو په هجرت کښې د دې وجې نه د هغوي ذکر يې او نکړو.
يَبْتَغُونَ فَضْلًا الخ مراد د دې نه اجر او ثواب دې او رضوان د الله تعالىٰ مستقل نعمت دې. وَيَنصُرُونَ الخ يعني روستو د هجرت نه دعوت او جهاد کول يې نه دي پريخودلي بلکه هغه جاري ساتي.
أُولَٰئِكَ هُمُ الصَّادِقُونَ معلومه شوه چه هجرت او نصرت د دين د الله تعالىٰ دليل د صدق د ايمان دې.
سو دا عطف دې په المهاجرين باندې او په دې کښې پنځه صفات د انصارو ذکر کوي او دوي لره هم حصّه ده په مال فئ کښې. تَبَوَّءُو الدَّارَ الف لام عهدي دي يعني دار د هجرت او د نصرت. (باقي په بل مخ)

## وَالَّذِيْنَ جَآءُوْ مِنْ بَعْدِهِمْ يَقُوْلُوْنَ

او هغه کسان چه راغي روستو د دوی نه دوی وائي

وَالْاِيْمَانَ هرکله چه تبوؤ د ایمان سره تعلق نه لري نو معلومه شوه چه دلته فعل پټ دے یعنی حصلوا الایمان یا تبوؤ په معنیٰ د لزوم سره دے نو ایمان سره مناسبت لري۔ مِنْ قَبْلِهِمْ مراد د دے نه قَبْلَ هِجْرَتِهِمْ دے یعنی د مهاجرینو مدینے ته د راتللو نه وړاندے انصارو مدینه کښ سکونت کوؤ او اکثرو ایمان راوړے وؤ ځکه د دوی دوه وفدونو مکے کښ د نبي صلی الله علیه وسلم سره بیعت د عقبے کړے وؤ او بیا د هغوی په دعوت سره اکثرو مدینے والو ایمان راوړے وؤ - يُحِبُّوْنَ مَنْ هَاجَرَ اِلَيْهِمْ دا جمله ئے په طریقه د حال سره ذکر کړله اشاره ده چه د ایمان سره محبت د مهاجرینو ملګرے وؤ او مراد د محبت نه محبت د زړونو دو او امداد کول د هغوی سره په نفسونو او مالونه سره دے۔

وَلَا يَجِدُوْنَ فِيْ صُدُوْرِهِمْ حَاجَةً مراد د حَاجَةً نه حسد، بغض او غش او خفګان دے۔ مِمَّآ اُوْتُوْا ضمیر راجع دے مهاجرینو ته یعنی مهاجرینو ته چه مالِ فئ زکوٰة وغیره ډیر ورکړیشي او عزت او مرتبه ورکړے شویده نو انصار په هغے باندے هیڅ خفګان او حسد نه کوي یا دا ضمیر راجع دے انصارو ته یعني چه دوی لره هرڅومره مال فئ وغیره ورکړیشي اګرچه لګ وي لیکن دوي په هغے سره خفګان نه کوي۔

وَيُؤْثِرُوْنَ عَلٰٓى اَنْفُسِهِمْ وَلَوْ كَانَ بِهِمْ خَصَاصَةٌ دا دلیل د محبت او عدم حسد او د اخلاص د انصارو دے۔ یعنی حاجتونه د مهاجرینو په خپلو حاجتونو باندے مخکښ کوي۔ ایثار مخکښ کول د بل شخص دي په ځان باندے په دنیوي برخو کښ د پاره د حاصلولو د اخروي برخو او دا دلیل دے د کمال یقین او د پوره محبت۔ عَلٰٓى اَنْفُسِهِمْ کښ اشاره ده چه د دوی نفساني خواهشات په دے ایثار کښ بالکل مغلوب شوي دي،
خَصَاصَةٌ نفس احتیاج او ضرورت او لوږے ته ویلے کیږي یعني د دوی

# رَبَّنَا اغْفِرْ لَنَا وَلِإِخْوَانِنَا الَّذِيْنَ سَبَقُوْنَا

اے ربه زمونږ. بخښنه اوکړے مونږته او زمونږ وروڼو ته هغه چه مخکښ زمونږ نه ئې حاصل کړے دے

ایثار دَ وجے دَ استغناء نه نه دے بلکه سره دَ احتیاج نه دَ محبت دَ وجے نه دے او دَ انصارو دَ ایثار ډیر واقعات په احادیثو کښ راغلی دی او مفسرینو ډیرے قصے لیکلی دی او دَ یؤثرون مفعول ئې حذف کړے دے دَ تعمیم دَ پاره یعنی یؤثرون باموالهم وانفسهم. او ایثار دَ نفس ډیر اوچت دے په ایثار دَ مال باندے لکه چه ابو طلحه رضی الله عنه په خپل لاس سره په اُحد کښ نبی صلی الله علیه وسلم لره بچ کوؤ او غشی دَ دشمنانو به دَ هغه په لاس باندے لګیدل نو لاس ئې شل شویوؤ.

او قرطبی دَ ابویزید البسطامی نه نقل کړیدے چه دَ بلخ یو نوجوان په ما باندے غالب شویوؤ هغه حج له راغلے وؤ نو ما نه ئې تپوس اوکړو چه ستاسو په نیز زُهد څه ته ویلے کیږی نو ما ورته اُویل چه خوراک مونږ ته ملاؤ شی نو خورو او که نه ملاویږی نو صبر کوؤ نو هغه راته اُویل چه داسے خو په بلخ کښ سپی هم دی نو ما ورته اُویل چه ستاسو په نیز زهد څه ته ویلے شی نو هغه راته اویل چه مونږ ته نه ملاویږی نو هم شکر کوؤ او چه ملاؤ شی نو ایثار کوؤ یعنی بل محتاج ته ئې ورکوؤ.

وَمَنْ يُّوْقَ شُحَّ نَفْسِهٖ په دے کښ اشاره ده چه دا تیر شوی اوصاف دلیل دے چه انصارو کښ شح او بخل نوؤ او دوی مستحق دَ فلاح دی.

شُحّ او بخل کښ فرق دا دے چه بخل عام دے که طبیعت کرځیدلے وی یا نه وی او شح دا چه حرص دَ انسان طبیعت اوګرځی. دَ دے وجے نه سورة النساء س۱۲۸ کښ واحضرت الانفس الشُّحَّ فرمائیلی دی. او ابن جریر ویلی دی شح دا دے چه پردی مالونه په ظلم سره خوری او بُخل دا دے چه خپل مال بل چا له نه ورکوی. شربینی دَ ابن عمر رضی الله عنهما نه نقل کړیدی چه شح دا دے چه پردی مالونو ته ګوری چه په څه طریقے سره ئې حاصل کړی. طاؤس ویلی دی چه شح دا دے چه خپل مال نه ورکوی او دَ پردی مالونو حاصلولو کوشش کوی. ابن کثیر حدیث دَ امام احمد نه نقل کړیدے چه شح او ایمان په زړه دَ بنده کښ چرے نه جمع کیږی.

بِالْاِيْمَانِ وَلَا تَجْعَلْ فِيْ قُلُوْبِنَا غِلًّا

ایمان لره او مه اچوے په زړونو زموږ کښې خفګان

لِّلَّذِيْنَ اٰمَنُوْا رَبَّنَآ اِنَّكَ رَءُوْفٌ رَّحِيْمٌ ﴿۱۰﴾ ع

دَ هغه چا ته چه ایمان ئې راوړے دے اے ربه زموږ یقینًا ته شفقت کوونکے رحم کوونکے یې۔

ف: په دے کښې دریم قسم خلق ذکر کوی چه دَ هغوی په مال فئ کښې حق دے چه هغه تابعداری کوونکی او دُعاء کوونکی دی صحابه کرامو (مهاجرینو او انصارو) ته ترقیامته پورے او دا درے واړه قسمونه په سورة توبه ۱۰۰ کښې هم ذکر کوی۔ وَالَّذِيْنَ جَآءُوْا راتلل وجود ته یا راتلل ایمان ته مراد دی۔

وَلِاِخْوَانِنَا الَّذِيْنَ سَبَقُوْنَا بِالْاِيْمَانِ مراد دَ اخوت نه ایمانی اخوّت دے په دلیل دَ الذین سبقونا بالایمان سره او دا لفظ شامل دے ټولو مؤمنانو ته عمومًا چه دَ هر نبی په امت کښې وی او خصوصًا صحابه کرامو زموږ دَ نبی صلّی الله علیه وسلّم ته۔ غِلًّا طبعی خفګان ته ویلے کیږی او دا ادنیٰ څیز دے په نسبت دَ حسد او بغض سره نو ازاله دَ ادنیٰ مستلزم ده ازالے دَ اعلیٰ لره۔ لِلَّذِيْنَ اٰمَنُوْا په دے کښې قید دَ سبقونا نه دے ذکر کړے اشاره ده زیات عموم ته که تیر شوی مؤمنان وی او که موجوده وی۔ قرطبی ویلے دی چه دا ایت دلیل دے چه محبت دَ صحابه کرامو سره واجب دے ځکه چه شرط دَ حق دَ فئ دَ پاره دَ هغوی استغفار او عدم غِل ئې ګرځولے دے نو څوک چه ټولو صحابو یا یو دَ هغوی ته بد وینا کوی یا ورسره بغض کوی نو هغه لره په مالِ فئ کښې حق نیشته او امام مالک رحمة الله علیه دَ دے ایت نه خائسته استدلال کړے دے ویلے دی چه څوک دَ یو صحابی سره بغض کوی یا په زړه کښې غِل لری نو په فئ دَ مسلمانانو کښې دَ هغه هیڅ حق نیشته۔

او ابن کثیر او قرطبی دَ عائشه رضی الله عنها نه روایت نقل کړے دے "چه تاسو ته امر کړے شوے دے چه صحابو دَ پاره استغفار غواړئ نو تاسو ورته کنځل او بد رد وئیل شورو کړل" او دا ایت ئې اولوستلو۔

او امام شعبی نه نقل دے چه یهود او نصاریٰ دَ شیعګانو نه په یو خصلت سره غوره دی هغه دا دے چه یهود یانو نه تپوس اوکړے شو

أَلَمْ تَرَ إِلَى الَّذِينَ نَافَقُوا يَقُولُونَ

آیا نه گورے هغه کسانو ته چه منافقت ئے کړیدے وائي

لِإِخْوَانِهِمُ الَّذِينَ كَفَرُوا مِنْ أَهْلِ

د وروړو خپلو ته هغه کسان چه کفر ئے کړیدے د کتابیانو نه

الْكِتَابِ لَئِنْ أُخْرِجْتُمْ لَنَخْرُجَنَّ مَعَكُمْ

که چرے اُوبستلے شوئے تاسو ضرور موږ به اُوځو تاسو سره

وَلَا نُطِيعُ فِيكُمْ أَحَدًا أَبَدًا وَإِنْ قُوتِلْتُمْ

او خبره نه منو موږ ستاسو په باره کښې د هیچا هیڅ چرے او که تاسو سره جنګ کیدے شي

لَنَنْصُرَنَّكُمْ وَاللَّهُ يَشْهَدُ إِنَّهُمْ لَكَاذِبُونَ ⑪

ضرور به موږ ستاسو مدد کوؤ - او اللّٰه تعالىٰ گواهي کوي چه یقیناً دوی دروغژن دي -

چه ستاسو په ملت کښې ښوک غوره دي هغوی اُویل اصحاب دَ موسیٰ علیه السّلام او دَ نصاری نه تپوس اوکړے شو چه ستاسو په ملت کښې ښوک غوره دي نو هغوی اُویل اصحاب دَ عیسیٰ علیه السّلام او دَ روافضو نه تپوس اوکړے شو چه ستاسو په ملت کښې شریان ښوک دي نو دوی وائي اصحاب دَ محمّد صلّی اللّٰه علیه وسلّم . او دَ مصعب بن سعد نه روایت دے چه خلق په درے قسمه دي ( مهاجرین ، انصار ) دا دواړه خو تیر شویدي او دریم قسم ( تابعون باحسان ) دا اوس هم باقي دي نو ځان په دے قسم کښې داخل کړئ یعنې دَ صحابه کرامو سره بغض مه کوئ او دَ هغوی تابعداري کوئ او دا سے قول دَ ابن ابي لیلی نه هم نقل دے -

ـلا دَ دے ایت نه دویم باب دے دَ اخر دَ سورت پورے په دے باب کښې دیارلس قبائح دَ منافقینو ذکر کوي دا هغه قبائح دي چه دَ اجلاء دَ بني نضیرو په وخت کښې منافقانو کښې ښکاره شول - او زجرونه دَ منافقانو ته او دَ دوی دَ قباحت ښکاره کولو دَ پاره دوه مثالونه ذکر کوي - بیا امر دَ مؤمنانو ته په تقویٰ سره او تحذیر دے دَ مشابهت ( پاتے په بل مخ )

لَئِنْ أُخْرِجُوا لَا يَخْرُجُونَ مَعَهُمْ ۚ وَلَئِن

که چرے اُو یستلے شی هغوی نو دوی به او نه ځی د هغوی سره او که چرے

قُوتِلُوا لَا يَنصُرُونَهُمْ ۚ وَلَئِن نَّصَرُوهُمْ

جنگ کیدے شی د دوی سره نو دوی مدد نه کوی د هغوی سره او که چرے دوی ورسره مدد اوکړی

لَيُوَلُّنَّ الْأَدْبَارَ ۖ ثُمَّ لَا يُنصَرُونَ ⑫

خامخا او به گرځوی شا گانے بیا به د دوی سره امداد نشی کیدے -

د منافقانو او کافرانو سره او بیان د فرق د دوی دے بیا ترغیب دے قرآن ته د پاره د حصول د خشیت او اختتام دے په ذکر د مسئلے د توحید سره په اسماء او صفاتو د الله تعالی، او دا مقصد د خشیت دے - هرکله چه د مؤمنانو احوال ئے ذکر کړل نو اوس په (۱۱ سلا) کښ زجر دے منافقانو ته په ذکر د درے قبائحو د هغوی اول نفاق - دویم وعده د موافقت او نصرت د یهودیانو سره دریم کذب د دوی -

کافقوا په دے کښ اشاره ده چه دا روستو اوصاف ټول د نفاق د وجے نه دی لِإِخْوَانِهِمُ هغوی سره اخوت د اعتقاد او د دوستانے د وجے نه دے - الَّذِينَ كَفَرُوا مِنْ أَهْلِ الْكِتَابِ مراد د دینه بنو نضیر دی - أَحَدًا مراد د دے نه محمد صلی الله علیه وسلم دے یعنی که چرے دے مونږ ته ستاسو د قتال یا اخراج یا تذلیل په باره کښ امر کوی نو مونږ د دهٔ امر نه منو لَكَاذِبُونَ کذب په دے وجه سره دے چه دوی دا وعده په خُلے سره کوی او په زړه کښ اراده د وفا نیشته یا د دے وجے نه چه دوی دا کار نشی کولے همسے وائی -

(۱۲ سلا) په دے کښ اثبات د کذب د دوی دے او د منافقانو څلور حالات ذکر کوی - د أُخْرِجُوا او قُوتِلُوا او مَعَهُمْ او هُمْ ضمیرونه یهودیانو ته راجع دی او ضمیرونه د لَا يَخْرُجُونَ او لَا يَنصُرُونَ او نَصَرُوهُمْ لَيُوَلُّنَّ او لَا يُنصَرُونَ راجع دی منافقانو ته -

او لَا يَنصُرُونَ وَلَئِن نَّصَرُوهُمْ کښ فرق دا دے چه په خوشحالئ سره د دوی مدد نه کوی او که مجبوره کړے شی د هغوی مدد کولو ته

لَاَنْتُمْ اَشَدُّ رَهْبَةً فِيْ صُدُوْرِهِمْ

خامخا تاسو ډیر سخت رعب والا یئ په سینو د دوی کښې

مِّنَ اللّٰهِ ؕ ذٰلِكَ بِاَنَّهُمْ قَوْمٌ لَّا يَفْقَهُوْنَ ﴿۱۳﴾

د الله تعالیٰ د طرف نه دا په دې وجه چه دوی داسې قوم دې چه صحیح پوهه نه لري۔

لَا يُقَاتِلُوْنَكُمْ جَمِيْعًا اِلَّا فِيْ قُرًى مُّحَصَّنَةٍ

جنګ نشي کولې دوی تاسو سره په یو ځائې مګر چه کلو قلعه بند و کښې وي

اَوْ مِنْ وَّرَآءِ جُدُرٍ ؕ بَاْسُهُمْ بَيْنَهُمْ شَدِيْدٌ ؕ

یا شاته د دیوالونو نه جنګ د دوی (ږ دزې) په کورنئ د دوی کښې ډیر سخت دې

تَحْسَبُهُمْ جَمِيْعًا وَّقُلُوْبُهُمْ شَتّٰى ؕ ذٰلِكَ

ګمان کوئې تاسو په دوی باندې یو خلق او حال دا چه زړونه د دوی د یو بل نه خلاف دي دا د دې

---

نو شا ته به اوګرځوي یا دا چه ضمیر فاعل د لَئِنْ نَّصَرُوْهُمْ راجع دې یهودیانو ته او ضمیر د هُمْ راجع دې منافقانو ته یعنی که چرې یهودیان د منافقانو امداد اوکړي نو دا یهودیان به په شا اوګرځي۔ ثُمَّ لَا يُنْصَرُوْنَ مراد د دې نه نفي ده د دوی د هر جانب نه۔

۱۳ دا علت د پاره د ما قبل دې او په دې کښې د منافقانو دوه صفتونه ذکر کوي فِيْ صُدُوْرِهِمْ ضمیر منافقانو او یهودیانو دواړو ته راجع دې۔

مِنَ اللّٰهِ لکه چه سورة نساء ۷۷ کښې دي۔ ځکه چه عذاب د الله تعالیٰ روستو وي دا رنګ په الله تعالیٰ باندې یقین نه لري نو د دې وجې د هغې نه دومره نه ویرېږي لکه څنګه چه ستاسو نه ویرېږي۔

رَهْبَةً هغه سخته ویره ده چه سره د اضطراب او د غم نه وي۔

لَا يَفْقَهُوْنَ دا رنګ سورة نساء ۷۸ او سورة توبه ۸۷ کښې دي۔

فقه د کلام په ظاهري مفهوم او د هغې په اشاراتو او حکمتونو باندې پوهیدل دي او دا د علم او معرفت او فهم نه اوچته درجه ده۔

بِأَنَّهُمْ قَوْمٌ لَّا يَعْقِلُونَ ﴿۱۴﴾ كَمَثَلِ الَّذِينَ

وجې نه چه دوی داسے قوم دے چه عقل نه لری ۔ (حال ددوی) پشان دَحال دَ هغه کسانو دے

۱۴ دا نتیجه ده دَ رهبت دَ دوی او په دے کښې دَ دوی څلور قبا ئح ذکر کوی ۔
لَا يُقَاتِلُوْنَكُمْ ضمیر منافقانو او یهودیانو دواړو ته راجع دے ۔
جَمِيْعًا یعنی یو اځې خو بالکل قتال نشی کولے لیکن که چرے ټول یو ځائے شی نو هم نشی کولے ۔
اِلَّا فِيْ قُرًى اه یعنی دَ ډیرے ویرے او بزدلے دَ وجې نه دوی مؤمنانو سره مخامخ قتال نشی کولے ۔ او په خیبر کښې دَ دوی قتال په قلعه گانو کښې او دَ دیوالونو نه شاته وو دَ هغے استثناء ئے ځکه اوکړله ۔ لیکن افسوس دے چه په اوس زمانه کښې مسلمانان دَ کافرانو نه ویریږی او جنګ ورسره نشی کولے دا دَ دے وجې نه چه اکثر مسلمانان هم دَ منافقانو په صفت او دَ مشرکانو په شان په شرک کښې اخته شویدی ۔
بَأْسُهُمْ بَيْنَهُمْ شَدِيْدٌ یعنی دَ دوی کورنۍ کښې دُشمنی او اختلاف دَ یو بل سره ډیر دے یا دا چه کورنۍ کښې دَ جنګ خبرے او ځان لره دَ جنګ کولو سخت صفتونه کوی ۔
تَحْسَبُهُمْ جَمِيْعًا وَّ قُلُوْبُهُمْ شَتّٰى یعنی دَ مؤمنانو په مخالفت کښې متفق دي لیکن دَ دوی په عقیدو او خواهشاتو او ارادو کښې ډیر تفاوت او اختلاف دے ۔ لیکن اختلاف دَ زړونو سره ظاهری اتحاد هیڅ فائده نه ورکوی لکه چه په نن زمانه کښې مختلف مسلکونو والا دَ یو بل سره اتحاد ظاهری اوکړی لیکن دَ هغے هیڅ صحیح نتیجه نه راوځی ۔
لَا يَعْقِلُوْنَ اشاره ده چه اختلاف دَ عقیدو او دَ مسلکونو او دَ خواهشاتو دَ وجې دَ نقصان دَ عقل نه دے ۔ هر کله چه آراء او نظریے دَ عقل سره تعلق لری نو دَ دے سره ئے لا یعقلون ذکر کړو او رَهبت دَ عظمت او عذاب دَ طرف دَ الله تعالیٰ نه دَ کمال علم سره تعلق لری نو مخکښې ئے لا یفقهون ذکر کړے وؤ ۔

مِنْ قَبْلِهِمْ قَرِيبًا ذَاقُوا وَبَالَ أَمْرِهِمْ ج

چه دَ دوی نه مخکښ وو ، په نزدے زمانه کښ او څکله هغوی سزا دَ کار خپل

وَلَهُمْ عَذَابٌ أَلِيمٌ ﴿۱۵﴾ كَمَثَلِ الشَّيْطَانِ

او دوی لره عذاب درد ناک دے ۔ (حال دَ دوی) پشان دَ حال دَ شیطان دے

إِذْ قَالَ لِلْإِنْسَانِ اكْفُرْ ج فَلَمَّا كَفَرَ قَالَ

کله چه اوائی انسان ته کفر کوه نو هر کله چه هغه کفر اوکړی دے ورته اوائی

إِنِّي بَرِيءٌ مِنْكَ إِنِّي أَخَافُ اللَّهَ رَبَّ الْعَالَمِينَ ﴿۱۶﴾

یقینا زهٔ جدا یم ستا نه یقینا زهٔ ویره کووم دَ الله تعالیٰ نه چه رب العالمین دے ۔

ف۱۵ دا مثال دَ پاره دَ تخویف دَ نیوی دے منافقانو ته ۔ او مَثَلُهُمْ لفظ پټ دے او الَّذِينَ مِنْ قَبْلِهِمْ نه مراد کفار قریش دی په بدر کښ او بنو قینقاع دَ یهودو چه دَ بنو نضیر نه مخکښ په دوی باندے دَ الله تعالیٰ عذاب راغے ۔ وَبَالَ أَمْرِهِمْ امر نه مراد دَ دوی کفر او دَ حق سره دشمنی او دَ نبی صلی الله علیه وسلم سره لوظ ماتول دی ۔ وَبَالَ نه مراد قتل دَ کفار قریش دے په بدر کښ او اُویستل دوی دَ کورونو نه بنی قینقاع لره ۔

ف۱۶ دا دویم مثال دے لیکن نه دے عطف کړے په ما قبل باندے ځکه اول مثال دَ عذاب دنیوی دے او دا مثال دَ دھوکے دَ منافقانو دے دَ یهودو (بنی نضیرو) سره ۔ یا دا چه اول مثال دَ یهودیانو دے او دویم مثال دَ منافقانو دے نو دا دواړه مستقل مثالونه دی ۔ شبه پدے مثال کښ دا ده چه منافقانو یهودیانو ته اُویل چه دَ دے نبی مخالفت کوئے او قتال ورسره کوئے مونږ به ستا سو مدد کوؤ او تاسو سره به دَ وطن نه اوځو لکه چه په ف۱۱ کښ ذکر شول او یهودیان پدے قول دَ هغوی باندے دهوکه شول او په کفر باندے کلک شول او چه هر کله اویستلے شول نو منافقانو ترینه براءت اوکړو ۔ او مشبه به په دے په قول دَ مجاهد سره هر انسان دے چه کفر او شرك او نفاق کوی په وسوسه دَ شیطان انسی یا جنّی سره او هر کله چه انسان کفر کښ کلک شی نو شیطان ترینه (پاتے په بل مخ)

فَكَانَ عَاقِبَتَهُمَآ أَنَّهُمَا فِى النَّارِ خَالِدَيْنِ
نو شو عاقبت دَ دواړو چه یقیناً دوی به په اور کښې وی همیشه به وی
فِيهَا ۚ وَذٰلِكَ جَزٰٓؤُا الظّٰلِمِيْنَ ﴿١٧﴾ ع
په هغې کښې او دا سزا دَ ظالمانو ده .
يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوا اتَّقُوا اللّٰهَ وَلْتَنْظُرْ
اے ایمان والو ویره کوئے دَ الله تعالیٰ نه او فکر دِ کوی
نَفْسٌ مَّا قَدَّمَتْ لِغَدٍ ۚ وَاتَّقُوا اللّٰهَ ط
هر نفس دَ هغه عمل چه لیږدی ئې دَ صبا دَ پاره او ویره کوئے دَ الله تعالیٰ نه
اِنَّ اللّٰهَ خَبِيْرٌ بِمَا تَعْمَلُوْنَ ﴿١٨﴾ وَلَا
یقیناً الله تعالیٰ خبردار دے په هغه عملونو چه تاسو ئې کوئے . او مه

ع ٧ ٥

براءت اوکړی په دے و یرے چه ما لره دَ دهٔ په عذاب کښې شریک نه کړی
لیکن دا براءت شیطان ته هیڅ فائده نه ورکوی بلکه دَ دواړو عاقبت به اور
دَ جهنم وی . او دویم قول دا دے چه مراد دَ اَلْاِنْسَانِ نه کفار قریش دی او
شیطان لمسولے دی په قتال دَ ورځ دَ بدر باندے لکه چه سورة انفال ۴۸
کښې تیر شوید ی او پد ے دواړه توجیها تو باندے الانسان نه مراد جنس دے
هر واحد او دیرو ته شامل دے . او دریم قول دا دے چه مراد دَ انسان
نه برصیصا راهب دے او دَ هغه واقعه ابن جریر او ابن کثیر قرطبی وغیره
مفسرینو لیکلی ده اسرائیلی روایت دے تصدیق یا تکذیب ئې نه کوؤ لیکن
اول قول غوره دے . اِنِّىْٓ اَخَافُ اللّٰهَ رَبَّ الْعٰلَمِيْنَ دے قول دَ شیطان کښې
خوف ایمانی مراد نه دے بلکه خوف طبعی یا خوف په دروغ دعویٰ سره دے
۱۸ روستو دَ بحث دَ منافقانو نه خطاب کوی مؤمنانو ته دِ دے دَ پاره چه ځان
بچ کړی دَ صفاتو دَ نفاق نه او پدیکښې دری اوامر او یو نهی ذکر کوی .
اول اتَّقُوا اللّٰهَ مراد دَ دے نه تقویٰ دَ ایمانیاتو ده یعنی دَ هر قسم شرک
او کفر نه ځان ساتل . دویم وَلْتَنْظُرْ نَفْسٌ مَّا قَدَّمَتْ لِغَدٍ یعنی دَ ځان سره

وَلَا تَكُونُوا كَالَّذِينَ نَسُوا اللّٰهَ فَأَنسَاهُمْ

کیږئ د هغه کسانو پشان چه هیر کړے دے الله تعالیٰ نو هیر کړل الله تعالیٰ د دوی نه

أَنفُسَهُمْ ۚ أُولَٰئِكَ هُمُ الْفَاسِقُونَ ⑲

نفسونه د دوی دغه کسان هم دوی پوره نافرمان دی۔

لَا يَسْتَوِي أَصْحَابُ النَّارِ وَأَصْحَابُ الْجَنَّةِ ۚ

نه دی برابر اور والا او جنت والا

حساب کول او تمیز کول په مینځ د حق او باطل کښې لِغَدٍ مراد ترینه ورځ د حساب ده . غَدَ په محاوره د عرب کښې راتلونکې ورځ ته ویلے کیږی او اشاره ده چه دا ټول عمر د دُنیا پشان د یوے ورځے دے او صبا له قیامت دے. دریم وَاتَّقُوا اللّٰهَ مراد د دے نه تقویٰ د اعمالو ده یعنی د اوامرو پابندی کول او د نواهی نه ځان بچ کول او په دے دواړه اقسامو د تقوی کښې د صفاتو د یهودیانو او منافقانو نه ځان بچ کول داخل دی۔ خَبِيرٌ دا صفت علم د باطن او ظاهر دواړو ته شامل دے .

س۱۹ دا خلورم خطاب دے ۔ مراد د دے نه مشابهت د کافرانو منافقانو مشرکانو نه په هره طریقے سره ځان ساتل دی که مشابهت په عقیده کښې وی او که په عمل او په اخلاقو کښې او که په صورت کښې او که په سیرت کښې وی او په غم او ښادے کښې او په لباس وغیره کښې ۔ لکه چه د تشبیه د دوی نه منع کړیده په سورة آل عمران س۱۵۶ او په سورة احزاب س۶۹ کښې۔ نَسُوا اللّٰهَ مضاف حذف دے یعنی ذکر الله یا عذاب الله او نسیان په معنیٰ د ترک عمداً سره دے لیکن هرکله چه د الله تعالیٰ ذکر پریخودلے شی او غفلت ترینه اوکړے شی نو بیا هیر شی د دے وجے نه تعبیر ترینه په نسیان سره شوید ے ۔ فَأَنسَاهُمْ أَنفُسَهُمْ جزا د جنس د عمل نه وی د دے وجے نه دا تعبیر اوکړے شو مراد د دے نه دا چه الله تعالیٰ دوی له توفیق د نیک عمل نه ورکوی او که نیک عمل وی نو ورسره شرک بدعت او ریاء وغیره کړی وی نو د دوی نفسونو ته به په قیامت کښې هیڅ نفع ورنکړی۔ اَلْفٰسِقُوْنَ پوره فاسق هغه دے چه په عقیده او عمل دواړو کښې د دین د الله تعالیٰ نه وتلے وی او اشاره ده چه نسیان د ذکر الله سبب د فسق دے ۔

أَصْحٰبُ الْجَنَّةِ هُمُ الْفَآئِزُوْنَ ﴿۲۰﴾

جنت والا خاص دوی مراد ونه حاصلوونکی دی (کامیاب دی) -

لَوْ أَنْزَلْنَا هٰذَا الْقُرْاٰنَ عَلٰى جَبَلٍ لَّرَاَيْتَهٗ

که چرے مونږ نازل کړے وے دا قرآن په غره باندے ضرور تابه لیدلے وو هغه

خَاشِعًا مُّتَصَدِّعًا مِّنْ خَشْيَةِ اللّٰهِ ۚ وَتِلْكَ

عاجزی کوونکے ټکړے کیدونکے د وجه د ویرے د الله تعالیٰ نه او دا

الْاَمْثَالُ نَضْرِبُهَا لِلنَّاسِ لَعَلَّهُمْ يَتَفَكَّرُوْنَ ﴿۲۱﴾

مثالونه بیانوؤ مونږ دپاره د خلقو د دے دپاره چه دوی فکر اوکړی -

سنه۲ دا علت دَ ماقبل دے یعنی مؤمنان دِ دَ مشابهت دَ کافرانو نه ځان دَ دے وجے نه بچ کړی چه دَ دوی عاقبت کښ پوره فرق دے. أَصْحٰبُ النَّارِ هغه دی چه الله تعالیٰ ئے هیر کړے دے او دَ یهودیت او منافقت اوصاف پکښ موجود دی.
وَ أَصْحٰبُ الْجَنَّةِ هغه کسان چه ځان ئے دَ او صافو او دَ تشبیه دَ کافرانو او منافقانو نه بچ ساتلے دے او دا عدم مساوات دَ فریقینو په سورة غافر سنه۵۸ او سورة جاثیه سنه۲۱ او سورة ص سنه۲۸ او سورة سجده سنه۱۸ کښ ذکر شویدے۔
فائده :- ابو سعود تفسیر کښ ویلے دی چه اصحاب النار ئے دَ دے وجے نه مخکښ ذکر کړو چه سبب دَ عدم مساوات یعنی کوتاهی دَ جانب دَ دوی نه ده چه دوی په ځان کښ صفات دَ جنت والو نه دی پیدا کړی او دا رنګ اکثرایاتونو دَ نفی دَ مساوات کښ جانب دَ نقصان والا مخکښ ذکر کړے دی او کله چه برعکس ذکر روی نو هلته بل حکمت وی چه په خپل ځائے ذکر کیدے شی - اَلْفَآئِزُوْنَ دا په مقابله دَ الخاسرون کښ استعمالیږی نو معلومه شوه چه په تیر شوی ایت کښ فسق چه سبب دَ خسران دے دَ خسران په ځائے ذکر شویدے۔
سنه۲ په دے ایت کښ درے توجیهات دی اول دا چه عظمت دَ قرآن کریم ذکر کوی سره دَ زجر نه منکرینو ته حاصل دا چه که یو غر ته الله تعالیٰ فهم او عقل دَ انسان پشان ورکړے وے او په قرآن کریم سره ئے مکلف کړے وے او قرآن ئے ورته اورولے وے نو هغه به دَ خشوع او خشیت دَ

هُوَ اللّٰهُ الَّذِیْ لَآ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ عٰلِمُ الْغَیْبِ

خاص هغه الله تعالیٰ دے داسے ذات چه نیشته حقدار د بندگۍ سیوا د هغه نه عالم دے په هر پټ

وجے نه ټکړے شویوے اگرچه ډیر وسختو کلکو نه ډک دے لیکن انسان اعراض کوؤنکے دومره سخت زړے دے چه په قرآن سره په داؤ کښں اثر نه پیدا کیږی او مضمون د دے پشان د آیت د سورت بقرے ۷۴ دے۔ دویم توجیه دا ده چه په دا یکښں ثقل د قرآن او احسان په نبی صلّی الله علیه وسلّم باندے ذکر کوی یعنی د قرآن کریم بوج او دروند والے خو دومره دے چه غرونه د هغے برداشت نه شی کولے لیکن الله تعالیٰ خپل نبی صلّی الله علیه وسلّم لره دومره قوّت ورکړے دے چه هغه د قرآن کریم د ثقل د نزول او د بوج د تبلیغ برداشت کوی لکه په سورة مزمل ۵ کښں ثقل ذکر دے او په سورة مریم ۹۷ او سورة دُخان ۵۸ کښں یُسر (آسانتیا) ئے ذکر کړے دے۔
دریمه توجیه دا ده چه په دے کښں ثقل د قرآن کریم او جواب سوال ذکر کوی سوال د مشرکینو او د یهودیانو دا وو چه دا قرآن په یو ځل پورے نبی باندے ولے نه نازلیږی؟ حاصل د جواب دا دے چه په یو ځل (په جمع) دا قرآن په غر باندے نازل شی نو هم ئے برداشت نه شی کولے ځکه چه د غر قوت د جسم ډیر زیات دے نو نبی صلّی الله علیه وسلّم د هغے برداشت څه رنګ کولے شی؟ د دے وجے نه الله تعالیٰ لګ لګ نازل کړو سره د دے نه چه بیا په هم په نبی صلّی الله علیه وسلّم باندے په سختئ تخفیف کښں څوځلے راتللے۔ او په دے ټولو توجیهاتو سره ربط د آیت د ماقبل سره دا دے چه کافران یهود او منافقان وغیره د اصحاب النار د ډلے نه په دے قرآن سره وتلے شی په دے شرط چه په دے کښں فکر اوکړی او ایمان پرے راؤړی او د قرآن په سبب الله تعالیٰ ته خشوع اوکړی او خشیت اوکړی۔
او بیا په دریمه توجیه باندے د القرآن نه نزول قرآن په جمع سره مراد دے۔ خَاشِعًا مُّتَصَدِّعًا مِّنْ خَشْیَةِ اللّٰهِ یعنی په قرآن سره اول خشیت د الله تعالیٰ نه پیدا کیږی بیا د خشیت د وجے نه خشوع پیدا کیږی بیا خشوع چه ترقی اوکړی نو تصدّع پیدا کیږی۔ خشوع نه مراد تذلل کول دی په طاعت سره او تصدع نه مراد ریاټے په بل مخ)

وَالشَّهَادَةِ ۚ هُوَ الرَّحْمٰنُ الرَّحِيمُ ﴿۲۲﴾

او ښکاره پانده خاص هغه پوره مهرباني کوونکي خاص رحمت والا دے ـ

ځودل دَ ويرے دَ ګناه او دَ عذاب نه ـ

فائده :- په مؤمنانو کښې دَ دے مصداق په ترتيب سره دا دے چه په قيام دَ مونځ کښې قرآن لولي ښځلے او دَ امام نه ئے اوري په خشيت سره نو دَ هغے نه روستو خشوع اوکړي په رکوع کولو سره لکه چه حديث کښې دَ خشوع اطلاق په رکوع بانديے شويدے او بيا دَ خشوع نه روستو تصدع پيدا شي په سجده کولو او په ژړا کولو سره ـ

وَتِلْكَ الْأَمْثَالُ اه په دےکښې اشاره ده چه ذکر دَ حال دَ غر په وخت دَ انزال کښې دَ تمثيل دَ پاره دے او دَ مثال دَ پاره امکان دَ هغه څيز کافي وي اگر چه وقوع او وجود کښې نه وي راغلے ـ لَعَلَّهُمْ يَتَفَكَّرُوْنَ تفکر په مثال کښې دا دے چه په هغے کښې مُمَثَّلٌ لَهٗ او مُمَثَّلٌ بِهٖ او وجه دَ تمثيل معلومه کړي او بيا دَ هغے نه عبرت او وعظ حاصل کړي ـ

۲۲ شريعتي په باره دَ ربط کښې ويلے دي چه عظمت دَ قرآن کريم ذکر شو او قرآن صفت دَ الله تعالى دے نو اوس عظمت دَ موصوف (چه الله تعالى دے) ذکر کوي ځکه چه عظمت دَ صفت دَ وجے دَ عظمت دَ موصوف نه دے ـ

دويم ربط دا دے چه خشيت او خشوع په قرآن سره هله حاصليږي چه دَ الله تعالى اسماءِ حسنىٰ او صفاتِ عُليا او پيژني او په دے درے آيا تونو کښې دَ الله تعالى اسماء او صفات ئے په حذف دَ تکرار سره شل ذکر کړے دي.

هُوَ ضمير راجع نازلونکي دَ قرآن ته يا مرجع دَ دے هغه ذات دے چه موجود دے په ټولو ذهنونو او فکرونو کښې او غائب دے په اعتبار دَ عظمت شان خپل ـ

اَللّٰهُ دا خبر دَ هُوَ دے او دا اسمِ ذات دَ الله تعالى دے چه موصوف دے په راتلونکو صفتونو سره ـ اَلَّذِيْ لَآ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ دا اول صفت دے او مقصود په دے کښې اثبات دَ الوهيت په طريقه دَ اختصاص سره دے دَ پاره دَ الله تعالى په دليل دَ علم دَ الله تعالى سره په هر څيز باندے چه دَ هغه دَ علم نه هيڅ څيز بهر نيشته دَ دے وجے نه ورپسے صفت دَ علم ئے ذکر کړے دے ـ

عَالِمُ الْغَيْبِ وَالشَّهَادَةِ دا دويم صفت دے الغيب او الشهادة مصدرونه دي

هُوَ اللّٰهُ الَّذِیْ لَآ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ ۚ اَلْمَلِكُ

خاص هغه الله دے دا سے ذات دے چه نیشته حقدار د بندگئ سیوا د هغه نه پوره بادشاه دے

الْقُدُّوْسُ السَّلٰمُ الْمُؤْمِنُ الْمُهَیْمِنُ الْعَزِیْزُ

ډیر پاک دے بچ دے د هر نقصان نه امن ورکوونکے ساتنه کوونکے دے عزت والا دے

الْجَبَّارُ الْمُتَكَبِّرُ ؕ سُبْحٰنَ اللّٰهِ عَمَّا یُشْرِكُوْنَ ﴿۲۳﴾

زور کوونکے دے خاوند د لوئیئ دے پاکی ده الله تعالیٰ لره د هغے نه چه دوی ورسره شریک جوړوی

په معنیٰ د اسم فاعل دی یعنی هغه څیزونه چه غائب دی د مخلوق نه او حاضر دی مخلوق ته. هُوَ الرَّحْمٰنِ الرَّحِیْمِ دا دوه صفتونه یعنی تقسیم د عامو نعمتونو په دُنیا کښ او د خاص نعمتونو په دُنیا او آخرت کښ په علم د هغه سره دی. د دے مناسبت په وجه سره دا صفتونه ئے په یو ځائے ذکر کړل۔

۲۳ په دے کښ مقصد اثبات د الوهیت سره د اختصاص نه د الله تعالیٰ د پاره دے په دلیل د قدرت او تصرف د هغه سره په هر څیز کښ په هر جهت سره. د دے وجے نه روستو صفتونه د تصرف ئے ذکر کړیدی نو معلومه شوه چه د الوهیت د اثبات د پاره دوه قسمه صفتونه ضروری دی صفت د علم بکل شئ او صفت د قدرت علیٰ کل شئ او دا دواړه خلاصه ده د صفتونو د الله تعالیٰ.

اَلْمَلِكُ تصرف او تدبیر کوونکے دے په تمام مخلوق کښ په امر و نهی سره او په ښائسته نظام او ترتیب سره۔ اَلْقُدُّوْسُ ډیر پاک دے د هر نقصان او عیب نه په ذات او تمام صفاتو کښ او خصوصًا په خپله بادشاهیٔ چلولو کښ اَلسَّلٰمُ سالم او بچ دے د عارض کیدلو د هر نقصان او عیب نه په ذات او صفاتو کښ نو فرق د قدوس او سلام دا دے چه ذاتی او اصلی نقصان پکښ نیشته نو قدوس دے او عارضی نقصان او عیب هم پکښ نشی راتللے نو سلام دے، یا سلامتیا ورکوونکے بندګانو ته هر کله چه او غواړی، یا سلامتیا ورکوونکے د ظلم کولو نه یعنی ظلم په هیچا نه کوی۔ اَلْمُؤْمِنُ امن ورکوونکے دوستانو خپلو ته د عذاب نه او ټولو خلقو ته د خوف د ظلم کولو نه۔ نو فرق د السلام په روستنی معنیٰ سره او المؤمن دا دے چه السلام کښ اشاره ده چه معامله د ظلم د هیچا سره نه کوی او المؤمن کښ اشاره ده چه د خوف د ظلم (راپاتے په بل مخ)

# هُوَ اللّٰهُ الْخَالِقُ الْبَارِئُ الْمُصَوِّرُ لَهُ الْاَسْمَآءُ

خاص هغه الله تعالیٰ دے پیدا کوونکے دے جدا جدا کوونکے شکلونه ورکوونکے دے خاص هغه لره نومونه دی

نه ئے امن ورکړیدے۔ یا اَلْمُؤْمِنُ بښکاره کوونکے دَ توحید خپل دے په خپل شهادت سره چه (شهد الله انه لا اله الا هو) او په دلیلونو سره، دا معنیٰ دَ مجاهد نه نقل ده۔ یا تصدیق کوونکے دَ رسولانو خپلو په معجزاتو سره او دَ مؤمنانو په ثواب ورکولو سره۔ اَلْمُهَيْمِنُ ساتنه کوونکے دَ ټول مخلوق او دَ هغوی دَ عملونو دے لکه "اَفَمَنْ هُوَ قَآئِمٌ عَلٰى كُلِّ نَفْسٍ بِمَا كَسَبَتْ" (رعد ۳۳)۔
یعنی سلامتیا او امن دَ دے وجے نه ورکولے شی چه حافظ او ساتنه کوونکے دَ مخلوق دے۔ اَلْعَزِيْزُ، ساتنه ځکه کولے شی چه غالب دے په هغه کار چه اوغواړی او هیڅوک هغه لره دَ خپلے ارادے نه نشی منع کولے عزت والا دے بے مثاله بے نظیره دے۔ اَلْجَبَّارُ ابن قیم په قصیده نونیه کښ دَ دے درے معانی ذکر کړیدی او هغے ته قرطبی هم اشاره کړیده۔ اوله معنیٰ جبر په معنیٰ دَ اصلاح سره یعنی دَ خپل مخلوق دَ کمزورئے او دَ بیمارو اصلاح کوی۔ دویمه معنیٰ زورآور دے په ټول مخلوق باندے چه په زور سره خپله اراده په مخلوق کښ نافذ کولے شی۔ دریمه معنیٰ اوچت دے دَ ټول مخلوق نه (په صفت دَ علو سره) دَ چالاس (او طاقت) ورته نشی رسیدلے او بله څلورمه معنیٰ دا ده چه جبار هغه ذات دے چه دَ هغه دَ پاره دَ هیچا قانون او حکم او زور نشی چلیدلے او دغه معنیٰ مراد ده په سورۃ مریم ۳۲ کښ او جبار دَ الله تعالیٰ په باره کښ صفت دَ مدح دے او دَ مخلوق په صفت کښ صفت دَ ذَم دے۔ اَلْمُتَكَبِّرُ بښکاره کوونکے دے خپلے کبریاء لره په دلیلونو عقلیو او وحییو سره۔ ډیر لوئے دے په ټول مخلوق باندے په ذات او صفتونو سره۔ فرق په مینځ دَ مستکبر او متکبر کښ دا دے چه استکبار همیشه په ناحق لوئے کښ استعمالیږی دَ دے وجے نه دا په صفت دَ الله تعالیٰ کښ نه راځی او تکبر کله په حق سره وی لکه په صفت دَ الله تعالیٰ کښ او کله په ناحقه سره وی لکه په صفت دَ مخلوق کښ۔
سُبْحَانَ اللّٰهِ عَمَّا يُشْرِكُوْنَ دا جمله هم په طریقه دَ صفت دَ الله تعالیٰ سره ده یعنی په دے صفتونو ذکر کړے شوو کښ او نورو صفتونو دَ

الْحُسْنٰى ۚ يُسَبِّحُ لَهٗ مَا فِي السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ ۚ

خاصّه ۔ پاکی وائی هغه لره هغه څیزونه چه په آسمانو نوکښ دی او زمکه کښ دی

وَهُوَ الْعَزِيْزُ الْحَكِيْمُ ﴿۲۴﴾

او خاص هغه زورآور حکمتونو والا دے ۔

دَ الوهیت کښ دَ الله تعالیٰ سره هیڅوک شریک نشی کیدے ۔
۲۴ دا صفات هم په تصرف او قدرت باندے دلالت کوی۔ الْخَالِقُ دَ خلق نه دے او په معنیٰ دَ تقدیر دے لکه "خَلَقَ الْمَوْتَ وَالْحَيَاةَ" یا په معنیٰ دَ قدّر دے یا په معنیٰ دَ نطفے نه جوړول دَ بدن۔ الْبَارِئُ هر یو لره دَ بل نه په فرق او تفاوت سره جوړ ووُنکے۔ الْمُصَوِّرُ شکل او صورت دَ مخ او دَ اندامونو جوړوُنکے۔ لَهُ الْاَسْمَاءُ الْحُسْنٰى دا هم صفت دَ الله تعالیٰ دے په اجمالی ذکر سره او اسماء نه اسماء صفتیه مراد دی په صیغه دَ اسم فاعل او صفة مشبه او اسم تفضیل سره۔ او دا اسماء په قران کریم کښ غیر اضافی ۹۲ دی او اضافی ۲۶ دی او دَ دے نه علاوه په احادیثو صحیحو کښ دی او دا اسماء په دوه قسمه دی ثبوتیه لکه چه مخکښ ذکر شول او سلبیه هغه په قران کریم کښ دوه قسمه دی ۱ سلب کلی سره هغه ۵ دی ۲ او سلب خاصه سره هغه ۲۶ دی او دَ اهل السنت والجماعت په نیز باندے دا ټول توقیفی دی یعنی په قران او حدیث صحیح کښ چه کوم دَ الله تعالیٰ دَ پاره ثابت دی یا په هغے کښ سلب شوی وی نو دَ هغے په ثبوت باندے یا په سلب باندے عقیده ساتل ضروری دی او دَ اسماء حسنیٰ حصر په خاص عدد کښ نیشته دے او کوم چه په حدیث صحیح کښ ذکر دی چه الله تعالیٰ لره یو کم سل نومونه دی نو دَ هغے مطلب دَ محدثینو په نیز باندے دا دے چه ثواب خاصه (چه مَنْ اَحْصَاهَا دَخَلَ الْجَنَّةَ) په دے یو کم سلو پورے دے۔
فائده:۔ حُسن په اسماء دَ الله تعالیٰ کښ په ډیرو وجوهو سره دے۔ اوله وجه دا ده چه دا خاص دی په الله تعالیٰ پورے دَ هغے په حقیقت کښ هیڅوک شریک نیشته دویمه وجه هر اسم (ریاتے په بل مخ)

په خپله معنیٰ حقیقي کښې په طریقه د کمال سره ماخوذ دے ۔
دریمه وجه دا چه الله تعالیٰ په دے صفاتو کښې هیڅ چا ته حاجت نه لري ۔
څلورمه وجه دادہ چه دا اسماء موقوف دي په نقل باندے عقل لره په دے کښې دخل نیشته دے ۔
پنځمه وجه دادہ چه دا ټول قدیم دي هیڅ حدوث پکښې نیشته ۔
[او نور تفصیلي بحث د دے اسماؤ ما په یو رساله کښې لیکلے دے امید دے چه هغه رساله به په کتاب الایمان کښې چاپ شي انشاءالله تعالیٰ]
يُسَبِّحُ لَهٗ دا هم صفت د الله تعالیٰ دے ۔
او حدیث صحیح کښې راغلے دي چه چا صبا او بیګاه درے ځله "اعوذ بالله السمیع العلیم من الشیطان الرجیم" اُووئیلو بیا دا درے آیاتونه یو ځل اولولي نو الله تعالیٰ په دهٔ باندے اویا زره ملائیک مقرر کړي دُعا ورله غواړي اوکه مړ شي په دغه شپه یا ورځ کښې نو مرګ به ئې د شهادت وي (اَللّٰهُمَّ ارْزُقْنَا مَوْتَ الشَّهَادَةِ فِيْ سَبِيْلِكَ)

الحمد لله ختم شو تفسیر د سورة حشر په فضل د الله تعالیٰ سره

سُورَةُ الْمُمْتَحِنَةِ ۶۰ مَدَنِيَّةٌ ۹۱ — بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ — اٰيَاتُهَا ۱۳ رُكُوْعَاتُهَا ۲

يٰۤاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لَا تَتَّخِذُوْا عَدُوِّيْ

اے ایمان والو مه نیسئ دُشمن زما

وَعَدُوَّكُمْ اَوْلِيَآءَ تُلْقُوْنَ اِلَيْهِمْ بِالْمَوَدَّةِ

او دُشمن ستاسو دوستان چه غورځوئ تاسو هغوی ته خبرے دَ دوستانے

وَقَدْ كَفَرُوْا بِمَا جَآءَكُمْ مِّنَ الْحَقِّ ج

او حال دا چه هغوی کفر کړے دے په هغه چه راغلے دے تاسو ته دَ حق نه

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

سورۃ الممتحنه دَ حَا زوَر او زیر دواړه ثابت دی او نور نومونه ئے سورۃ المودّۃ او سورۃ المرءۃ او سورۃ الامتحان دی۔

ربط دَ دے دَ مخکښ سورت سره په درے وجوهو سره دے اوله وجه دا ده چه په هغه سورت کښ تخویف دنیوی وو دَ پاره دَ مشا قّینو او په دے سورت کښ امر دے مؤمنانو ته دَ هغوی په براءت باندے دویمه وجه دا ده چه دَ تیر شوی سورت په آخر کښ تفصیلی توحید ذکر کړے شو نو په دے سورت کښ منکرینو دَ توحید سره اظهار دَ دُشمنئ دے۔ دریمه وجه دا ده چه په هغه سورت کښ دَ مؤمنانو اقسام ذکر کړل نو په دے سورت کښ دَ کافرانو اقسام ذکر کوی۔

دعوی دَ سورت۔ نهی ده دَ دوستانے دَ کافرانو نه په سٓ ۱۳ کښ۔ او یوولس اسماء حسنیٰ ذکر دی دَ پاره دَ معرفۃ الٰهیه۔

خلاصه دَ سورت۔ دا سورت دوه بابونو ته تقسیم دے اول باب ترک پورے دے په یکښ منع ده مؤمنانو لره دَ دوستانے دَ کافرانو نه په ذکر کولو دَ او وُ علتونو سره په سٓ ۲ کښ او جواب دَ عذار دے په سٓ ۳ کښ او ترغیب دے په براءت کولو کښ او اقتداء دَ ابراهیم علیه السلام او دَ تابعدارو دَ هغه ته په براءت کولو او په دُعاګانو غوښتلو کښ۔

يُخْرِجُوْنَ الرَّسُوْلَ وَاِيَّاكُمْ اَنْ تُؤْمِنُوْا

او باسی دوی رسول صلی الله علیه وسلم لره او تاسو لره دَ دے وجے نه چه تاسو ایمان راوړے دے

بِاللّٰهِ رَبِّكُمْ ؕ اِنْ كُنْتُمْ خَرَجْتُمْ جِهَادًا

په الله تعالیٰ چه رب ستاسو دے که چرے تاسو وتلی یئ (دَ وطن نه) دَپاره دَ جهاد

فِيْ سَبِيْلِيْ وَابْتِغَآءَ مَرْضَاتِيْ ۖ تُسِرُّوْنَ

په لار زما کښ او دَپاره دَ لټولو دَ رضا زما ، پټے لیږے تاسو

اِلَيْهِمْ بِالْمَوَدَّةِ ۖ وَاَنَا اَعْلَمُ بِمَآ اَخْفَيْتُمْ

هغوی ته دوستانے او زه ښه پوهه یم په هغه څه چه تاسو پټ وی

وَمَآ اَعْلَنْتُمْ ؕ وَمَنْ يَّفْعَلْهُ مِنْكُمْ فَقَدْ

او هغه څه چه تاسو ښکاره کوئ او چا چه اوکړو دا کار (په ایندہ وخت کښ) ستاسو نه نو یقیناً

ضَلَّ سَوَآءَ السَّبِيْلِ ① اِنْ يَّثْقَفُوْكُمْ

ګمراه شو دَ برابر لارے نه . که چرے دَ دوی وس ورشی په تاسو باندے

تفسیر سلے په دیکښ مؤمنانو لره منع کوی دَ دوستانے دَ کافرانو نه او دَ هغوی سره په دشمنئ کولو باندے راپورته کوی او دَ هغے دَپاره څلور وجے دَ هغوی دَ دُشمنئ دَ مؤمنانو سره ذکر کوی او درے صفات ئے دَ مؤمنانو ذکر کړی دی . ایمان او جهاد او طلب دَ رضا دَ الله تعالیٰ او دا صفتونه منع کوونکی دی دَ دوستانے دَ کافرانو نه . او دا مسئله په سورة مائده سلے ۵۵ او سورة نساء سلے ۱۴۴ او سورة آل عمران سلے ۲۸ کښ هم تیر شوی دی . اَوْلِيَآءَ دَ ولایت درے مرتبے دی . اوله مرتبه دَ کافرانو سره ملګرتیا کول په عقیده او په کار دَ کفر او شرک کښ دا خو کفر دے . دویمه مرتبه دَ هغوی سره په کارونو دَ کفر کښ مالی یا بدنی امداد کول اګرچه په کفر او شرک کښ ورسره شرکت نه کوی دا هم ګناه کبیره دے دریمه مرتبه دَ هغوی توقیر او عزت کول دَ هغوی نه مشر جوړول او دَ هغوی دَ اکرام دَپاره او دریدل وغیره (پاتے په بل مخ)

يَكُوْنُوْا لَكُمْ اَعْدَآءً وَّيَبْسُطُوْٓا اِلَيْكُمْ

نو کیږی دوی ستاسو دښمنان او اوګدی دی دوی تاسو ته

اَيْدِيَهُمْ وَاَلْسِنَتَهُمْ بِالسُّوْٓءِ وَوَدُّوْا

لاسونه خپل او ژبې خپلې په بدې سره او هوی غواړی

لَوْ تَكْفُرُوْنَ ۝۲ لَنْ تَنْفَعَكُمْ اَرْحَامُكُمْ

چه تاسو کفر اوکړئ . هیچرے نفع نه درکوی تاسو ته خپلولے ستاسو

داهم ګناه دے اودا توله مرتبې په دے نهی کښ داخل دی.

تُلْقُوْنَ اِلَيْهِمْ بِالْمَوَدَّةِ بآ دَ تاکید دَپاره زیاتی ده او مفعول دَ تلقون دے یا بآ سببیه ده مفعول حذف دے یعنی یلقون الیهم الاسرار (یعنے هغوی ته پټ رازونه) په سبب دَ مودّت سره. قرطبي وئیلے دی چه مراد دَ مودت نه تعلق ظاهری دے ځکه چه زړه دَ حاطب بن ابی بلتعه (چه دا ایت دَ هغه په باره کښ نازل شوید ے) دَ هغوی دَ دوستانے نه پاک وو په دلیل دَ قول دَ رسول الله صلی الله علیه وسلم سره "اما صاحبکم فقد صدق".

يُخْرِجُوْنَ الرَّسُوْلَ دا استیناف دے علت دے دَپاره دَ وَقَدْ كَفَرُوْا نو تفسیر دے دَ کفر دَ هغوی. اَنْ تُؤْمِنُوْا بِاللّٰهِ رَبِّكُمْ یعنی بل جرم ستاسو نه وو ما سیوا دَ دے نه چه تاسو موحدین یئ اودا دلیل دے چه څوک یو مؤمن له دَ هغه دَ ایمان او دَ توحید او حق پرستئ دَ وجے نه دَ ملک نه شړی یا ورته څه تکلیف رسوی نو هغه کافر دے اودا ـــ په سورة بروج ـــ او سورة حج ـــ کښ هم شته. تسرون الیهم بالمودة دا جمله مستانفه ده په تقدیر دَ اَنْتُمْ (مبتدا) سره یا بدل دے دَ تلقون نه په بدل اشتمال سره او المودة نه مراد النصیحة (خیرخواهی) ده. وَمَنْ يَّفْعَلْهُ مِنْكُمْ صیغه دَ فعل مستقبل ئے دَ دے دَپاره راوړله چه دا کار (چا وړاندے زمانه کښ کړے دے (لکه چه حاطب رض بن بلتعه کړے وو) نو هغه ګمراه او ګنهګار نه دے.

قرطبي وئیلے دی چه دا ټول عتاب دے لکه چه یو دوست بل دوست ته کوی نو دلالت کوی په فضیلت او شرافت دَ حاطب رضی الله عنه باندے.

ـــ په دے ایت کښ درے علتونه (یعنی اوصاف دَ کافرانو) (راغلی) په بل مخ)

وَلَآ اَوْلَادُكُمْ ۚ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ ۚ يَفْصِلُ

| او نه | اولاد | ستاسو | په ورځ | دَ | قيامت | جدائي | به اوکړي |
|---|---|---|---|---|---|---|---|

بَيْنَكُمْ ۭ وَاللّٰهُ بِمَا تَعْمَلُوْنَ بَصِيْرٌ ③

| په مينځ ستاسو کښې | او الله تعالیٰ | ستاسو | عملونو لره | ليدونکے | دے . |
|---|---|---|---|---|---|

ذکر کوي دَ پاره دَ براءت کولو دَ هغوي نه .

اِنْ يَّثْقَفُوْكُمْ دا لفظ استعماليږي په موندلو کښې سره دَ غلبې نه يَكُوْنُوْا يعني سرهٔ دَ دے نه چه تاسو ورته خطونه ليکې ليکن دَ هغې لحاظ نه کوی .

وَاَلْسِنَتَهُمْ په کنځلو او طعنونو ويلو سره ، او ايديكم ئې مخکښې ذکر کړو اشاره ده ډيرے دُشمنئ کولو ته .

وَ وَدُّوْا دا ئې په فعل ماضی سره ذکر کړو يعنی داتمنّا دَ دوی دَ زړه ده لکه سورة بقره سڵ۱۰۹ کښې .

سڵ۳ په دے کښې جواب دَ عذر دے چه حاطب رضي الله عنه ذکر کړے ووُ ر" ويلې ووُ چه ما دوی ته خط دَ دے وجې نه ليږلے ووُ چه په دوی باندے زما احسان راشی نو په مکه کښې زما دَ اهل او قرابت والا او مالونو حفاظت اوکړی") حاصل جواب دا دے چه دَ قرابت او اولاد په سبب دَ عذابِ الٰهی نه بچ کيدل نشی کيدلے .

دَ بخاری په روايت کښې په معذرت دَ دهٔ کښې قرابت ذکر دے او نورو روايتونو کښې مال او اهل او اولاد هم ذکر کړے دے . او هر کله چه اُميد دَ نفع ورکولو په سخته کښې دَ خپلوانو سره اول کيدے شي نو دَ هغوی ذکر ئې مخکښې راوړو . او کيا هراسی ته نقل دی چه دَ دے ايت نه معلومه شوه چه دَ خوف دَ مال او اولاد دَ وجې نه فتنه دَ دين قبلول نشی جائز کيدے .

يَوْمَ الْقِيٰمَةِ يَفْصِلُ بَيْنَكُمْ هر کله چه اميد دَ نفع دَ وصل دَ وجې نه دے نو الله تعالیٰ دَ هغې په مقابله کښې فصل ذکر کړو .

يَوْمَ الْقِيٰمَةِ متعلق دے په لَنْ تَنْفَعَكُمْ پورے او يَفْصِلُ مستقل کلام دے يا يَوْمَ الْقِيٰمَةِ ظرف دَ پاره دَ يُفْصِلُ دے او دَ دے نه جمله مستقله شوه شويده .

قَدْ كَانَتْ لَكُمْ اُسْوَةٌ حَسَنَةٌ فِيْٓ اِبْرٰهِيْمَ

يقيناً شته دے ستاسو دپاره نمونه د تابعدارئے خائسته په ابراهيم عليه السلام

وَالَّذِيْنَ مَعَهٗ ۚ اِذْ قَالُوْا لِقَوْمِهِمْ اِنَّا بُرَءٰٓؤُا

او په هغه کسانو کښې چه د هغه سره وو کله چه دوی اُوئيل قوم خپل ته يقيناً مونږ بيزاره يو

مِنْكُمْ وَمِمَّا تَعْبُدُوْنَ مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ ۫

ستاسو نه او د هغه چانه چه تاسو ئې بندګي کوئے سيوا د الله تعالیٰ نه

كَفَرْنَا بِكُمْ وَبَدَا بَيْنَنَا وَبَيْنَكُمُ الْعَدَاوَةُ

انکار کوؤ ستاسو د طريقې نه او ښکاره ده په مينځ زمونږ او ستاسو کښې دُشمني

وَالْبَغْضَآءُ اَبَدًا حَتّٰى تُؤْمِنُوْا بِاللّٰهِ

او کينه هميشه تر دے پورے چه ايمان راوړئے تاسو په الله تعالیٰ

سک په دے کښې جواب سوال دے يعنی که اوپلے شی چه د خپلو نو رشته دارانو سره براءت کول داخو بے دينی ده نو جواب او شو چه داخو دين د ابراهيم عليه السلام دے چه هغه او ملګرو د هغه د مشرکانو نه براءت کړے وو اګر چه د هغوی پلاران او اولاد وغيره وو نو د هغوی اقتداء کول لازم دی۔

اُسْوَةٌ حَسَنَةٌ تفسير د دے په سورة احزاب کښې تير شوے دے۔

وَالَّذِيْنَ مَعَهٗ مراد د دے نه د هغه تابعداران وو او دا رنګ ټول رسولان او اولياء مراد دی ځکه چه ټول رسولان د هغه ملګری دي په دين کښې او په براءت کولو کښې د دين د دشمنانو نه۔ اِنَّا بُرَءٰٓؤُا مِنْكُمْ يعنی تاسو سره زمونږ هيڅ تعلق نيشته نه خپلولی کول نه دوستانه کول نه غم ښادی کول۔

وَمِمَّا تَعْبُدُوْنَ مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ يعنی هغوی ته مونږ هيڅ حق د معبوديت نه ورکوؤ عبادت پذيه ماليه هغوی لره نه کوؤ۔

كَفَرْنَا بِكُمْ دا علت د ماقبل دے يا تفسير د براءت دے۔ كُفْرُ په معنیٰ لغوی سره دے يعنی انکار کول۔ يعنی انکار کوؤ مونږ ستاسو د معبودانو او ستاسو د دين د حقانيت نه يا ستاسو سره د تعلق ساتلو نه۔ ( پاتے په بل مخ )

وَحْدَهٗۤ اِلَّا قَوْلَ اِبْرٰهِيْمَ لِاَبِيْهِ لَاَسْتَغْفِرَنَّ

چه يو دے (په معبوديت کښې) مګر وينا دَ ابراهيم عليه السلام پلار خپل ته ضرور به زه بخنه غواړم

لَكَ وَمَآ اَمْلِكُ لَكَ مِنَ اللّٰهِ مِنْ شَيْءٍ ؕ

تا لره او دَ ما سره نه لرم ستا دَ پاره دَ عذاب دَ الله تعالىٰ نه هيڅ قسم -

رَبَّنَا عَلَيْكَ تَوَكَّلْنَا وَاِلَيْكَ اَنَبْنَا وَاِلَيْكَ

اے ربه زمونږه په تا باندے مونږ ځان سپارلے دے او خاص تا ته مونږ راګرځو په بندګے سره او خاص تا ته

الْمَصِيْرُ ۞ رَبَّنَا لَا تَجْعَلْنَا فِتْنَةً لِّلَّذِيْنَ

ګرځيدل دي دَ پاره دَ جزاء - اے ربه زمونږ مه ګرځوے مونږ ازمايښ دَ پاره

وَبَدَا بَيْنَنَا دا هم داخل دے په تفسير دَ براءت کښې. او لفظ دَ بدا دليل دے چه دَ دے دُشمنۍ اظهار کول لازم دي دَ دے وجے الْعَدَاوَةُ ئے مخکښې راوړو. عداوت په معنیٰ دَ عملی دُشمنۍ کولو او الْبَغْضَآءُ په زړه کښې کينه ساتل دي. او دينه بغض فی الله ويلے کيږي چه دا کمال ايمان دے.

حَتّٰى تُؤْمِنُوْا بِاللّٰهِ وَحْدَهٗۤ اشاره ده چه سبب دَ براءت او دشمنۍ کولو دَ توحيد نه انکار کول دي نو معلومه شوه چه دَ موحد سره براءت کول حرام دي. هما هجران کول دَ يو معصيت دَ وجے نه جائز دي ليکن دَ براءت او دَ هجران کولو په مينځ کښې فرق دے. براءت کول په مشرک پورے خاص دي لکه سورة توبه سـ۱ سـ۳ او سورة انعام سـ۱۹ سـ۷۸ سورة هود سـ۳۵ سـ۵۴.

اِلَّا قَوْلَ اِبْرٰهِيْمَ دا استثناء متصله ده دَ لفظ دَ اُسْوَةٌ نه يا دَ لفظ ابراهيم نه. يعني دَ ابراهيم عليه السلام اقتداء په ټولو اقوالو او افعالو دَ هغه کښې ضروري ده مګر په دے قول کښې تابعداري مه کوئے يعني دَ مشرک دَ پاره دَ استغفار وعده مه کوئے او استغفار ورله مه غواړئے او هغه چه استغفار غوښتلو دَ هغے تفصيل په سورة توبه سـ۱۱۴ کښې تير شوے دے او دا قول دَ ابراهيم عليه السلام په سورة مريم سـ۴۷ کښې ذکر شوے دے. او قرطبي ويلے دي چه دا ايت دليل دَ په فضيلت دَ نبي صلى الله عليه وسلم په ټولو انبياؤ عليهم السلام باندے ځکه چه په اتباع دَ ابراهيم عليه السلام کښې استثناء شته او اتباع دَ نبي

كَفَرُوْا وَاغْفِرْ لَنَا رَبَّنَا ۚ اِنَّكَ اَنْتَ الْعَزِيْزُ

دَ كافرانو او بخنه اوكړے مونږ ته اے ربه زمونږ يقيناً ته خاص ته زورآور

الْحَكِيْمُ ⑤ لَقَدْ كَانَ لَكُمْ فِيْهِمْ اُسْوَةٌ

حكمتونو والا يے - يقيناً شته ستاسو دَ پاره په دوى كښ نمونه دَ تابعدارے

صلّی اللّٰه علیه وسلم کښ استثناء نیشته دے - وَمَآ اَمْلِكُ لَكَ' اه داهم په قول ابراهیم کښ داخل دے حاصل دا چه دَ استغفار نه علاوه نور مدد ستا نشم کولے چه دَ عذاب دَ اللّٰه تعالیٰ نه دِ خلاص کړم - رَبَّنَا عَلَيْكَ په تقدیر دَ یقولون سره دے او په قول دَ ابراهیم علیه السلام او دَ هغه دَ ملګرو کښ داخل دے - یا قولو مقدر دے یعنی دَ مشرک قوم نه براءت کول او دَ هغوی سره دُشمنی کول خو مشکل عمل دے لیکن په اللّٰه تعالیٰ باندے په توکل کولو سره هر مشکل 'اسانیږی - اَنَبْنَآ په دے کښ اشاره ده چه براءت دَ دوی سره دَ اللّٰه تعالیٰ دَ وجے دے دَ ذاتی بغض دَ وجے نه نه دے - انابة طلب دَ حق دے بغیر دَ ضد او تعصب نه -

ڪ داهم دُعا دَ ابراهیم علیه السّلام ده یا امر دے په دے سره مؤمنانو دَ دے امت ته - فِتْنَةً مراد دَ دے نه عذاب دے او په معنیٰ دَ مفعول سره دے یعنی مُعَذَّبًا بِاَيْدِى الْكَافِرِيْنَ ( دَ کافرانو په لاس باندے مونږ له عذاب مه راکوئے ) یا فتنة په معنیٰ دَ امتحان او په شرک باندے پوخ پاتے کیدلو ته ویلے کیږی او ذکر دَ مسبب او مراد ترینه سبب دے چه هغه عذاب یا تسلط دَ کافرانو دے په مؤمنانو باندے یعنی اے ربه په مونږ باندے عذاب دَ خپل طرف یا دَ کافرانو دَ طرف نه مه راولے چه هغه به سبب اوګرځی دَ پاره دَ پخ دلو دَ کافرانو په شرک باندے یعنی هغوی به ګمان اوکړی چه مونږ په حقه باندے یونو دَ دے وجے نه په مؤمنانو باندے عذاب راغے یا زمونږ غلبه او تسلط ور باندے راغے - یا سبب په دے ځائے کښ دوستانه ساتل دی دَ کافرانو سره ( لکه چه په واقعه دَ حاطب رضی اللّٰه عنه کښ اوشوه ) یعنی زمونږ نه دَ کافرانو سره دَ دوستانے ساتلو کار مه بنکاره کوے چه دا په سبب شی ( پاتے په بل مخ )

حَسَنَةٌ لِّمَنْ كَانَ يَرْجُوا اللّٰهَ وَالْيَوْمَ

خائسته دَ پاره دَ هغه چا چه امید لری دَ ملاقات دَ اللّٰه تعالیٰ او دَ ورځ دَ

الْاٰخِرَ ۭ وَمَنْ يَّتَوَلَّ فَاِنَّ اللّٰهَ هُوَ الْغَنِيُّ

روستنئ . او چا چه مخ اوګرځوو نو یقیناً اللّٰه تعالیٰ هغه بے حاجته

الْحَمِيْدُ ⑥ عَسَى اللّٰهُ اَنْ يَّجْعَلَ بَيْنَكُمْ

ستائیلے شوی دے . امید دے چه اللّٰه تعالیٰ به جوړه کړی په مینځ ستاسو

وَبَيْنَ الَّذِيْنَ عَادَيْتُمْ مِّنْهُمْ مَّوَدَّةً ۭ

او په مینځ دَ هغه کسانو کښ چه تاسو ورسره دشمنی کوئے دَ دوی نه دوستانه

دَ دوی دَ فِتنے دَ پاره یعنی دوی به اُواځی چه مونږ په حقه یانه دے یو دَ دے وجے نه مؤمنان زمونږ سره دوستانه ساتی .

وَاغْفِرْ لَنَا یعنی زمونږ نه که داسے عملونه سرزد شویؐ چه سبب دَ عذاب وی نو دَ هغے راته مغفرت اوکړے بغیر دَ عذاب نه .

سه دا ئے دوباره ذکر کړو . یو وجه دَ تکرار دا ده چه په دے کښ قید ئے اولګوو دَ لِمَنْ كَانَ يَرْجُوا اللّٰهَ او چه دا اقتداء په صحیح عقیده اونیت سره پکار ده هغه وخت به فائده ورکوی .

دویمه وجه دا ده چه مخکښ حکم دَ اقتداء وؤ په براءت عن المشرکین کښ فقط او په دے کښ ترغیب دے په اقتداء سره په ټول ملتِ ابراهیمیه کښ چه پوره توحید دے او دَ دے وجے نه دلته ئے دَ تاکید دَ پاره لام دَ قد سره یو ځائے ذکر کړو او لمن کان یرجوا اللّٰه تفسیر په سورة احزاب کښ تیر شوی دے .

وَمَنْ يَّتَوَلَّ یعنی چا چه اعراض اوکړو دَ اقتداء دَ ابراهیم علیه السلام نه یعنی براءت دَ مشرکانو نه نه کوی او دَ هغوی سره عداوت نه ښکاره کوی نو دَ ځان نه ضرر او رسوؤ ځکه چه اللّٰه تعالیٰ خو غنی ذات دے .

وَاللّٰهُ قَدِيْرٌ ؕ وَاللّٰهُ غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ ۞

او اللہ تعالیٰ قدرت والا دے او اللہ تعالیٰ بخنہ کوونکے رحم کوونکے دے۔

لَا يَنْهٰىكُمُ اللّٰهُ عَنِ الَّذِيْنَ لَمْ

نہ منع کوی تاسو لرہ اللہ تعالیٰ دٔ هغه کسانو نه چه نه ئے دے کړے

يُقَاتِلُوْكُمْ فِي الدِّيْنِ وَلَمْ يُخْرِجُوْكُمْ

جنگ تاسو سره په دین اسلام کښ او نه ئے ویستلی ئے تاسو

مِّنْ دِيَارِكُمْ اَنْ تَبَرُّوْهُمْ وَتُقْسِطُوْٓا

دٔ کورونو ستاسو نه چه نیکی کوئے تاسو دٔ هغوی سره او ورکوئے حق په انصاف سره

سے دٔ دے ایت نه دویم باب دٔ سورت دے تر اخر پورے۔ په دے کښ اول تسلی ده په لرے کولو کد دُشمنئ بیا تقسیم دٔ کافرانو دے د دؤ قسمونو نه اول قسم سره تعلق دنیوی جائز دے او دٔ دویم قسم سره مطلق تعلق ساتل منع دی۔ بیا دوه قانونه دی دٔ پاره دٔ دخول دٔ زنانو په اسلام کښ اول قانون په وخت دٔ مصالحت پورے خاص دے او دویم عام دے او په اخری ایت کښ بیا دعویٰ دٔ سورت ذکر کوی۔

په دے (رک) کښ تسلی ده مؤمنانو ته روستو دٔ امر کولو دٔ براءت نه کافرانو سره (چه دشمنان دٔ دین دی) اشاره ده چه براءت کول چه په حکم دٔ اللہ تعالیٰ سره او دٔ اللہ تعالیٰ دٔ پاره وی نو بنهٔ نتیجه ورکوی۔ عَسٰی دا لفظ اګر چه امید دٔ پاره وی لیکن اللہ تعالیٰ خو امید و نو لرلو نه پاک دے دٔ دے وجے دا په معنیٰ دٔ تحقیق سره دے خو دا تعبیر ئے دٔ دے وجے نه ذکر کړو چه مخاطبین دِ دٔ دے امید اولری او دا وعده اللہ تعالیٰ په فتح مکه کښ پوره کړه ډیر سخت کافران مسلمانان شول او دٔ دے وعدے پوره کیدل دٔ اللہ تعالیٰ دٔ طرف نه په سورة العمران ۱۰۳ او سورة انفال ۶۳ کښ ذکر دی۔ وَاللّٰهُ قَدِيْرٌ قادر دے په انقلاب دٔ زړونو دٔ کفر نه ایمان ته۔

وَاللّٰهُ غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ یعنی دغه کافرانو ته په سبب دٔ توبے دٔ دوی بخنه کوی ځکه حدیث کښ راغلے دی چه په اسلام سره ټول ګناهونه معاف شی۔

إِلَيْهِمْ ۚ إِنَّ اللَّهَ يُحِبُّ الْمُقْسِطِينَ ﴿٨﴾ إِنَّمَا

هغوی ته یقیناً الله تعالیٰ مینه کوی دَ انصاف کوونکو سره (په حق ورکولو کښ) . یقیناً

يَنْهَاكُمُ اللَّهُ عَنِ الَّذِينَ قَاتَلُوكُمْ

منع کوی تاسو لره الله تعالیٰ دَ هغه کسانو نه چه جنګ کوی تاسو سره

فِي الدِّينِ وَأَخْرَجُوكُمْ مِنْ دِيَارِكُمْ

په دین کښ او و یستلے ئې تاسو دَ کورونو ستاسو نه

وَظَاهَرُوا عَلَىٰ إِخْرَاجِكُمْ أَنْ تَوَلَّوْهُمْ ۚ

او امداد ئې کړے دے په ویستلو ستاسو باندے چه دوستانه کوئے تاسو دَ هغوی سره

ف په دے ایت کښ دَ کافرانو او مشرکینو هغه قسم ذکر کوی چه هغوی په مؤمنانو باندے هیڅ ظلم نه دے کړے نو دَ دوی سره دنیوی تعلقات په بِرّ او قِسط ورکولو سره جائز دی اګرچه موالات ورسره منع دے او دا حکم اوس هم جاری دے لکه چه ابن جریر په تفصیل سره ذکر کړے دی او رد ئې کړے دے په هغه چا باندے چه دے حکم ته منسوخ وائې او دا رنګ قرطبی هم دَ اکثر مفسرینو قول ذکر کړے دے چه دا ایت محکم دے.

أَنْ تَبَرُّوهُمْ دا بدل دے دَ الذین نه. دَ بِرّ نه مراد دنیوی او انسانی حسن سلوک کول او چه هغوی سره قرابت دَ نسب وی نو صِله رحمی ساتل مراد دی لکه حدیث دَ اسماء بنت ابی بکر رضی الله عنها کښ راغلے دی چه نبی صلی الله علیه وسلم هغې ته اجازت ورکړے وو چه دَ مور سره صله رحمی اوکړه کله چه مور ئې مشرکه وه.

وَتُقْسِطُوا إِلَيْهِمْ دَ اقساط نه مراد دَ مال څه حصّه ورکول په طور دَ احسان یا دَ صله رحمئ سره دی عدل کول مراد نه دے ځکه عدل په مؤمن باندے دَ هر کافر سره واجب دے او په بِرّ او اقساط کښ هغوی ته دعوت دَ توحید او سنت هم داخل دے په نرمه لهجے سره. او دَ دے ایت په حکم کښ اهل ذمه کافران داخل دی او دا رنګ هغه زنانه او بوډاګان او بچی دَ کافرانو چه قتال نه شی کولے هغه هم داخل دی.

اَلْمُقْسِطِيْنَ هغه کسان چه په برّ او احسان کولو سره اراده لري چه ظلم ختم شي او عدل قائم شي۔

۹ په دے ایت کښ دویم قسم دَ کافرانو ذکر کوی چه دَ هغوی سره هر قسم احسان او موالات کول حرام دی او هغه مقاتلین ظالمان دی۔ او دَ دوی دشمنی په درے طریقو سره ښکاره ده قتال کول دَ مؤمنانو سره ، دَ وطن نه ویستل، او نورو دشمنانو سره مدد کول په دے درے واړو کښ اگرچه یو عمل موجود وی نو هم په دے قسم کښ داخل دے۔

اَنْ تَوَلَّوْهُمْ دا بدل دے دَ الذین نه۔ مراد دَ ولایت نه هغوی سره مطلق تعلق ساتل دی که دنیوی وی او که دینی وی دا ټول حرام دی۔ او دا سے په سورة العمران ۲۸ او سورة مائده ۵۱ کښ تیر شوی دی۔

اَلظّٰلِمُوْنَ په مقابل دَ اَلْمُقْسِطِيْنَ کښ دے یعنی دوی ظلم کوی او ظلم سره مدد کوی۔

لَّهُمْ وَلَا هُمْ يَحِلُّونَ لَهُنَّ ۖ وَآتُوهُم مَّا

دوی لره او نه دوی حلال دی هغوی لره . او ورکوئے دوی ته هغه

أَنفَقُوا ۚ وَلَا جُنَاحَ عَلَيْكُمْ أَن تَنكِحُوهُنَّ

خرچ چه کړے وی هغوی (په زنانو باندے) او گناه نیشته په تاسو باندے چه نکاح اوکړئے تاسو دَ هغوی سره

إِذَا آتَيْتُمُوهُنَّ أُجُورَهُنَّ ۚ وَلَا تُمْسِكُوا

کله چه ورکوئے تاسو مهرونه دَ هغوی او مه راټینگوئے

بِعِصَمِ الْكَوَافِرِ وَاسْأَلُوا مَا أَنفَقْتُمْ

نکاحونه دَ کافرو ښځو او غواړئے تاسو هغه چه خرچ کړیوی تاسو

وَلْيَسْأَلُوا مَا أَنفَقُوا ۚ ذَٰلِكُمْ حُكْمُ اللَّهِ ۖ

او هغوی دِ هم غواړی هغه چه هغوی خرچ کړے وی . دا فیصله دَ اللّٰه تعالیٰ ده

يَحْكُمُ بَيْنَكُمْ ۚ وَاللَّهُ عَلِيمٌ حَكِيمٌ ⑩

فیصله کوی په مینځ ستاسو کښ او اللّٰه تعالیٰ عالم دے په هرڅه حکمتونو والا دے .

سلہ هرکله چه حکم اوکړیشو په براءت دَ کافرو سره په اول دَ سورت کښ نو تقاضا دَ براءت دادہ چه دَ کافرانو او مؤمنانو په مینځ کښ تعلق دَ نکاح هم ختم کړے شی نو په دے ایت کښ دا حکم ذکر کوی .

او حاصل دَ دے ایت دا دے اول امتحان دَ مهاجراتو، دویم کافرانو ته واپس کول، دریم حرمت دَ نکاح دَ مؤمنے زنانه په کافر ناریته باندے او برعکس هم، ځلورم دَ مشرکانو مهر او مال واپس کول، پنځم مشرکے زنانه دَ نکاح نه ویستل، شپږم دَ مشرکانو نه خپل مالی حق طلب کول . او سبب دَ دے احکامو دا وو چه په صلح حدیبیه کښ یو شرط دا مقرر کړے شو چه دَ مشرکانو نه څوک مؤمنانو ته راشی (هجرت اوکړی) نو هغه به کافرانو ته واپس ورکیدیشی .

وَإِنْ فَاتَكُمْ شَيْءٌ مِّنْ أَزْوَاجِكُمْ إِلَى الْكُفَّارِ

اوکه چرے پاتے شی ستاسو څه مال دَ بیبیانو ستاسو نه کافرانو ته

نو هرکله چه په دغه وخت کښ دَ مکے نه بعض زنانو هجرت اوکړو مدینے منورے ته نو کافرانو دَ ښځو دَ واپسئ مطالبه اوکړه نو الله تعالیٰ دا ایت نازل کړو او په دے کښ تشریح اوشوه چه شرط دَ واپسئ په نارینو پورے خاص دے زنانو ته شامل نه دے دَ دوه وجونه اول دا چه دَ ښځو نکاح دَ مشرک سره ختم شو نو واپس کولو کښ نقصان دے دویم دا چه ښځو کمزورے دی هسے نه چه کافران ئے مرتد ے کړی۔
فَامْتَحِنُوهُنَّ هرکله چه دَ هجرت دَ پاره ډیر اسباب دی او خصوصًا دَ زنانه دَ هجرت دَ پاره کله سبب وی دَ خاوند سره اختلاف او کله محبت دَ بل سړی سره۔ اوکله خاوند نه ضرر ورکول دَ دے وجے نه امتحان کول ضروری دی چه معلوم شی چه دَ دوی هجرت فقط دَ پاره دَ ایمان دے۔ او دَ امتحان قرطبی درے طریقے ویلے دی یو دغه چه روستو ذکر کیږی په ایت دَ بیعت کښ او دویم هغه زنانه له قسم ورکول چه دِے دا هجرت دَ هیڅ دنیوی او نفسانی غرض دَ پاره نه دے کړے۔ دریم دا چه دَ کلمے دَ شهادت ورته امر اوکړی چه دا اوایه او په زړه سره په دے یقین اوکړه۔ اَللّٰهُ اَعْلَمُ بِإِيمَانِهِنَّ اشاره ده چه دے امتحان اخستلو کښ فائده دا ده چه ستاسو علم حاصل شی الله تعالیٰ خو عالم دے۔ فَإِنْ عَلِمْتُمُوهُنَّ مؤمنات، دَ دے نه مخکښ عبارت کښ تقدیر دے یعنی که معلومه شوه چه دَ دوی هجرت دَ پاره دَ ایمان نه دے نو واپس کړے دوی لره۔ او که علم درته حاصل شو چه دوی مؤمناتے دی په ذریعه دَ قسم او دَ شهادت دَ ژبے سره۔ او په نورو علاماتو سره هم ظن غالب حاصلیږی لیکن په شرع کښ په دے باندے هم اطلاق دَ علم کیدے شی لکه په سورة یوسف ۸۱ کښ۔ فَلَا تَرْجِعُوهُنَّ اه دا دلیل دے چه علت دَ فراق ایمان دے صرف هجرت نه دے۔ لَا هُنَّ حِلٌّ لَّهُمْ اه په ابتدا دَ اسلام کښ نکاح دَ مشرکانو دَ مؤمناتو سره جائز وو دَ دے وجے نه دَ نبی صلی الله علیه وسلم بعض لونړه مشرکانو ته واده شوے وے نو په دے ایت سره دَ دے حرمت راغے۔ وَاٰتُوهُمْ مَّا اَنْفَقُوا دا حکم خاص دے په حالت دَ صلح په مینځ دَ مؤمنانو او کافرانو کښ لکه په وخت دَ صلح (پاتے په بل مخ)

فَعَاقَبْتُمْ فَاٰتُوا الَّذِيْنَ ذَهَبَتْ اَزْوَاجُهُمْ

| بیا نو ستاسو نمبر چه راشی | نو ورکړئ هغه کسانو ته | چه تلی دی | بیبیانی د هغوی |
|---|---|---|---|

مِّثْلَ مَآ اَنْفَقُوْا ط وَاتَّقُوا اللّٰهَ الَّذِيْٓ اَنْتُمْ

| پشان د هغه چه دوی خرچ کړے دی | او ویره کوئ د الله تعالیٰ نه هغه ذات دے چه تاسو |
|---|---|

بِهٖ مُؤْمِنُوْنَ ⑪ يٰٓاَيُّهَا النَّبِيُّ اِذَا جَآءَكَ

| په هغه باندے ایمان لری - | اے نبی (صلی الله علیه وسلم) کوم وخت چه راشی تا ته |
|---|---|

د حدیبیه کښ دا قول د قتادهؒ دے او دا صحیح دے او مراد د انفقوا نه هغه مهر دے چه خاوند ورکړے وی او پیشګی نفقه ده -

وَلَا جُنَاحَ عَلَيْكُمْ اَنْ تَنْكِحُوْهُنَّ یعنی اګرچه مشرک خاوند دے ښځے ته طلاق نه وی ورکړے لیکن نکاح د دوی مات شوے نو روستو د استبراء یا د عدت تیریدلو نه د مسلمان سره نکاح کول جائز دی -

وَلَا تُمْسِكُوْا بِعِصَمِ الْكَوَافِرِ یعنی لکه چه نکاح د مؤمنے د کافر سره مات شو نو دا رنګ نکاح د کافرے ښځے د مؤمن سره هم ختم شو - عِصَم جمع د عصمت ده ساتنے ته ویلے کیږی او مراد د دے نه نکاح دے یعنی که د یو مؤمن ښځه کافره په دار حرب کښ پاتے شی او سړے هجرت اوکړی یا د ده په نکاح کښ روستو د هجرت کولو نه یو مشرکه ښځه وی چه ایمان نه راوړی نو نکاح د دوی ختم شو - او اتفاق د مفسرینو دے چه مراد د دے نه مشرکه غیر کتابیه ده او د کتابیے حکم د دے نه خاص کړے شوے دے په سورة مائده ۵ کښ -

وَاسْئَلُوْا مَآ اَنْفَقْتُمْ الخ دا خاص دے په زمانه د عهد او د صلح پورے بالاتفاق او اشاره ده چه دا حق د جانبینو دے د وجے د عهد نه -

ذٰلِكُمْ حُكْمُ اللّٰهِ دا د تاکید د پاره دے چه د دے تابعداری په مؤمنانو او کافرانو دواړو باندے لازم ده -

۱۱ دا متعلق دے د مخکنی حکم سره یعنی مهر د مرتدے زنانه د کافرانو نه اوغواړئ نو که چرے هغوی انکار اوکړو د مهر د واپس کولو نو هر کله چه تاسو ته مال فئ یا غنیمت د دغه کافرانو نه حاصل کړئ نو د تقسیم نه مخکښ دغه سړی ته (چه زنانه ئے مرتده شوی ده او کافرانو د هغے مهر نه دے واپس

کړے) مهر مثل دَ ښځے دَ هغه ورکړے دَ مجاهد او قتاده نه روایت دے چه دا حکم عام دے که د غه کافرانو سره عهد وی او که نه وی. او بعضو مفسرینو خاص کړے دے په وخت دَ عهد پورے.

فَعَاقَبْتُمْ دا دَ عقاب یا عقوبت نه ماخوذ دے سزا ورکولو ته ویلے کیږی مراد دَ دے نه دَ هغوی سره جنګ او قتال کول دی کله چه عهد ورسره نه وی کړے یا عهد مات کړی لکه سورة حج سلا کښ. عاقب په معنیٰ دَ قتال سره دے یا دَ عقبة نه ماخوذ دے نوبت او نمبر راتللو ته ویلے کیږی معنیٰ دا چه ستاسو نمبر او نوبت راشی په کافرانو باندے نو مراد دا دے چه دَ دغه کافرانو زنانه تاسو ته راشی او مهر دَ ځان سره راوړی نو دغه مهر هغه کافرانو ته واپس مه ورکوئے (اګرچه عهد وی) بلکه هغه مؤمن له ئے ورکړے چه دَ هغه دَ ښځے مهر هغوی ته پاتے شوے وو نو بنا ده په اول تفسیر باندے ایت دَ هغه کافرانو په باره کښ دے چه عهد ورسره نه وی شوے یا عهد ئے مات کړے وی او بنا په په دویم تفسیر په عهد والو پورے خاص دے. اَنْتُمْ بِهٖ مُؤْمِنُوْنَ یعنی دَ ایمان مقتضیٰ تقویٰ ده او مراد دَ تقویٰ نه طاعت دَ اوامرو او نواهیو دے.

وَاسْتَغْفِرْ لَهُنَّ اللّٰهَ ۭ اِنَّ اللّٰهَ غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ ⑫

او بخنه غواړه دوی لره د الله تعالیٰ نه یقیناً الله تعالیٰ بخنه کوونکے رحم کوونکے دے۔

۱۲ دا قانون تفسیر دَ فَامْتَحِنُوْهُنَّ دے یعنی مراد دَ امتحان نه دا بیعت دے ځکه چه په حدیث دَ بخاری کښ راغلی دی چه نبی صلی الله علیه وسلم به دَ مهاجراتو امتحان کوؤ په دے ایت سره نو چا به چه اقرار اوکړو په دے شرطونو بانَدے نو رسول الله صلی الله علیه وسلم به ورته اویل چه ما تا سره بیعت اوکړو په خبرو سره او لاس به ئے دَ هغے په لاس کښ نه ورکوؤ۔ بیا دا حکم په مهاجراتو پورے خاص نه دے بلکه زنانه به چه ایمان راوړو نو دَ هغے دَ ایمان دَ پاره دا شرطونه وؤ۔ او په حدیث دَ بخاری کښ دی چه نبی صلی الله علیه وسلم دَ عید الفطر دَ خطبے نه روستو زنانو ته راغے نو په دے ایت سره ئے ورته خطاب اوکړو نو ټولے زنانه چپ شوے یوے صرف ورته جواب ورکړو۔
او په بل حدیث صحیح سره ثابت دی چه نبی صلی الله علیه وسلم دا سے بیعت دَ نارینو نه هم اخستلے وؤ۔ او دا بیعت مشتمل دے په شپږ خبرو بانَدے۔
لَا يُشْرِكْنَ بِاللّٰهِ شَيْئًا دا خو منافی دَ ایمان دے په دے سره ایمان قطعًا زائل کیږی دَ دے وجے نه دا ئے دَ ټولو نه مخکښ ذکر کړو او هر کله چه څوک پیدے نه پوهیږی نو لازم ده چه دَ شرک دَ معنی او اقسامو پوره تفصیل هغه ته اوکړے شی۔ (تنبیه) نن زمانه کښ دا سے ډیر پیران پیدا شویدی چه پخپله په شرک کښ اخته وی او نور خلق هم په شرک کښ اچوی او ډیر جاهلان ئے گمراه کړے دی دَ هغوی نه اجتناب کول فرض دی۔ دویمه خبره دا ده چه ۔۔۔
وَلَا يَسْرِقْنَ پردی مالونه او دَ خاوند دَ مال نه په هم غلا نه کوی هاں که چرے یو خاوند خپلے زنانه یا اولاد ته نفقه نه ورکوی نو زنانه له جائز دی چه دَ خپل حق موافق دَ هغه دَ مال نه څه خیز پټ کړی دا په حدیث دَ هنده (بنځه دَ ابوسفیان) کښ راغلے دی۔ دریمه خبره وَلَا يَزْنِيْنَ غلا کول متعدی گناه دے او زنا کول ذاتی گناه دے دَ دے وجے نه غلا ئے مخکښ ذکر کړے ده۔
څلورمه خبره وَلَا يَقْتُلْنَ اَوْلَادَهُنَّ قتل ناحق خو مطلقًا حرام دے لیکن زنانه اکثر په نور قتل بانَدے قدرت نه لری ما سیوا دَ بچو دَ قتل کولو نه دَ دے وجے نه دَ دے تخصیص ئے اوکړو او مراد دَ دے نه قتل دَ عام اولاد دے دَ وجے دَ

يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لَا تَتَوَلَّوْا قَوْمًا غَضِبَ اللّٰهُ

اے ایمان والو دوستانه مه کوئ د هغه قوم سره چه غضب کړيدے الله تعالی

فقراو لوګے نه لکه چه په سورة انعام ۱۵۱ او سورة اسراء ۳۱ کښ ذکر دی او قتل د لونړو
پکښ هم داخل دے - او مفسر الوسی ویلی دی چه کیدیشی چه دا قتل شامل وی
اسقاط حمل ته روستو د ساه اغستلو نه او په جاهلیت کښ غلا او زنا ډیر وو په
نسبت د قتل د اولاد نو هغه یې مخکښ ذکر کړل - پنځمه خبره وَلَا يَأْتِيْنَ بِبُهْتَانٍ
يَّفْتَرِيْنَهٗ بَيْنَ اَيْدِيْهِنَّ وَاَرْجُلِهِنَّ په دیکښ د مفسرینو ډیر اقوال دی اول دا
چه مراد د بهتان نه موندلے شوے څوکے دے چه خاوند ته یې نسبت کیږی
او ولد په وخت د پیدائش کښ د مور د لاسو او خپو په مینځ کښ پروت وی.
دویم دا چه مراد د دے نه ولد د زنا دے چه اول خو به یې قتل کوو او که د قتل
نه بچ شو نو بیا به یې خاوند ته نسبت کوو - او حمل په خیټه کښ وی او خیټه په
مینځ د لاسو او خپو کښ ده د دے وجے نه زنا او قتل د ولد او بهتان یې په ترتیب
سره ذکر کړل - دریم دا چه مراد د بهتان نه په چا باندے د یو ګناه بد نامه لګول
دی او د ځان نه یې جوړ دی دلیل ورسره نه وی نو د دے نه تعبیر کیږی په
بین ایدیهن او ارجلهن سره - او په دے کښ دروغ غیبت چغلی کول تهمت
د زنا دا ټول داخل دی - شپږمه خبره وَلَا يَعْصِيْنَكَ فِيْ مَعْرُوْفٍ دوه معنی دی
یو معنی خاص ده هغه مقابل د منکر ده یعنی هغه شئ چه په شرع سره د هغے
حسن ثابت وی نو ماقبل کښ منکرات او منهیات پنځه ذکر شول او په معروف
کښ مامورات مراد دی او هغه ډیر دی د دے وجے نه یې اجمالاً ذکر کړل
دویمه معنی عامه ده هغه دا چه هر هغه خیز چه د هغے حکم په شرع سره
معلوم وی چه جائز یا ناجائز دے په دے معنی سره مامورات او منهیات ټول شامل دی.
دلته دویمه معنی غوره ده او د دے د عموم د لاندے مفسرینو امور د جاهلیت
لیکلی دی - هغه ویرکول په مړی باندے ، د ځان نه غم ښوکول ، مخ ټکول ، د ځان
نه جامے شلول ، ویښته لګول خالونه لګول ، د پردی سړی سره د زنانه خبرے
کول بغیر د ضرورت نه نو دے ټولو ته دا لفظ شامل دے -

فائده ۱:- الوسی او قاسمی لیکلی دی چه معروف لفظ کښ اشاره ده چه د هیڅ
مخلوق طاعت بغیر د معروف نه جائز نه دے ( باقی په بل مخ )

عَلَيْهِمْ قَدْ يَئِسُوا مِنَ الْآخِرَةِ كَمَا يَئِسَ

په هغوی باندے یقیناً نا امیده دی دوی د آخرت نه لکه چه نا امیده دی

الْكُفَّارُ مِنْ أَصْحٰبِ الْقُبُوْرِ ﴿۱۳﴾

کافران د دوباره ژوند د قبرونو والو نه۔

فائده ع۲: قرطبی لیکلی دی چه دلته دَ منهیاتو ذکر یئے په تفصیل سره اوکړو او دَ معروف تفصیل ئے نه دے کړے ځکه چه انسانان او خصوصاً په زنانو کښې ارتکاب دَ دے منهیاتو ډیر دے په نسبت دَ ترک دَ مامورانو۔

س۱۳ دا آیت متعلق دے دَ ابتداء دَ سورت سره چه دعویٰ دَ سورت ده۔ په ابتداء دَ سورت کښې دَ عوامو مشرکانو نه براءت وؤ او په دے آیت کښې دَ کتابیانو کافرانو نه براءت دے۔

غَضِبَ اللّٰهُ عَلَيْهِمْ مراد دَ دوی نه کتابیان کافران دی۔

قَدْ يَئِسُوا مِنَ الْآخِرَةِ مضاف محذوف دے یعنی دَ خیر او دَ ثواب دَ آخرت نه نا امیده دی دَ وجے دَ عناد دَ دوی نه دَ حق سره یعنی سرهٔ دَ علم انکار کوی دَ عناد دَ وجے نه نو خه پوهیږی چه زمونږ په آخرت کښې اجر او ثواب نیشته۔

كَمَا يَئِسَ الْكُفَّارُ مِنْ أَصْحٰبِ الْقُبُوْرِ۔ مِنْ بیانیه دے یعنی هغه کافران چه مړه شویدی نو هغوی یقیناً دَ ثواب دَ آخرت نه نا امیده شویدی یا هغوی دَ ژوندنو نه نا امیده دی چه دوی به ورته خه خیر اورسوی۔

یا مِنْ دَ پاره دَ ابتداء دے او مضاف محذوف دے یعنی من بَعْثِهِمْ معنیٰ داده لکه چه نا امیده دی ټول کافران دَ دوباره ژوند دَ اصحاب قبور نه۔

او بعض مشرکینو عنادیانو دَ دے آیت نه دلیل نیولے چه دَ مړو دَ خیر رسولو نه نا امیدی کول دَ کافرانو عقیده ده یعنی قبرونو والا خیر او شر رسولے شی جواب داده چه دا تحریف دَ قرآن دے دَ درے وجو نه اوله وجه داده چه دَ سلف صالحینو او تمام مفسرینو نه دا معنیٰ نقل نیشته او علماؤ اتفاق کړے دے چه دَ قرآن داسے تفسیر کول چه دَ سلف صالحینو نه نقل نه وی دا تحریف دے۔

دویمه وجه داده چه دا دَ نفس الامر (واقع) نه خلاف دے ځکه چه

کافران خو مړو معبودانو نه امید دَ نفع دَ خوف او دَ ضرر لري لکه مشرکین
مکه چه دَ هبل او لات و منات (کرچه مړه بزرګان وو) امیدونه ساتل
او هغوی ته په ځی حاجاتو کښ چغې وهلې۔
دریمه وجه الزامي ده چه اصحاب القبور نیکانو او بدانو ټولو ته شامل دي
نو ایا دَ بدانو بدکارو خلقو نه چه مړه شویدي هم امید دَ نفع ضرر
کیدے شي۔

الحمد لله۔ ختم شو تفسیر دَ سورة الممتحنة په توفیق دَ الله تعالی سره۔

---

سُوْرَةُ الصَّفِّ ۶۱ مَدَنِيَّةٌ ۱۰۹ بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ اٰيَاتُهَا ۱۴ رُكُوْعَاتُهَا ۲

سَبَّحَ لِلّٰهِ مَا فِي السَّمٰوٰتِ وَمَا فِي الْاَرْضِ ج

پاکی وائی الله تعالیٰ لره هغه څیزونه چه په اسمانونو کښ او هغه څیزونه چه په زمکه کښ دی

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

سورة الصف د يته سورة حواريين او سورة عيسىٰ هم ويلے شي۔

ربط دَ دے دَ ماقبل سره دا دے چه تیر شوی سورت کښ زجر وؤ مؤمنانو ته په غیر مناسب کارونو باندے نو په دے سورت کښ زجر دے په اقوالو غیر مناسبو باندے بله وجه دا ده چه په هغه سورت کښ منع وه دَ دوستانے دَ مشرکانو نه نو په دے سورت کښ ترقی ده چه دَ دوی سره جنگ او قتال اوکړئے۔ دریمه وجه دا چه په هغه سورت کښ دَ یهودیانو سره دَ براءت حکم وؤ نو په دے سورت کښ دَ یهودیانو قباحت ذکر کوی۔

دعویٰ دَ سورت۔ زجر دے په مخالفت دَ عمل دَ قول سره نه لکه سرهٔ دَ دعوے دَ ایمان نه دَ جهاد او قتال نه مخ کرځول او مسئله دَ توحید هم په اول کښ ذکر ده۔ او ترغیب دے جهاد ته په سره کښ۔

خلاصه دَ سورت۔ مختصره خلاصه دا ده چه په دے سورت کښ درے خطابات دی په یا ایها الذین امنوا سره په اول خطاب کښ زجر دے په ترک دَ قتال فی سبیل الله او ترغیب دے قتال ته او په دویم کښ بشارت اخرویه او دنیویه دے او په دریم کښ ترغیب دے چه په طریقه دَ حواریینو سره جهاد اوکړئے۔ او تفصیل دا دے چه اول دعوی دَ توحید ده بیا زجر دے په مخالفت دَ قول او دَ عمل بیا ترغیب دے قتال ته بیا دوه دلیلونه نقلیه دی اول دَ موسیٰ علیه السلام او دویم دَ عیسیٰ علیه السلام او تخویف دے په ذکر دَ حال دَ یهودیانو چه هغوی قتال فی سبیل الله پریخودے وؤ (او دا اذیت ورکول وؤ موسیٰ علیه السلام ته او زیغ وؤ دَ حکم دَ الله تعالیٰ نه) چه دَ هغوی په زړونو کښ ازاغت راغے۔ بیا ترغیب دے تابعدارئے دَ اخری

وَهُوَ الْعَزِيزُ الْحَكِيمُ ۞ يَا أَيُّهَا الَّذِينَ

او خاص الله تعالیٰ زورآور حکمتونو والا دے۔ اے

آمَنُوا لِمَ تَقُولُونَ مَا لَا تَفْعَلُونَ ۞

ایمان والو ولے وائیئ په ژبه هغه خبرے چه نه يئ کوئ (په عمل کښ)

رسول ته خصوصًا په قتال فی سبیل الله کښ او تاکید د ترغیب یئ ذکر کړیدے
په بشارت دعیسیٰ علیه السلام سره په باره د دے رسول کښ او زجر دے
په تکذیب باندے او زجر دے په افتراء باندے او زجر په اطفاء د نور د الله تعالیٰ
باندے۔ بیا ذکر کوی صداقت د رسول چه دے رالیږلے شویدے د پاره
د قتال فی سبیل الله۔ بیا بشارت اخرویه او دنیویه دے په باره د جهاد
کښ او په آخر کښ ترغیب دے نصرت او قتال فی سبیل الله تعالیٰ ته په
شان د حواریینو۔
تفسیر په سلے کښ ذکر د توحید دے په تعبیر د تسبیح سره۔ او په دیکښ
اشاره ده دفع کولو د اعتراض ته چه فائده د قتال راجع ده تاسو ته الله تعالیٰ
دیته محتاج نه دے ځکه چه هر قسم عیب او احتیاج نه دا سے پاک دے
چه آسمانونو او زمکو والا د هغه په پاک والی باندے گواهی کوی۔
او مَا فِي السَّمٰوٰتِ الخ شامل دے مکان او مکین او ظرف او مظروف دواړو
ته یعنی آسمانونه او زمکے سره د هغه خیزونو نه چه په دوی کښ دی تسبیح وائی
سلا دا اول خطاب دے مؤمنانو ته د درے خطابونه او مقصد په دیکښ
تیزی ورکول دی په قتال فی سبیل الله باندے او زجر دے په مخالفت
د قول او د عمل باندے او د دے مختلف طریقے دی اوله طریقه دا چه
په تیره زمانه کښ یو شخص یو کار نه وی کړے او دے وائی چه ما فلانے
کار کړے دے نو دیته دروغ ویلے کیږی۔ او دویمه طریقه په زمانه مستقبل
پورے متعلق ده یعنی که یو شخص او ائی چه زه به فلانے کار کوم او بیا ئے
او دا شامل دے وعده کولو د بندګانو د یو بل سره۔ او نذر کول په نوم د
الله تعالیٰ معلق وی او که مطلق وی او عهد کول د الله تعالیٰ سره لکه چه
اوائی چه قتال فرض شی نو زه به قتال کوم او هر کله راپاتے په بل مخ)

كَبُرَ مَقْتًا عِنْدَ اللّٰهِ اَنْ تَقُوْلُوْا مَا لَا

غټه وجه دَ غصې ده په نيز دَ الله تعالیٰ دا چه وايئ په ژبه هغه چه

تَفْعَلُوْنَ ۝۳ اِنَّ اللّٰهَ يُحِبُّ الَّذِيْنَ

عمل پرے نه کوئے ۔ يقيناً الله تعالیٰ مينه کوی دَ هغه کسانو سره

يُقَاتِلُوْنَ فِيْ سَبِيْلِهٖ صَفًّا كَاَنَّهُمْ بُنْيَانٌ

چه جنګ کوی په لار دَ الله تعالیٰ کښ صفونه صفونه ګوياچه دوی ديوال دے

چه فرض شی نو بيائے نه کوی۔ او دروغ او خلاف دَ وعدا او عهد نه دا ټول ګناهونه دی هاں په وفا دَ وعده کښ اختلاف دے دَ اهل علمو چه واجب ده او که مستحب ده قرطبي دَ هغے تفصيل کړے دے۔ او دا خصلتونه دَ منافقانو دی نو معلومه شوه چه مقصد په دے خطاب کښ منافقان دی او دَ قتال په باره کښ دَ مخالفت دَ عهد ذکر په سورة نساء ۷۷ او سوره محمد ۲۰ کښ تېر شوېدے۔ لِمَ تَقُوْلُوْنَ بِنا په اول باندے زجر په قول باندے دے يعنی دروغ ويل او دويمے طريقے سره دا زجر په عدم فعل باندے دے په قول باندے نه دے لکه په دے قول دَ الله تعالیٰ کښ اَتَاْمُرُوْنَ النَّاسَ بِالْبِرِّ وَتَنْسَوْنَ اَنْفُسَكُمْ۔ او دريمه طريقه دا ده چه مراد دا دے چه کوم فعل دَ انسان دَ قدرت نه بهر وی او دے وائی چه زه به دا فلانے کار کوم نو په دے معنیٰ سره زجر په قول باندے دے په شان دَ اولے طريقے۔

۳ په دے کښ تاکيد دے دَ زجر په پنځه وجوهو سره يو لفظ دَ كَبُرَ چه دا تعجب دے مِنْ غَيْرِ لَفْظِهٖ دويم لفظ مَقْتًا مقت سخت بغض او غضب ته ويلے کيږی او دا مغضوب دے په تمييز سره روستو دَ ابهام دَ كَبُرَ نه دريم عِنْدَ اللّٰهِ او دَ الله تعالیٰ په نيز چه سبب دَ بغض وی نو هغه ډير لوئے جرم وی څلورم اَنْ تَقُوْلُوْا فاعل دَ كَبُرَ دے يعنی نفس قول بے عمله خالص مقت دے او پنځم دا چه دا لفظ ئے مکرر راوړے دے۔ او په دواړو اياتونو کښ سخت زجر هغه عالمانو خطيبانو ته دے چه په علم باندے عمل نه کوی او نورو خلقو ته وعظ کوی۔

مَّرْصُوْصٌ ﴿۴﴾ وَاِذْ قَالَ مُوْسٰى لِقَوْمِهٖ

په یو بل کښې نښتي دي - او کوم وخت چه اُوویل موسیٰ علیه السلام قوم خپل ته

يٰقَوْمِ لِمَ تُؤْذُوْنَنِيْ وَقَدْ تَّعْلَمُوْنَ

اے زما قومه ولې خفه کوئ ما او حال دا چه یقیناً پوهیږئ تاسو

اَنِّيْ رَسُوْلُ اللّٰهِ اِلَيْكُمْ ؕ فَلَمَّا زَاغُوْٓا

چه زه رسول د الله تعالیٰ (رالیږلے شوے یم) تاسو ته نو هر کله چه دوی کاږه شول

سه په دے ایت کښې ترغیب دے قتال فی سبیل الله ته عملاً - او د دے ایت د اتصال نه معلومه شوه چه اول دوارو ایتونه په طریقه د تمهید عمومی سره وو او په دے کښې مقصد ئے ذکر کړو یعنی چه قول د اٰمنّا تاسو کړے دے نو د هغے د پاره عمل د قتال ضرور اوکړئ او دا د خطاب طریقه ده چه اول عمومی کلام ذکر کړے شی نو بیا خصوصی مقصد د هغے په مناسبت کښې ذکر کړے شی.

صَفًّا په معنی د مصطفین سره دے یا فعل د یصفّون حذف دے او دا حال دے او د دے نه بعض علماؤ دلیل نیولے دے چه جهاد پیاده غوره دے د جهاد د سورلئ نه او د دے نه معلومه شوه چه هیځ مجاهد له جائز نه دی چه بغیر د اذن د امیر او بغیر د ضرورته د صف نه اوځی.

كَاَنَّهُمْ بُنْيَانٌ مَّرْصُوْصٌ هغه دیوال چه کټے او خښتے د هغے په یو بل کښې اومښلے شی تر دے پورے چه چودو نه بند شی او هموار وی او مضبوط وی نو دا سے صف د قتال او صف د مونځ د جماعت ضروری دے چه د یو بل سره داسے جُخت وی چه په مینځ کښې فُرَجَات نه وی او د نعمان بن بشیر روایت امام بخاری نقل کړیدے چه مونږ به په صف کښې اوګے او ګیټئ د خپو د یو بل سره پیوست کولے - او دا حالت د صف دلالت کوی په اتحاد د مؤمنانو باندے او دارنګ په مضبوطوالی د قدمونو د هغوی په خپل ځایونو باندے او د دوستئ د مؤمنانو د یو بل سره -

أَزَاغَ اللَّهُ قُلُوبَهُمْ ۚ وَاللَّهُ لَا يَهْدِي

کاگه کړه الله تعالیٰ زړونه د دوی او الله تعالیٰ هدایت نه ورکوی

الْقَوْمَ الْفَاسِقِينَ ۞ وَإِذْ قَالَ عِيسَى ابْنُ

قوم ډیر نا فرمان ته . او کوم وخت چه اویل عیسیٰ ځوی

ف دا دلیل نقلی دے دَ موسٰی علیه السّلام نه چه موسٰی علیه السّلام دعوت توحید او جهاد ته ورکړے وو او دا رنګ په دیکښ تسلی ده نبی صلی الله علیه وسلم ته په دا سے طریقه چه دا منافقان چه مخالفت کوی دَ امر دَ قتال نه نو صبر کوه ځکه چه دا سے یهود یانو هم دَ موسٰی علیه السّلام دَ امر نه خلاف کړے وو او هغه صبر کړے دے . او دَ دے وجے حدیث دَ بخاری کښ راغلے دی چه هر کله یو منافق په تقسیم دَ غنیمتونو دَ حنین کښ په نبی صلّی الله علیه وسلّم باندے اعتراض اوکړو نو هغه او فرمائیل رحمت دَ الله تعالیٰ د دوی په موسٰی علیه السّلام باندے هغه ته دَ خپل قوم دَ طرف نه ډیر اذیتو نه رسیدلے وو لیکن هغه صبر کړے وو . او مضمون دَ دے ایت پشان دَ سورۃ احزاب ۶۹ دے - لِمَ تُؤْذُونَنِي بنی اسرائیلو موسٰی علیه السّلام ته ډیرے ایذا ګانے ورکړے وے لکه سورۃ نساء ۱۵۳ او اعراف ۱۳۸ او نورے واقعے هم په احادیثو او کتابونو دَ تفسیر کښ لیکلے دی لویه ایذاء هغه ده چه په سورۃ مائده ۲۴ کښ ذکر شویده یعنی انکار دَ قتال فی سبیل الله نه او دلته دا مراد واضح دے.

وَقَدْ تَعْلَمُونَ اه قد دَ پاره دَ تحقیق او دَ تاکید دے یعنی په ډیرو ایاتونو او معجزاتو سره تاسو ته یقیناً زما رسالت ثابت شوے دے۔

فَلَمَّا زَاغُوا سره دَ علم دَ حق نه انکار کول یا او ړیدل دیته زیغ ویلے کیږی دَ هغے پوره نخه په سورۃ العمران ۷ کښ تیره شویده ۔

أَزَاغَ اللَّهُ قُلُوبَهُمْ جزاء دَ جنس دَ عمل نه وی هر کله چه دوی دَ طاعت او دَ ایمان او دَ احترام دَ رسول او دَ قتال فی سبیل الله ته کاږه شول نو الله تعالیٰ دَ دوی په زړونو کښ شکوک ، شبهات ، حیرانتیا ، او ګمراهی پیدا کړه لکه په سورۃ نساء ۱۱۵ او سورۃ انعام ۱۱۰ کښ۔

مَرْيَمَ يٰبَنِيْٓ اِسْرَآءِيْلَ اِنِّيْ رَسُوْلُ اللّٰهِ

دَ مریم اے بنی اسرائیلو یقینًا زه رسول دَ الله تعالیٰ (رالیږلے شوے یم)

اِلَيْكُمْ مُّصَدِّقًا لِّمَا بَيْنَ يَدَيَّ مِنَ التَّوْرٰىةِ

تاسو ته تصدیق کوونکے دَ هغه کتاب چه زما نه مخکښې دے چه تورات دے

وَمُبَشِّرًاۢ بِرَسُوْلٍ يَّاْتِيْ مِنْۢ بَعْدِي اسْمُهٗٓ

او زیرے ورکوونکے یم په داسے رسول چه راځي به په ما پسے روستو نوم دَ هغه

اَحْمَدُ ۭ فَلَمَّا جَآءَهُمْ بِالْبَيِّنٰتِ قَالُوْا هٰذَا

احمد دے نو هر کله چه راورل ئے دوی ته ښکاره معجزات دوی اُویل دا

سِحْرٌ مُّبِيْنٌ ۝ وَمَنْ اَظْلَمُ مِمَّنِ افْتَرٰى

جادو ښکاره دے ۔ او څوک ډیر ظالم دے دَ هغه چا نه چه جوړ وی

اَلْفٰسِقِيْنَ دا فسق دَ عقیدے دے په قرینه دَ زیغ سره ځکه چه زیغ دَ عقیدے سره تعلق لري۔

سلا دا هم دلیل نقلی دے چه عیسٰی علیه السّلام تصدیق دَ تورات هم کړیدے لیکن بنی اسرائیلو دَ هغه نه زیغ اوکړو او دا رنګ بشارت ئے په اخری نبی سره هم ورکړے دے او دا بنی اسرائیل دَ هغه نه هم انکار کوی لکه چه په سورة اعراف ۱۵۷ او سورة العمران ۸۱ کښ هم دیته اشاره ده ۔ او په حدیث دَ مسند احمد کښ راغلی دی چه رسول الله صلّی الله علیه وسلّم فرمائیلي دی چه زهٔ دُعا دَ پلار یم چه ابراهیم علیه السّلام دے او بشارت دَ عیسٰی علیه السّلام هم یم ۔ مِنْۢ بَعْدِي، لفظ دَ بعد دلالت کوی په مطلق روستو والی، او لفظ دَ مِنْ چه داخل شی په بعد باندے نو اشاره ده قلت بعدیت او عدم واسطے ته په مینځ دَ مخکنی او روستنی کښ یعنی په مینځ دَ عیسٰی علیه السلام او محمد صلی الله علیه وسلّم کښ بله واسطه (یعنی بل رسول او نبی) نه دے راغلے او دَ دے دواړو په مینځ کښ تقریبًا پنځه سوه او نهه اویا کاله فاصله ده۔ اَحْمَدُ امام رازی په رپاګے په بل مخ)

عَلَى اللّٰهِ الْكَذِبَ وَهُوَ يُدْعٰٓى اِلَى الْاِسْلَامِ ؕ

| په | الله تعالیٰ | باندے دروغ | او حال دا چه هغه را بللے کیدے شی | اسلام ته |
|---|---|---|---|---|

په تفسیر کبیر او قاسمی په خپل تفسیر کښې او الشیخ رحمت الله الکیرانوی په کتاب اظهار الحق کښې دَ انجیل دَ یوحنا دَ څوارلسم باب نه بشارت په لفظ دَ فارقلیط سره نقل کړے دے او دا یونانی لفظ دے او اصل ئے بیرکلوط دے او معنیٰ دَ هغې احمد دے او په انجیل دَ برنابا کښې صریح عبارتونه ډیر دی هاں روستو راهبانو دَ ډیرضد دَ وجے نه په دغه الفاظو کښې تحریفات کړیدی - او حدیث دَ بخاری کښې چه څه محمد یم او احمد یم او ماحی او حاشر او عاقب یم او په حدیث دَ مسلم کښې ورسره المقفّی او نبی الرحمة او نبی التوبة او نبی الملحمه هم راغلی دی - او خطیب په سراج المنیر کښې دَ بعض اهل علم نه نقل کړیدی چه دَ هغه زر اسماء دی ( اګر چه دَ دے دعوے هیڅ دلیل نیشته ) او دا رنګ بعضو دَ نبی صلی الله علیه وسلم یو کم سل ۹۹ اسماء لیکلے دی په موافق دَ اسماء الحسنیٰ دَ الله تعالیٰ او دَ دوی سره په دے باندے هم څه دلیل شرعی نیشته -

فائده :- فرق په مینځ دَ احمد او محمد کښې په دوه طریقو سره دے اول دا چه احمد اسم تفضیل دے یعنی احمد الحامدین لله - ټول انبیاء علیهم السّلام حمد ویونکی دی لیکن اخری نبی دَ ټولو نه زیات حمد کوونکے دَ الله تعالیٰ دے او محمد په معنیٰ دَ محمود سره دے لیکن محمود صرف حمد کړے شوے ته ویلے کیږی او محمّد هغه ته ویلے شی چه بار بار ئے حمد ویلے کیږی نو په لفظ احمد کښې زیادت دَ کیفیت دے او په لفظ محمد کښې زیادت دَ کمیّت (مقدار) دے - دویم فرق دا دے چه احمد هم مبنی للمفعول دے لکه دَ اشغل پشان نو دَ محمد معنیٰ ده بار بار حمد ویلے شوے او دَ احمد معنیٰ ده ډیر غټ حمد ویلے شوے بیا دَ اول فرق په بنا حکمت دا دے چه اول خو یو انسان ډیر حمد وته او صفتونه وائی روستو دَ هغې نه بیا دَ دغه انسان حمد او ستائینه کیدے شی په دے وجه په مخکنی کتاب (انجیل) کښې اول صفت ذکر شو او په قرآن کښې دویم نوم ذکر کړے شو - او دَ دے نه چه مرزائی دَ خپل نبوت دَ

وَاللّٰهُ لَا يَهْدِى الْقَوْمَ الظّٰلِمِيْنَ ۞ يُرِيْدُوْنَ

| او الله تعالیٰ هدایت نه ورکوی | قوم | ظالمانو ته - | دوی غواړی |
|---|---|---|---|

لِيُطْفِئُوْا نُوْرَ اللّٰهِ بِاَفْوَاهِهِمْ ؕ وَاللّٰهُ مُتِمُّ

| چه مړه کړی. | رڼړا دَ الله تعالیٰ | په خپلو خُلو سره | او الله تعالیٰ پوره کوونکے دے |
|---|---|---|---|

اثبات دَ پاره دلیل ذکر کړے دے نو هغه خالص دروغ او تحریف دے ځکه چه دَ مرزائی نوم غلام احمد دے او په دے ایت کښې احمد ذکر شوے دے او مضاف خو غیر وی دَ مضاف الیه نه -

فَلَمَّا جَآءَهُمْ بِالْبَيِّنٰتِ ضمیر دَ فاعل عیسیٰ علیه السّلام یا اخری نبی ته راجع دے دویم قول غوره دے او په دے کښې سخت زجر دے یهود او نصاری ته چه هغوی سرهٔ دَ بشارت دَ عیسیٰ علیه السّلام او سرهٔ دَ بینات نه دَ دے اخری نبی نه انکار اوکړو۔ او بینات نه مراد قرآن کریم دے. هٰذَا سِحْرٌ هٰذا اشاره ده بینات ته او سحر په خپله معنیٰ سره دے یا هٰذا اشاره ده رسول ته او مصدر (سحر) په معنیٰ دَ اسم فاعل دے او حمل ئے مبالغةً دے -

سے دا زجر دے هغه کسانو ته چه بیناتو ته سحر وائی که یهود وی چه تکذیب دَ عیسیٰ علیه السلام ئے کړے دے او که یهود او نصاریٰ دواړه دی چه تکذیب ئے دَ اخری نبی صلی الله علیه وسلم کړے دے۔

الْكَذِبَ هر سحر کذب او افتراء ده او دا رنګ شرک کول هم افتراء ده۔

الْإِسْلَامِ مراد دَ دے نه دین دَ توحید دے چه دَ ټولو انبیاء علیهم السلام دین دے یا مراد دَ دے نه اتباع دَ محمد رسول الله صلی الله علیه وسلم ده۔

الظّٰلِمِيْنَ یعنی انکار دَ حق نه په طریقه دَ ضد او عناد سره کوی ایت پنځم کښې الفاسقین ذکر وو ځکه چه زیغ دَ زړونو فسق دَ عقیدے دے او دلته ئے الظالمین اویل ځکه چه په اول دَ ایت کښې ئے وَمَنْ اَظْلَمُ ویلے دی۔

نُوۡرِهٖ وَلَوۡ كَرِهَ الۡكٰفِرُوۡنَ ⑧ هُوَ الَّذِيۡۤ

رنړیا خپله لره اگرچه بد ئې گڼړی کافر - خاص اللّٰه تعالیٰ هغه ذات دے

ف دا هم زجر دے په انکار دَ رسول اودَ قرآن سره ، دا ئې ذکر کړے دے بغیر دَ حرفِ عطف نه په طریقه دَ جوابِ سوال سره - سوال دا دے چه دوی ظلم کوی اودَ اسلام مقابله په افتراء سره کوی دا دَ څه مقصد دَ پاره کوی ؟ جواب اوشو چه مقصد دَ دوی اِطفاء دَ نورِ اللّٰه ده - نو په یُرِیۡدُوۡنَ کښ ضمیر راجع دے هغه کسانو ته چه حق ته سحر وائی اوظلم کوی - اَطفاء او اَخماد کښ فرق دا دے چه اطفاء په لګه اوډیره رنړا دواړو کښ استعمالیږی او اخماد فقط په ډیره رنړا کښ استعمالیږی اوبل فرق ئې دا دے چه اخماد اکثر په اَور کښ استعمالیږی او اطفاء په نُور کښ مستعملیږی -

فائده :- په سورة توبه ۳۲ کښ اَنۡ ذکر شوے او دلته لام ذکر دے وجه دَ فرق داده چه اَنۡ په تاویل دَ مصدر سره مفعول دَ یریدون دے یعنی اطفاء دَ دوی اصل مراد دے اولام دَ پاره دَ علت دے او مفعول دَ یریدون پټ دے یعنی یُرِیدُونَ الافتراء والتکذیب لاجل الاطفاء نو معلومه شوه چه په اول تعبیر کښ مبالغه ده په نسبت دَ دویم تعبیر سره او په سورة توبه کښ تفصیل دَ قبائحو او علل دَ قتال دَ یهودو او نصاریٰ بیانیدل مقصود وو نو دَ هغې سره تعبیر په مبالغې (په اَنۡ) سره ذکر کړے شو - نُوۡرَ اللّٰهِ بِاَفۡوَاهِهِمۡ مراد دَ نور نه نمر دے او کلام په طریقه دَ استعاره تمثیلیه سره دے یعنی دا منکرین چه دَ حق دَ ایطال کوشش کوی دَ دوی مثال دَ هغه شخص دے چه نمر په پوکو باندے مړکول غواړی - یا مراد دَ نور نه قرآن اوتوحید او رسالت دَ اخری نبی صلی اللّٰه علیه وسلم او اسلام دے او افواههم نه مراد بے دلیله خبرے او شبهات واهیه دی - وَاللّٰهُ مُتِمُّ نُوۡرِهٖ اتمام دَ نور په نازلولو دَ قرآن او په جواب دَ شبهاتو دَ دوی سره دے او په دے کښ اشاره ده چه دَ اتمام دَ نور نه وړاندے (یعنی دَ قرآن پوره نازلولو او دین اسلام دَ پوره کولو نه مخکښ) دَ هیچا قدرت نه وو چه دا ئې ختم کړے یا نیمگړے کړے وے - وَلَوۡ كَرِهَ الۡكٰفِرُوۡنَ په لفظ دَ کفر کښ اشاره ده ظلمت ته چه مقابل دَ نور دے یعنی تیاره (ظلمات) خوخوَل خلق رنړا نه غواړی -

أَرْسَلَ رَسُولَهُ بِالْهُدٰى وَدِيْنِ الْحَقِّ

چه را اولیږلو ئې رسول خپل په هدایت سره او په حق دین سره

لِيُظْهِرَهُ عَلَى الدِّيْنِ كُلِّهٖ ۙ وَلَوْ كَرِهَ

دَ دې دپاره چه غالب کړي هغه لره په دینونو ټولو باندې اګرچه بد ئې ګڼړي

الْمُشْرِكُوْنَ ۝ يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا هَلْ اَدُلُّكُمْ

مشرکان ۔ اې ایمان والو آیا اوخایم تاسو ته

سف دا بیان دے دَ پاره دَ مُتِمُّ نُوْرِهٖ یعنی اتمام دَ نورخپل کوی په رالیږلو دَ دے رسول او قرآن سره سرهٔ دَ صفت دَ غالب کولو ته په ټولو دینونو باندے. تفسیر دَ دے په سورهٔ فتح سه ۲۸ او سورهٔ توبه سه ۳۳ کښ تیر شوے دے.
بِالْهُدٰى وَدِيْنِ الْحَقِّ قرآن او توحید۔ یا قرآن او حدیث یا عقیده او احکام مراد دی۔
لِيُظْهِرَهُ عَلَى الدِّيْنِ كُلِّهٖ دَ ظهور نه ماخوذ دے په معنیٰ دَ غلبے سره او ضمیر دَ مفعول راجع دے رسول ته یا دین ته او غلبه عامه ده که په حجت سره وی او که دا سے وی چه نور دینونه وی لیکن کمزوری وی لکه په زمانه دَ خلفاء راشدینو کښ چه اوشوه او که داسے وی چه بل دین سیوا دَ اسلام نه په مخ دَ زمکه باقی نه وی لکه چه په زمانه دَ نزول دَ عیسیٰ علیه السّلام کښ په قرب دَ قیامت کښ به وی۔ یا اظهار په معنیٰ دَ اعلام او دَ اطلاع سره دے یعنی نزول دَ قرآن په نبی صلی الله علیه وسلم باندے سبب دے دَ پاره دَ حصول دَ علم په ټولو ادیان سماویه او غیر سماویه باندے.
وَلَوْ كَرِهَ الْمُشْرِكُوْنَ هرکله چه هدی او دین حق توحید دے او انکار دَ توحید نه شرک ویلے کیږی نو دَ دے آیت اختتام ئې په المشرکون سره اوکړو۔
فائده:۔ په سورهٔ فتح سه ۲۸ کښ وَكَفٰى بِاللّٰهِ شَهِيْدًا او په سورهٔ توبه سه ۳۳ کښ او په دے سورت کښ ولوکره المشرکون ئې ذکر کړو۔ وجه دا ده چه په سورهٔ فتح کښ رد دے په مشرکینو عوامو باندے چه هغوی دَ رسول الله صلی الله علیه وسلم په رسالت باندے شهادت نه کوؤ ایلے په بل مخ)

عَلٰى تِجَارَةٍ تُنْجِيْكُمْ مِّنْ عَذَابٍ اَلِيْمٍ ⑩

يو داسې تجارت چه بچ کوي تاسو لره د عذاب دردناک نه.

تُؤْمِنُوْنَ بِاللّٰهِ وَرَسُوْلِهٖ وَتُجَاهِدُوْنَ

ايمان به راوړئ په الله تعالىٰ باندې او په رسول د هغه باندې او جهاد به کوئ تاسو

فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ بِاَمْوَالِكُمْ وَاَنْفُسِكُمْ ط

په لاره د الله تعالىٰ کښې په مالونو خپلو سره او نفسونو خپلو سره

بلکه د صلح حديبيه په عهدنامه کښې د لفظ د رسول الله ليکلو نه يې انکار کوۀ نو د دې وجې نه الله تعالىٰ د رسول الله صلى الله عليه وسلم په رسالت باندې خپل شهادت ذکر کړو- او په سورة توبه او په دې سورت کښې رد دې په کتابيانو باندې چه هغوی د توحيد په ځائې د شرک نه دين جوړ کړو او د رسول الله صلى الله عليه وسلم يې د مخالفت لوئې سبب هغه بيان د توحيد او رد د شرک وۀ-

ف ۱۰ سا ۱۱ سا ۱۲ دا دويم خطاب دې مؤمنانو ته او ترغيب دې جهاد ته په ذکر د بشارت اخرويه سره او متعلق دې د څلورم ايت د دې سورت سره - هَلْ اَدُلُّكُمْ مقصود د استفهام نه امر دې ليکن د پوره متوجه کيدلو د پاره يې تعبير په استفهام سره کړې دې - عَلٰى تِجَارَةٍ دا لفظ يې د دې وجې نه راوړو چه تپوس کوونکی (عثمان بن مظعون رضي الله عنه) ويلې وۀ چه کوم تجارت ډير محبوب دې الله تعالىٰ ته نو جواب يې موافق د سوال سره راوړو يا دا د پاره د ترغيب دې ځکه چه طبائع انسانيه په تجارت باندې ډير خوشحاليږي ځکه چه په تجارت کښې لزوم د عوض وي او دا يې په سورة توبه سا ۱۱۱ کښې په تعبير د اشتراء سره ذکر کړې دې - تُنْجِيْكُمْ الخ دا اشاره ده فرق د تجارت دنيويه او اخرويه ته يعنې په دې تجارت کښې ګټه ضرور شته او ابدي ګټه ده او د خسران هيڅ احتمال پکښې نيشته او دنيوي تجارت خو داسې نه وي -

تُؤْمِنُوْنَ بِاللّٰهِ الخ دا تفسير د تجارت دې يعنې د خرڅوونکو (چه مؤمنان دي) د طرف نه ايمان او جهاد بالمال والنفس دې - ايمان يې د جهاد

ذٰلِكُمْ خَيْرٌ لَّكُمْ اِنْ كُنْتُمْ تَعْلَمُوْنَ ﴿۱۱﴾

دا کار غوره دے تاسو لره که چرے تاسو پوهه لرے۔

يَغْفِرْ لَكُمْ ذُنُوْبَكُمْ وَيُدْخِلْكُمْ جَنّٰتٍ

بخنه به اوکړی تاسو ته د ګناهونو ستاسو او داخل به کړی تاسو جنتونو ته

تَجْرِيْ مِنْ تَحْتِهَا الْاَنْهٰرُ وَمَسٰكِنَ طَيِّبَةً

چه بهیږی لاندے د هغے نه ویالے او کورونه د اوسیدلو مزیدار

فِيْ جَنّٰتِ عَدْنٍ ذٰلِكَ الْفَوْزُ الْعَظِيْمُ ﴿۱۲﴾

په باغونو د هیشوالی کښ دا کامیابی لویه ده۔

دَقبولیت دپاره ذکر کړے دے ځکه چه جهاد بغیرد ایمان نه فائده نه کوی نو مراد دَ دے نه دوام دَ ایمان دے ځکه چه دوی نه ئے اٰمَنُوْا په خطاب کښ ویلے دی۔ وَتُجَاهِدُوْنَ مراد دَ دے نه قتال فی سبیل الله دے په قرینه دَ خلورم اٰیت سره بِاَمْوَالِكُمْ دَ مال خرچ کولو ته اول او هر وخت ضرورت دے په نسبت دَ نفس سره دَ دے وجے نه اموال ئے مقدم ذکر کړو۔ اِنْ كُنْتُمْ تَعْلَمُوْنَ سوال:۔ خیریت دَ جهاد په علم دَ مخاطبینو باندے موقوف نه دے نو دلته ئے دَ څه وجے نه دا شرط اولګوؤ۔

جواب:۔ دا شرط حقیقةً نه دے بلکه مقصود په دے کښ تیزی ورکول دی په منلو دَ دے حکم باندے۔ یا اِنْ په معنیٰ دَ اِذْ سره دے۔

يَغْفِرْ لَكُمْ اه دا ذکر دَ عوض دے دَ جانب دَ اشتراء کوونکی چه الله تعالیٰ دے۔ يَغْفِرْ مجزوم دے په سبب دَ شرط پټ سره یعنی اِنْ تُؤْمِنُوْا وَتُجَاهِدُوْا۔ او قرطبی دَ مبرد او زجاج نه نقل کړیدی چه تؤمنون (په سر دَ اٰیت کښ) په معنیٰ دَ اٰمِنُوْا امر سره دے دَ دے وجے یغفر مجزوم دے دَ وجے دَ جوابِ امر نه او فراء ویلے دی چه دا جواب دَ استفهام دے چه په (هل تؤمنون و تجاهدون) کښ معنیً مراد دے۔ ذُنُوْبَكُمْ هر کله چه ایمان او جهاد دواړه یو ځائے ذکر کړیدی نو ذنوبکم ئے بغیر دَ مِنْ نه ذکر کړے دے دَ پاره دَ عموم یعنی ټول ګناهونه (پاتے په بل مخ)

وَأُخْرَىٰ تُحِبُّونَهَا ۖ نَصْرٌ مِّنَ اللَّهِ وَفَتْحٌ

او بل نعمت چه خوښوئ تاسو هغه. (چه هغه) مدد دے د طرف د الله تعالیٰ نه او کټ به

قَرِيبٌ ۗ وَبَشِّرِ الْمُؤْمِنِينَ ﴿١٣﴾ يَا أَيُّهَا الَّذِينَ

نزدے او زیرے ورکړه مؤمنانو لره. اے ایمان

آمَنُوا كُونُوا أَنصَارَ اللَّهِ كَمَا قَالَ عِيسَى ابْنُ

والو شئ مدد کوونکی د دین د الله تعالیٰ لکه چه وئیلی دی عیسیٰ ځوئ

مَرْيَمَ لِلْحَوَارِيِّينَ مَنْ أَنصَارِي إِلَى اللَّهِ ۖ

د مریم حوارینو خپلو ته څوک دی ما سره مدد کوونکی (د پاره د نزدیکیدلو) الله تعالیٰ ته

په دے بخلے کیږی. او مغفرت د ګناهونو په اصل کښ مقدم دے په دخول د د جنت باندے ځکه چه سړے د وصف د ګناه نه جنت نه حاصلیږی د دے وجے نه یغفر ئے مقدم کړیدے په یدخلکم جنات باندے. طَيِّبَةً یعنی داسے مساکن چه د زړونو د خوشحالئ ټول اسباب به پکښ وی.

فِي جَنَّاتِ عَدْنٍ د اول جنات نه مراد دارالثواب دے چه الله تعالیٰ د خامو مؤمنانو د پاره تیار کړیدے او مختلفو نعمتونو باندے مشتمل دے او د دویم جنات نه مراد باغات د اونو بوټو دی یعنی دا مساکن به په باغونو کښ دننه وی ګیرچاپیره به د دوی نه اونے وی.

عَدْنٍ اقامت ته وئیلے کیږی یعنی د مزو حاصلولو د پاره به د جنت نه بهر وتلو ته ضرورت نه پریوځی.

۱۳ دا بشارت دنیویه دے. وَأُخْرَىٰ عطف دے په تجارت باندے یا په تقدیر د لَكُمْ تِجَارَةٌ یا نِعْمَةٌ أُخْرَىٰ.

نَصْرٌ مِّنَ اللَّهِ دا بدل دے د أُخْرَىٰ نه یا پکښ لکم مقدر دے او تفسیر دے د اخرىٰ د پاره. تُحِبُّونَهَا دلیل دے چه د صحابه کرامو محبت د جهاد او د نصرت الهیه او د فتح د حق سره وو د دنیا د نور متاع سره د هغوی محبت نه وو. وَبَشِّرِ الْمُؤْمِنِينَ اشاره ده چه بشارت دنیویه اخرویه ټول د ایمان په وجه دی.

قَالَ الْحَوَارِيُّوْنَ نَحْنُ اَنْصَارُ اللّٰهِ فَاٰمَنَتْ

| اویل | حواریانو | مونږ | مددګار د دین د الله تعالیٰ | نو ایمان راوړو |
|---|---|---|---|---|

طَّآىِٕفَةٌ مِّنْۢ بَنِیْۤ اِسْرَآءِیْلَ وَ كَفَرَتْ طَّآىِٕفَةٌ

| یوې ډلې | د | بنی | اسرائیلو نه | او کفر اوکړو | بلې ډلې |
|---|---|---|---|---|---|

فَاَیَّدْنَا الَّذِیْنَ اٰمَنُوْا عَلٰى عَدُوِّهِمْ

| نو کلک کړل مونږ هغه کسان چه ایمان ئې راوړے وو | په | دشمنانو د دوی باندې |
|---|---|---|

فَاَصْبَحُوْا ظٰهِرِیْنَ ﴿۱۴﴾

| نو | شول | هغوی | غالب |
|---|---|---|---|

۱۴ دا دریم خطاب دے د پاره د تاکید د حکم د جهاد او په دیکښ ترتیب دے چه اول اعلان دے د نصرت کولو بیا دعوت کول دی بیا مقابله کول دی د دشمنانو د دین سره بیا حصول د تائید د الله تعالیٰ دے.

اَنْصَارَ اللّٰهِ مضاف محذوف دے یعنی اَنْصَارَ دِیْنِ اللّٰهِ یا لام مقدر دے یعنی اَنْصَارًا لِّلّٰهِ او په دے تعبیر کښ تاکید دے چه په نصرت د دین سره انسان په ډله او جماعت د الله تعالیٰ کښ داخلیږی كَمَا قَالَ الخ

سوال:- د کونوا انصار الله تشبیه د قال عیسٰی سره صحیح نه ده ځکه چه د فعل د قول سره تشبیه صحیح نه دی؟

جواب:- په کلام کښ تقدیر دے یعنی قُلْ یَا مُحَمَّدُ لِلْمُؤْمِنِیْنَ كُوْنُوا الخ یا کونوا انصار الله بسبب قول النبی صلی الله علیه وسلم مثل قولِ عیسٰی -

لِلْحَوَارِیِّیْنَ دا د حور نه ماخوذ دے سپین والی ته ویلے کیږی لکه حُوْرٌ عِیْنٌ. نو حواری سپین زړے مخلص راز دار دوست ته ویلے کیږی. او کله خاص وی لکه "لِكُلِّ نَبِیٍّ حَوَارِیٌّ وحواری زبیر" (حدیث) او کله عام وی لکه بل حدیث کښ راغلی چه " د هر نبی په امت د هغه کښ حواریین او اصحاب وی چه یَهْتَدُوْنَ بِسُنَّتِهٖ وَیَقْتَدُوْنَ بِاَمْرِهٖ ".

فائده: سورة آل عمران ۵۲ کښ فرمائیلی دی قَالَ مَنْ اَنْصَارِیْۤ اِلَى اللّٰهِ قَالَ الْحَوَارِیُّوْنَ. او په دے ایت کښ قال عیسی بن مریم للحواریین فرمائیلی دی (پاتے په بل مخ)

نو معلومه شوه چه په دے کښ ترتیب دے هغه دا دے چه اول خو عیسیٰ علیه السلام عام اعلان اوکړو چه زما سره په دین د الله تعالیٰ کښ څوک ملګرتیا کوی یعنی ایمان راوړی نو حواریینو اجابت اوکړو (دا د آل عمران د آیت مقصد دے) بیا ئے حواریینو ته اوویل چه مَنْ اَنْصَارِی یعنی څوک دعوت کوئے حق ته سره د مصیبتو نو ته حواریینو اوویل چه مونږ دے ته تیار یو (دا د دے آیت مقصد دے) نو معلومه شوه چه حواریین دوه قسمه دی عام چه صرف د ایمان اعلان کوی بل خاص چه دعوت کوونکی وی په اخلاص سره۔

فَآمَنَتْ طَّآئِفَةٌ" شربینی وئیلی دی چه دلته تقدیر دے یعنی حواریینو دعوت شورو کړو په بنی اسرائیلو کښ نو هغوی خو اول دوه ډلے شوے چا ایمان راوړو نو هغوی ته نصاری وئیلے کیدل او چا کفر اوکړو نو هغوی ته یهود وئیلے کیدل بیا روستو د رفع د عیسیٰ علیه السلام نه آسمان ته، نصاریٰ مختلف شول چا اُوئیل چه عیسیٰ علیه السلام الله دے هغه یعقوبیه دی چا اُوئیل چه ځوئے د الله دے دا نسطوریه دی او څوک په تثلیث بانده قائل شول او هغه ملکانیه دی او څوک په توحید بانده پاخه وو او په هغوی کښ هم درے ډلے پیدا شوے۔ مجاهدین، دعوت کوونکی او ډے دواړو له یهودیانو قتل کړل او راهبان لکه چه سورة حدید کښ ذکر شویدی۔

فَاَیَّدْنَا الَّذِیْنَ اٰمَنُوْا تائید او غلبه د دوی په حجت سره وه او بیا د دوی غلبه راغله په سبب د بعثت د آخری نبی صلی الله علیه وسلم سره یعنی هغه د دوی د عقیدے تائید اوکړو چه عیسیٰ علیه السلام الله او ابن الله نه دے بلکه عبد او رسول د الله تعالیٰ دے۔

الحمد لله تفسیر د سورة صف په فضل د الله تعالیٰ سره ختم شو

| آياتها ۱۱ / ركوعاتها ۲ | بِسۡمِ ٱللَّهِ ٱلرَّحۡمَٰنِ ٱلرَّحِيمِ | سُورَةُ الْجُمُعَةِ ۶۲ مَدَنِيَّةٌ ۱۱۰ |
|---|---|---|

# يُسَبِّحُ لِلَّهِ مَا فِي السَّمٰوٰتِ وَمَا فِي الْأَرْضِ

پاکی وائی الله تعالیٰ لره هغه څيزونه چه په آسمانونو کښې دی او هغه څيزونه چه په زمکه کښې دی

بِسۡمِ ٱللَّهِ ٱلرَّحۡمَٰنِ ٱلرَّحِيمِ

## سورة الجمعة

ربط دَ دے سورت دَ مخکښې سورت سره په ډيرو وجوهو سره دے. اوله وجه دا ده چه په هغه سورت کښې زيغ دَ زړونو دَ يهوديانو ذکر ووُ نو په دے سورت کښې ذکر دَ آثارو دَ زيغ دَ هغوی دے. دويمه وجه دا چه په مخکښې سورت کښې ترغيب ووُ جهاد ته نو په دے سورت کښې زجر دے مانعينو دَ جهاد ته. دريمه وجه دا چه په هغه سورت کښې ترغيب ووُ جهاد ته نو پکار دے سورت کښې ترغيب دے او رين لو دَ خطبهٔ جمعے ته دَ پاره دَ تذکير دَ مسائلو دَ جهاد. څلورمه وجه په هغه سورت کښې ذکر دَ صفونو دَ قتال ووُ نو په دے سورت کښې ذکر دَ صلوة جمعه دے چه په هغے کښې دَ صفونو جوړولو طريقه ايزده کول دی. پنځمه وجه په سورة صف کښې بشارت ووُ په بعثت دَ آخری نبی صلی الله عليه وسلم سره نو په دے سورت کښې خبر ورکوی په راتللو دَ هغه سره. شپږمه وجه دا ده سورة صف کښې زجر ووُ په ترک دَ عمل سره نو په دے سورت کښې مثال دَ دغه کسانو ذکر کوی دَ حمار (خر) سره.
دعوی دَ سورت. رد دے په درے دعوو دَ يهوديانو سره دَ رد دَ شرك في العلم والتصرف ته او دَ هغے دَ پاره ئے نهه اسماء حسنیٰ ذکر کړی دی.
خلاصه دَ سورت. اول ذکر دَ توحيد دے په تسبيح سره بيا صداقت دَ رسول دے په درے آيتونو کښې بيا رد دے په اوله دعوی دَ يهوديانو باندے چه په فخر سره ئے ويل چه مونږ علماء يو او تاسو اميان يئ دَ هغے جواب په ۵ کښې دے چه بے عمله عالم خو پشان دَ خر وی. دويم رد دے په دويمه دعوی باندے دوی فخر کووُ چه مونږ اولياء الله يو (ياتے په بل مخ)

اَلْمَلِكِ الْقُدُّوْسِ الْعَزِيْزِ الْحَكِيْمِ ①

بادشاه دے ډیر پاک دے زوراور دے حکمتونو والا دے.

هُوَ الَّذِيْ بَعَثَ فِي الْاُمِّيّٖنَ رَسُوْلًا

خاص الله تعالیٰ هغه ذات دے چه اولیږلو ئے په آن پړو کښ رسول

مِّنْهُمْ يَتْلُوْا عَلَيْهِمْ اٰيٰتِهٖ وَيُزَكِّيْهِمْ

د دوی د جنس نه بیانوی په دوی باندے ایاتونه د الله تعالیٰ او خائی روی ته پاک اخلاق

جواب اوشو په درے ایاتونو کښ په دعوت د مبا هلے سره - دریم فخر کول وو د دوی په یوم السبت سره د هغے جواب اوشو په ذکر د عظمت د ورځ د جمعے سره په خطبه او صلوٰة سره بیا ترغیب دے حلال کسب ته روستو د فارغ کیدلو د موځ د جمعے ته او ترغیب دے او رید لو د خطبے ته او پریخودل د مال و تجارت وغیره د دُنیا۔

تفسیر په دے کښ دعوی د توحید ده په ذکر د تسبیح سره او په تسبیح کښ په دے خاص تعبیر سره اشاره ده چه الله تعالیٰ مَلِك دے نو د رعیت (چه دا امت دے) د اصلاح د پاره ئے اخری رسول را اولیږلو او قُدُّوْس دے یعنی په هغه باندے اعتراض نیشته په تشبیه ورکولو د بے علمه مُلیانو د حمار سره او عَزِيْز دے ویره نه کوی د چا د دعوٰے د ولایت نه په دروغه سره او حَكِيْم دے په مقرر کولو د ورځ د جمعے کښ د پاره د خاص عبادت۔

يُسَبِّحُ په صیغه د فعل مضارع سره ذکر کړو او تیر سورتونو (حدید، حشر، صف) کښ په فعل ماضی سره وُو اشاره ده دوام او احاطه د هرے زمانے ته په تسبیح ویلو سره د سبّح عموم د زمانو دے او ما فی السمٰوٰت وما فی الارض عموم د مکان دے سره د عموم د زمانیاتو او مکانیاتو نه۔

الْمَلِكِ الْقُدُّوْسِ اه په دے صفاتو کښ روستو د موصوف نه اشاره ده چه استحقاق د تسبیح د الله تعالیٰ د ذات او د صفاتو دواړو د وجے نه دے۔

وَيُعَلِّمُهُمُ الْكِتٰبَ وَالْحِكْمَةَ ۗ وَإِنْ كَانُوا

او تعليم ورکوی دوی ته دَ قرآن او دَ سنت اګر چه دوی وو

مِنْ قَبْلُ لَفِي ضَلٰلٍ مُّبِينٍ ﴿٢﴾ وَّاٰخَرِينَ

مخکښ دَ دے نه خامخا په ګمراهئ ښکاره کښې او نور خلق (روستو)

سے روستو دَ توحيد نه صداقت دَ رسول صلی الله عليه وسلم ذکر کوی او اشاره ده چه تسبيح دَ انسانانو الله تعالیٰ لره په طريقه دَ رسول سره ضروری ده او دَ وجے دَ استقلال دَ دے مسئلے نه په ماقبل باندے عطف نه دے کړے بعث په معنیٰ دَ ارسل سره دے يا په معنیٰ دَ پيدا کولو دے۔

فِي الْأُمِّيِّينَ اُمّی په اصل کښ هغه چا ته ويلے کيږی چه نه ئے لوستل کړے وی او نه ليکل ورځی او دلته مراد مقابل دَ کتابيانو دے لکه چه په سورة آلعمران سنة کښ دی يعنی هغه څوک چه آسمانی کتاب هغوی له نه وو ورکړے شوے نو هغه دا ټول عرب دی۔

او اُمّی صفت دَ نبی صلی الله عليه وسلم په سورة اعراف سـ۱۵۷ کښ ذکر دے نو دَ نبی صلی الله عليه وسلم اُمّی صفت سره دَ نبوت او رسالت نه دا دَ مدح صفت دے ځکه چه دا معجزه ده او دليل دَ صداقت دَ هغه دے لکه سورة عنکبوت سـ۴۸ کښ دے ته اشاره ده او په اميين (عرب) کښ راليږل پکار طريقه سره دی چه دَ عربو په هره قبيله کښ دَ نبی صلی الله عليه وسلم قرابت دَ پلار يا دَ مور دَ طرف نه وو ما سيوا دَ بنی تغلب نه ځکه چه په هغوی کښ نصرانيت وو۔ او په عرب (اميين) کښ دَ بعثت حکمت دا دے چه دَ هغوی نسب دَ عجمو دَ ټولو نسبونو نه اوچت دے او بيا قريش او په هغوی کښ بنی هاشم خو دَ ټول عالم دَ خاندانونو او قبيلو نه اوچت دی نو الله تعالیٰ خپل آخری نبی په دا سے قوم او نسب کښ را اوليږلو چه دَ نسب په لحاظ سره هغه ته څوک سپک او نه ګوری لکه چه په حديث دَ هرقل کښ هم راغلی دی چه الله تعالیٰ انبياء په اوچت نسب کښ راليږی۔

نو لفظ دَ فی الاميين نص صريح دے په دے خبره باندے چه نبی صلی الله عليه وسلم عربی دے نو څوک چه دَ هغه رايه ئے په بل مخ )

مِنْهُمْ لَمَّا يَلْحَقُوا بِهِمْ ۚ وَهُوَ الْعَزِيزُ الْحَكِيمُ ﴿۳﴾

دَ دوی نه چه نه دی رسیدلی هغوی ته په مرتبه کښې او خاص الله تعالیٰ زوراور حکمتونو والا دے۔

په عربیت کښې شک یا انکار کوی نو دا کافر دے۔ رَسُوْلًا مِّنْهُمْ دَ جنس دَ دوی نه دے یعنی بشر دے او دا هم صریح نص دے په رسالت او په بشریت دَ نبی صلی الله علیه وسلّم باندے نو دَ دے نه انکار یا په دے کښې شک کول هم کفر دے لکه چه آلوسی په تفسیر روح المعانی دَ سورة آلعمران په تفسیر کښې دا سے تفصیل لیکلی دے۔ دادرے صفات دی دَ نبی صلی الله علیه وسلّم عربیت، رسالت، بشریت بیا درے کارونه دَ هغه ذکر کوی اول يَتْلُوْا عَلَيْهِمْ اٰيٰتِهٖ مراد دَ تلاوت نه بیان دَ قرآن او دعوت ورکول دی قرآن ته نو دا مرتبه دَ دعوت او دَ تبلیغ ده او نصاب دَ دے آیاتو نه دَ قرآن کریم دی۔ دویم کار وَ يُزَكِّيْهِمْ مراد دَ دے نه طریقه خودل دَ اعمالو او اخلاقو ده دَ هغے اوقات، مقادیر، کیفیات او هیئات خودل او دا مرتبه دَ عمل کولو او دَ عمل خودلو ده چه هغه مقصد دَ دعوت او دَ تعلیم دے او دَ دے وجے نه تزکیه ئے په مینځ دَ دعوت او دَ تعلیم کښې ذکر کړیده چه دا اصل مقصود دے او دیته علم التزکیه او علم الاخلاق ویلے کیږی۔ لیکن دیته تصوف او دَ صوفیت نوم کیخودل صحیح نه دی ځکه چه منقول شرعی نوم پریخودل او غیرمنقول نوم استعمالول دَ شرعے نه خلاف کول دی لکه چه په حدیث سره ثابت ده چه عَتَمَه نوم دَ عشاء دَ پاره مه استعمالوئے۔ او دریم کار وَ يُعَلِّمُهُمُ الْكِتٰبَ وَالْحِكْمَةَ او دا مرتبه دَ تعلیم او تدریس ده او نصاب دَ هغے قرآن او حدیث دے دَ قتاده روایت دے او امام شافعی رحمه الله په الرساله کښې هم ذکر کړیدے چه مراد دَ حکمت نه سنت دے۔ دا صفات او کارونه دَ نبی صلی الله علیه وسلّم په سورة بقره ۱۲۹ ۱۵۱ او سورة آلعمران ۱۶۴ کښې هم ذکر کړے شویدی۔ وَاِنْ كَانُوْا مِنْ قَبْلُ لَفِيْ ضَلٰلٍ مُّبِيْنٍ دا صریح دلیل دے چه بغیر دَ ایمان او دَ تابعدارئ دَ رسول نه ټولے لارے دَ گمراهئ دی او دا رنګ دَ هرے گمراهئ نه دَ نجات ذریعه صرف تابعدارئ دَ قرآن او دَ سنت دَ نبی صلی الله علیه وسلّم ده۔

۳۔ دا عطف دے په ضمیر دَ يعلمهم باندے ځکه چه معلّم دَ روستنو هم په اصل کښې رسول الله صلی الله علیه وسلّم دے اگرچه په واسطه سره دے یا معطوف دے په الامیین باندے۔ بنا په اوله توجیه باندے مراد دَ آخرین نه تمام هغه مؤمنان دی که عرب وی او که عجم وی چه دَ صحابه کرامو نه روستو دی تابعین او تبع تابعین او نور مؤمنان تر قیامته پورے او بنا په دویمه توجیه باندے مراد عجمیان دی چه ایمان ئے راوړے دے په رسول الله صلی الله علیه وسلّم

ذٰلِكَ فَضْلُ اللّٰهِ يُؤْتِيْهِ مَنْ يَّشَآءُ ۭ وَاللّٰهُ ذُو الْفَضْلِ

دا فضل دَ الله تعالیٰ دے ورکوی ئے هغه چاته چه اوغواړی او الله تعالیٰ خاوند دَ فضل

الْعَظِيْمِ ۝ مَثَلُ الَّذِيْنَ حُمِّلُوا التَّوْرٰىةَ ثُمَّ

لوئے دے. مثال دَ هغه کسانو چه ورکړے شویده (ذمه واری) دَ تورات بیا

لَمْ يَحْمِلُوْهَا كَمَثَلِ الْحِمَارِ يَحْمِلُ اَسْفَارًا ۭ بِئْسَ

ذمه واری ئے نه ده اداکړے پشان دَ حال دَ خر دے چه پورته کوی کتابونه . بد دے

باندے ترقیامته پورے. لَمَّا يَلْحَقُوْا بِهِمْ دَ دے هم دوه توجیه دی اوله دا چه نه وُو په زمانه دَ هغوی کښ او په هغوی پسے راځی، دویمه توجیه دا ده چه نه دی برابر شوی دَ صحابه کرامو سره په فضیلت اومرتبه کښ، دا توجیه آلوسی په روح المعانی کښ ذکر کړیده اگرچه لفظ دَ لَمَّا په معنیٰ اصلی سره (چه تراوسه پورے نه وی او امید ئے دَ کیدلو وی) دَ دے مناسب نه دے چه دا امید نیشته چه تابعین او روستنی خلق دِ دَ صحابه کرامو فضیلت ته اورسیږی. او په دے توجیه کښ اشاره ده چه یو تابعی اگرچه لوئے علم او تقویٰ والا وی دَ یو ادنیٰ صحابی مرتبے ته نشی رسیدلے لکه چه آلوسی ذکر کړیدی چه دَ عبدالله بن مبارک نه تپوس اوکړے شو چه عمر بن عبدالعزیز غوره دے او که معاویه رضی الله عنه نو هغه جواب کښ اُویل چه هغه دوړے او غُبار چه دَ معاویه رضی الله عنه دَ اس په پوزه کښ داخل شویدی (دا بهتر دی) هغه دَ الله تعالیٰ په نیز دَ سل عمر بن عبد العزیز نه افضل دی. (فائده) لفظ دَ فی الامیین په باره کښ سوال دے چه دا لفظ دلالت کوی چه زمونږ دَ نبی صلی الله علیه وسلم رسالت خاص دے په امیین (عرب) پورے اودَ دے وجے نه دَ ابن صیاد په روایت کښ راغلی دی چه هغه نبی صلی الله علیه وسلم ته ویلی وُو چه ته رسول ئے لیکن صرف رسول دَ امییانو ئے. جواب اول دا دے چه لفظ دَ اخرین په هر دواړو توجیهاتو سره دلالت کوی صراحتًا چه رسالت دَ هغه تولو عربو او عجمو ته عام دے. دویم جواب دا دے چه یو مَبْعُوْث فيهم او بل مبعوث اليهم دی په دے ایت کښ دَ مبعوث فيهم ذکر دے چه عرب دی او نبی تخاص قوم دَ عرب نه وُو او مبعوث اليهم په دے ایت کښ ذکر نه دی دَ هغے دَ پاره نور ایاتو نه شته لکه قُلْ يٰٓاَيُّهَا النَّاسُ اِنِّىْ رَسُوْلُ اللّٰهِ اِلَيْكُمْ جَمِيْعًا سورة اعراف ۱۵۸ او لِاُنْذِرَكُمْ بِهٖ وَمَنْۢ بَلَغَ سورة انعام ۱۹.

۲ په دیکښ رد دے په یهودیانو باندے چه هغوی رسالت پخپل قوم پورے خاص گنړلو. ذٰلِكَ اشاره ده بعثت دَ رسول الله صلی الله علیه وسلم ته په امیین کښ. (باقی په بل مخ)

مَثَلُ الْقَوْمِ الَّذِينَ كَذَّبُوا بِآيَاتِ اللَّهِ ؕ

مثال دَ هغه قوم چه دروغژن گنړی ایاتونه دَ الله تعالیٰ

وَاللَّهُ لَا يَهْدِي الْقَوْمَ الظَّالِمِينَ ﴿٥﴾ قُلْ

او الله تعالیٰ هدایت نه کوی قوم ظالمانو ته ۔ ته او وایه

يَا أَيُّهَا الَّذِينَ هَادُوا إِنْ زَعَمْتُمْ أَنَّكُمْ

اے یهودیانو که چرے تاسو دعویٰ کوئے چه یقیناً تاسو

یا مطلق وحی او نبوت ته يُؤْتِيهِ مَنْ يَشَاءُ لیکن دَ نورو نصوصو قطعیو نه ثابت ده چه دَ خاتم النبیین محمد رسول الله صلی الله علیه وسلم نه روستو هیچا له نوے نبوت نه ورکوی ۔
ف روستو دَ اثبات دَ صداقتِ رسول نه زجر دے منکر ینو دَ دغه رسول ته سره دَ علم نه او په یکښ رد دے دَ اولے دعوے دَ یهودیانو هغه دا چه دوی ویل چه تاسو امیین یئ او مونږ علماء او اهلِ کتاب یو نو مونږ ستاسو نه غوره یو نو مونږ باندے لازم نه ده چه رسول امّی باندے ایمان راوړو حاصل دَ رد دا دے چه عالم بے عمله خو دَ خر پشان دے دَ هغه هیڅ غوره والے نیشته ۔
حُمِّلُوا التَّوْرَاةَ تحمیل نه مراد مکلف کول دی په هغې باندے په عمل کولو سره او دَ هغې په بیان کولو سره یعنی دوی باندے ذمه واری کیخودے شوے وه چه دَ تورات علم به حاصلوی او په هغې باندے به عمل کوی او دَ هغې بیان به کوی ۔ ثُمَّ لَمْ يَحْمِلُوهَا یعنی دوی سره دَ علم دَ هغې نه عمل او نکړو او کتمان او تلبیس، تحریف یئ اوکړو ۔ كَمَثَلِ الْحِمَارِ يَحْمِلُ أَسْفَارًا دَ مثال تفصیل دا دے لکه خر باندے دَ غټو کتابونو بوجه کیخودے شی نو په ملا باندے بوجه وی او دَ دے ورله زحمت کوی او فائده ترینه هیڅ نشی اخستلے او کله دَ جهل دَ وجے نه دَ لارے په مینځ کښ لت شی نو لاره بنده کړی نو دارنګ هغه عالم دَ کتاب دَ الله تعالیٰ چه دَ هغې حفظ کوی او په لوستلو کښ یئ تکلیفونه تیروی لیکن عمل ور باندے نه کوی نو بوجه او تکلیف ور باندے پروت دے او فائده یئ هیڅ نیشته نه په دنیا کښ او نه په آخرت کښ او دا سے عالم کله دَ ضد او دَ حسد دَ وجے نه دَ حق والو سره مقابلے کوی او په حق لار کښ رکاوټ پیدا کوی ۔ أَسْفَارًا جمع دَ سفر ده غټ کتاب ته ویلے کیږی اشاره ده دا اوئے مُلا دے لیکن بے عمله دے دا ایت دَ عموم دَ الفاظو په وجه سره دَ دے امت بے عمله عالمانو ته هم شامل دے بلکه ابن قیم رحمه الله په اعلام الموقعین کښ ویلے دی چه هغه چا ته هم شامل دے چه حفظ دَ قران کوی ختمونه یئ کوی لیکن هیڅ تدبر او فکر پکښ نه کوی او اتباع یئ نه کوی او فیصلے ور باندے نه کوی او نه یئ په مطلب ځان پوهوی او په حدیث دَ مسند

أَوْلِيَاءُ لِلّٰهِ مِنْ دُوْنِ النَّاسِ فَتَمَنَّوُا الْمَوْتَ إِنْ كُنْتُمْ

دوستان دَ الله تعالیٰ يئ سيوا دَ نورو خلقو نه نو اوغواړئ مرګ كه چرے تاسو يئ

صٰدِقِيْنَ ۞ وَلَا يَتَمَنَّوْنَهٗۤ اَبَدًاۢ بِمَا قَدَّمَتْ اَيْدِيْهِمْ ۭ

رښتني . او نه غواړى دوى مرګ هيچرے په وجه دَ هغه عملونو چه مخكښ ليږلى دى لاسونو دَ دوى

وَاللّٰهُ عَلِيْمٌۢ بِالظّٰلِمِيْنَ ۞ قُلْ اِنَّ الْمَوْتَ الَّذِيْ

او الله تعالیٰ عالم دے په ظالمانو باندے . ته اُووايه يقيناً هغه مرګ

احمد كښ راغلى دى چه چا دَ جمعے دَ خطبے په وخت كښ خبرے كولے نو دَ دهٔ مثال پشان دَ خر دے چه كتابونه پورته كوى . بِئْسَ مَثَلُ الخ يعنى دا مثال په اصل كښ دَ مكذبينو دَ كتاب الله دَ پاره دے چه په تورات كښ ذكر دَ خاتم النبيين شته او دوى انكار كوى او په قرآن كښ توحيد شته او دوى انكار كوى ليكن انكار او تكذيب دَ يهوديانو او دَ هغوى پشان دَ علماء سوء په طريقه دَ تحريف او تلبيس او كتمان سره دے په صريح انكار سره نه دے . وَاللّٰهُ لَا يَهْدِي الْقَوْمَ الظّٰلِمِيْنَ په دے كښ اشاره ده چه دا سے عالمان خو ظالمان دى او دَ توفيق دَ هدايت نه محرومه دى .

ربط : په دے كښ رد دے په دويمه دعوىٰ دَ يهوديانو باندے هغه دا ده چه دوى ويل تاسو زمونږ پيغمبرانو له ذكر كوئے په مثال وركولو دَ حمار سره مونږ دَ الله تعالىٰ اولياء (دوستان) يو لكه په سورة مائده ۱۸ كښ او تاسو (اے مؤمنانو) په ګمراهئ كښ يئ نو دَ دے دعوے ترديد كوى په دعوت دَ مباهلے سره . هَادُوْا په معنىٰ دَ تهوّد وا سره دے يعنى دين دَ يهوديت يئ اختيار كړيدے . اَوْلِيَآءُ لِلّٰهِ په سورة بقره ۹۴ كښ اِنْ كَانَتْ لَكُمُ الدَّارُ الْاٰخِرَةُ عِنْدَ اللّٰهِ ذكر دے په دواړو كښ يو قسم ملازمه ده ځكه چه جنت والا دَ الله تعالىٰ دوستان دى او دا رنګ برعكس هم . ليكن په سورة بقره كښ بحث وو په دعوى دَ جنت باندے لكه په ۸۰ ۱۱۱ كښ دَ دے وجے نه هلته يئ دَ مباهلے په باره كښ دَ دوى دعوى دَ جنت ذكر كړيده او دلته صرف دَ دوى مقصد خپل فضيلت ښكاره كول وو او هغه متعلق دے په دعوى دَ ولايت پورے .

فَتَمَنَّوُا الْمَوْتَ ابن كثير ويلے دى چه دعا دَ مرګ اوغواړئ په ګمراه باندے دَ دواړو فريقونه او په سورة بقره كښ هم ابن كثير دا تفسير كړے دے . او ابن قيم هم په بدائع التفسير (دَ سورة بقره) كښ (پاڼے په بل مخ)

تَفِرُّوْنَ مِنْهُ فَاِنَّهٗ مُلٰقِيْكُمْ ثُمَّ تُرَدُّوْنَ

چه تاسو تخته کوئ د هغې نه یقیناً هغه ستاسو خه له راتلونکے دے بیا به اوګرځولے شئ تاسو

اِلٰى عٰلِمِ الْغَيْبِ وَالشَّهَادَةِ فَيُنَبِّئُكُمْ

هغه ذات ته چه عالم دے په هر پټ او ښکاره باندے نو خبر به درکړی تاسو له

بِمَا كُنْتُمْ تَعْمَلُوْنَ ۝ يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ

په هغه عملونو باندے چه تاسو به کوئ . اے ایمان

دا توجیه ذکر کړیده او دا مباهله د یهودیانو سره ده او په سورة العمران ۶۱ کښ مباهله د نصاری سره ده او په سورة مریم ۷۵ کښ مباهله د مشرکینو عوامو سره ده۔ او هر چه مشهور تفسیر د دے ایت دے نو په هغے باندے اعتراض دا دے چه په مینځ د ولایت او د دُعا د مرګ کښ ملازمه نیشته ځکه وجه نه انبیاء علیهم السلام یقیناً دوستان د الله تعالیٰ دی لیکن هغوی د مرګ تمنا نه ده کړے او دا رنګ په حدیث صحیح کښ وارد دی چه هیڅوک دِ د مرګ تمنا نه کوی او نه دے د مرګ دُعاګانے دپاره غواړی۔

وَلَا يَتَمَنَّوْنَهٗ اَبَدًا دا نفی د مباهلے کولو د یهودیانو ده۔

بِمَا قَدَّمَتْ اه یعنی یهودیان پوهیږی چه مونږ خو کافر او ګمراه یو او دا نبی په حقه باندے دے که مونږ د ده سره مباهله اوکړو نو تباه به شو. په سورة بقره ۹۵ کښ دا نفی ئے مؤکد کړیده په حرفِ لَنْ سره ځکه چه هلته دعویٰ د جنت د دوی په تاکید د لَنْ سره ده په دواړه ایاتونو کښ ۹۴، ۱۱۱ نو جواب د تاکید هم په تاکید سره مناسب وی۔

۸ په دے کښ تخویف دے چه په عدم تمنا د مرګ سره خو د مرګ نه بچ کیدلے نشئ نو ضرور ده چه تو به اوباسئ۔ تَفِرُّوْنَ مراد د فرار نه د مرګ تمنا نه کول دی او دا رنګ هر انسان چه میدانِ قتال نه تخته کوی د مرګ د ویرے نه یا چه د یو مقام او علاقے د طاعون نه د مرګ ویره وجه نه تخته کوی نو هغه هم په دے کښ داخل دی۔ فَاِنَّهٗ مُلٰقِيْكُمْ د دے په معنیٰ کښ تاکید دے په دے وجه سره چه لِقاء مخامخ راتللو ته ویلے کیږی یعنی په فرار سره انسان د هغه څخه نه بچ کیدلے شی چه رو ستو ورپسے راځی

اٰمَنُوْٓا اِذَا نُوْدِیَ لِلصَّلٰوةِ مِنْ یَّوْمِ الْجُمُعَةِ

والو کوم وخت چه آواز اوکړے شی د پاره د مونځ د ورځ د جمعے نه

فَاسْعَوْا اِلٰی ذِكْرِ اللّٰهِ وَذَرُوا الْبَیْعَ ؕ ذٰلِكُمْ

نو زر ځان اورسوئے ذکر د الله تعالیٰ ته او پریګدئے خرخول دا کار

خَیْرٌ لَّكُمْ اِنْ كُنْتُمْ تَعْلَمُوْنَ ۝۹

غوره دے تاسو لره که چرے تاسو پوهیږئے .

او مرګ خو دِغے نه راځی نو د دے نه فرار کول هیڅ فائده نه ورکوی .

سوال :- فَاِنَّهٗ کښ دَجزاء ده او شرط خو نیشته ؟

اول جواب دا دے چه موصول (الذی) کله کله متضمن وی معنیٰ دَ شرط لره یعنی اِنْ فَرَرْتُمْ مِنْهُ فَاِنَّهٗ مُلٰقِیْكُمْ .

دویم جواب دادے چه خبر دَ اِنَّ پټ دے او فَا دَ پاره دَ تعلیل ده یعنی هغه مرګ چه تاسو تری نه تیختہ غواړئے نشئ بچ کیدلے دَ هغے نه ځکه چه ستاسو مخے له رازی . ثُمَّ تُرَدُّوْنَ الخ په دیکښ بعث بعد الموت مراد دے او ثُمَّ دلالت کوی چه په مینځ دَ مرګ او دَ قیامت کښ ډیره موده شته چه هغه حالتِ برزخیه دے یا مراد دَ دے رد نه سوال او عذاب دَ قبر دے او ثم دَ پاره دَ ترتیب ده بغیر دَ تاخیر نه . عٰلِمِ الْغَیْبِ وَالشَّهَادَةِ دا صفتِ خاصه دَ الله تعالیٰ دے دَ دے وجے نه یئے موصوف حذف کړیدے .

ربط دَ دے آیت دَ ما قبل سره په ډیر و جوهو سره دے اوله دا چه دارد دے دَ یهودیانو په دریمه دعویٰ باندے چه دوی فخر کوو چه زمونږ دَ پاره ورځ دَ خالی دَ تعظیم شته او تاسو دَ هغے تعظیم نه کوئے !

حاصل جواب دا دے چه زمونږ دَ پاره هم ورځ دَ تعظیم شته چه ورځ دَ جُمعے ده او دا دَ الله تعالیٰ دَ طرف نه انتخاب دے او ستاسو ورځ دَ خالی خو ستاسو خپل انتخاب دے او بیا د رباندے الله تعالیٰ دَ هغے تعظیم فرض کړو لکه چه سورة نحل ۱۲۴ کښ ذکر دی . دویمه وجه دَ ربط دا ده چه یهودیان دَ دنیا دَ محبت دَ وجے دَ مرګ دَ ځایو نو نه تیختہ کوی لیکن مؤمنان دَ الله تعالیٰ دَ ذکر ځایو نو ته سعی کوی . دریمه وجه دادہ چه دَ

فَإِذَا قُضِيَتِ الصَّلٰوةُ فَانْتَشِرُوْا فِي الْأَرْضِ

| نو هركله چه پوره كړے شي | مونځ | نو خواره شئ | په | ملك كښې |
|---|---|---|---|---|

حماريت (خرتوب) دَ بهيميت نه دَ. ځكه چه كيدلو دَ ايمان په مقتضٰی باندے عمل اوكړے چه هغه دَ خير دَ پاره جمع كيدل دی۔
إِذَا نُوْدِيَ لِلصَّلٰوةِ مراد دَ نداء نه نداءِ شرعي ده چه هغه اذان شرعي دے ځكه ابن حجر رحمة الله فرمائيلي دي چه كلمات شرعيه به حمل كيدېشي په معانی شرعيو باندے خو پورے چه څه قرينه اړوونكے دَ هغے نه نه وی (فتح الباری) اومراد دَ دے نه هغه اذان دے چه كله خطيب په منبر باندے كيني نو دَ هغه مخے ته ويلے كيږی اوامام بخاری او نورو محدثينو ذكر كړيدی چه دَ نبی صلی الله عليه وسلم اوابوبكر او عمر رضی الله عنهما په زمانه كښې اول اذان دَ جمعے هغه وخت ويلے كيدو چه خطيب به په منبر باندے كيناستلو او حديث دَ ابوداؤد كښې دی چه دا اذان به په دروازه دَ مسجد كښې دَ امام مخامخ ويلے كيدلو۔ هركله چه دَ عثمان رضی الله عنه په زمانه كښې خلق ډير شول نو بل اذان ئے زيات كړو دَ مسجد نه بهر دَ يو كور دَ پاسه چه هغے ته زوراء ويلے كيدلو او مؤرخينو ليكلي دی چه هشام بن عبدالملك دا اذانِ عثمانی بيا په مسجد كښې داخل كړو۔ نو په دے ايت كښې په اتفاق سره مراد دَ اذان نه اذان دَ خطبے دے اگرچه اذانِ عثمانی هم سنت دَ خليفه دے هغے ته شرعًا بدعت نه ويلے كيږی۔
فائده : سورة مائده ۵۸ كښې اذان دَ عامو مونځونو دَ پاره دے او په دے ايت كښې اذان دَ جمعے دے په دليل دَ مِنْ يَّوْمِ الْجُمُعَةِ سره۔ او په ايت دَ سورة مائده كښې الی الصلٰوة ذكر دے او په دے ايت كښې للصلٰوة ذكر دے وجه دَ فرق (والله اعلم) داده چه دَ هر اذان او اقامت په مينځ كښې فاصله وی كم از كم دَ دوه ركعتونو په مقدار او اذان دَ خطبے دَ خطبے او مونځ سره متصل دے او خطبه هم په حكم دَ مونځ كښې ده نو لفظ دَ إِلٰى چه په انتها والی دلالت كوی دَ اول سره ئے ذكر كړو او حرف دَ لام چه په نزديكت دلالت كوی نو هغه ئے په دے ايت كښې راوړو۔
مِنْ يَّوْمِ الْجُمُعَةِ مِنْ په معنٰی دَ فِیْ سره دے ليكن په حرف دَ مِنْ راوړلو

وَابْتَغُوا مِنْ فَضْلِ اللّٰهِ وَاذْكُرُوا اللّٰهَ كَثِيرًا

او اولټوئ د فضل د الله تعالیٰ نه او یادوئ الله تعالیٰ لره ډیر

کښې اشاره ده چه د ورځ د جُمعے په بعض حصّه کښې دا اذان دے چه هغه وخت ظهر دے د ټولے ورځ د جمعے اذان نه مراد نه دی۔

فَاسْعَوْا اِلٰى ذِكْرِ اللّٰهِ (سوال) سعی منډه وهلو ته وئیلے کیږی او په حدیث صحیح کښې خو منع شویده چه څوک دے مونځ کولو د پاره منډے نه وهی بلکې په عادت سره د رفتار کوی؟

جواب:۔ سعی نه مراد دلته کوشش کول او اهتمام کول او تیاری کول دی او حسن بصری نه روایت دے چه دے ته سعی بالقلب والنیة وئیلے کیږی لکه چه په سورة اسراء ۱۹ او سورة نجم ۳۹ او سورة اللیل ۴ کښې راغلے دی۔ نو په فَاسْعَوْا کښې هغه اعمالو ته اشاره ده کوم چه د صلوٰة جمعے د تیارئ د پاره په سنت سره ثابت دی لکه غسل کول، خوشبوئی لګول، مسواک کول، پاکې جامے اغوستل، د وخته مسجد ته تلل، امام ته نزدے اودریدل وغیره۔

ذِكْرِ اللّٰهِ مراد د دے نه اول خطبه ده او بیا صلوٰة دے د دوی په مینځ کښې بل عمل نیشته دے۔ او ذکر د الله تعالیٰ عام دے قرآن لوستل، حدیث ذکر کول، خلقو ته د دین د الله تعالیٰ احکام بیانول، مونځ کول دا ټول ذکرالله ته شامل دی او په ټولو کښې سنت طریقه شرط ده۔

وَذَرُوا الْبَيْعَ مراد د دے هر هغه شغل دے چه منع کوونکے دے خطبے ته د رسیدلو او اوریدلو نه لکه غفلت، ملازمت، زمینداری، تجارت ټول پکښې داخل دی او تخصیص د بیع ئے د دے وجے نه او کړه چه د جمعے په ورځ اکثر خلق د بانډو نه راغلی وی هغه په سودا اخستلو کښې مشغولیږی نو خرڅوونکو ته او وئیلے شول چه تاسو خرڅول پریږدے نو چه بیع نه وی نو شِراء هم نشی کیدلے۔ او دا دلیل دے چه دا اشغال کول روستو د دویم اذان نه حرام دی۔ او اشاره ده چه د مؤمن د پاره دین اهم دے د دنیا د کارونو نه۔

ذَرُوا دا هغه ځائے استعمالیږی چه د یو کار باعث موجود وی یا شوروع وی لیکن پریخودلے شی یعنی که بیع شوروع وی لیکن د اذان ثانی راپاڅے په بل مخ)

لَعَلَّكُمْ تُفْلِحُوْنَ ۝۱۰ وَاِذَا رَاَوْا تِجَارَةً

دَ دے دپاره چه کامیاب شئ . او هر کله چه دوی اوینی تجارت

اَوْ لَهْوَا انْفَضُّوْٓا اِلَيْهَا وَتَرَكُوْكَ قَآئِمًا ؕ

یا لوبے نو روان شی دوی هغے ته او پریګدی تا لره او لاړ

"او ریدل او سره په پریخودلے کیږی .

ذٰلِكُمْ خَيْرٌ لَّكُمْ دا اشاره د ه مجموعه ما قبل ته سعی کول او بیع او نور مشاغل پریخودل او خطبه اوریدل او مونځ کول خَيْرٌ اسم تفضیل د ے یا صفت مشبه دَه .

سنه په د ے کښ اشاره ده فرق ته په مینځ دَ احترام دَ ورځ دَ جمعے په دین زمونږ کښ او احترام دَ سبت په نیز دَ یهودیانو چه په هغوی باندے دَ سبت ټوله ورځ کښ کار دَ دُنیا حرام وُو او زمونږ په دین کښ روستو دَ فراغ دَ مونځ دَ جُمعے ته امر د ے په تجارت او طلب دَ روزئ سره .

فَاِذَا قُضِيَتِ مراد دَ قضا نه اداکول او پوره کول دَ مونځ دَ جُمعے د ے او په دے کښ سنّتِ بعدیه داخل دی او قاسمی ویلی دی چه روستو دَ مونځ دَ جمعے نه څلور رکعته دَ ماسپخین رچه هغے ته احتیاطی مونځ ویلے کیږی) دا مذهبی تعصب او بے دلیله عمل د ے .

فَانْتَشِرُوْا فِي الْاَرْضِ مراد په امر سره وجوب دَ انتشار نه د ے بلکه مخالفت کول دی دَ اهلِ کتابو ته په تعطیل دَ ورځ دَ خالی او اتوار کښ .

وَابْتَغُوْا مِنْ فَضْلِ اللّٰهِ عام د ے تجارت کول ، عیادت دَ بیمار ، ملاقات دَ رور مسلمان او طلب دَ علم ټولو ته شامل د ے .

وَاذْكُرُوا اللّٰهَ كَثِيْرًا مراد دا چه هیڅ وخت دَ الله تعالیٰ دَ یادداشت نه غفلت مه کوئ په ژبه او په زړه او په طاعت سره . او مونځ دَ ماز یګر ته هم اشاره ده .

او کثرةِ ذکر په توحید او اخلاص او موافق دَ سنت سره راځی .

قُلْ مَا عِنْدَ اللّٰهِ خَيْرٌ مِّنَ اللَّهْوِ وَمِنَ

ته اوایه هغه ثواب چه دَ الله تعالیٰ سره دے غوره دے دَ لوبو او دَ

التِّجَارَةِ ۚ وَاللّٰهُ خَيْرُ الرّٰزِقِيْنَ ﴿۱۱﴾

تجارت نه او الله تعالیٰ غوره دے دَ روزئے ورکوونکو نه۔



سلا په دے کښ زورنه ده په یو عمل سره چه دَ صحابه کرامو نه صادر شوے وُ چه دَ خطبے دَ نبی صلی الله علیه وسلم په وخت کښ هغوی تجارتی سامان ته خواره شول صرف دولس کسان پاتے شول۔ داخو په هغه وخت کښ گناه نه وو ځکه چه دَ دغه وخت نه مخکښ الله تعالیٰ داسے حکم نه وُو رالیږلے لیکن تنبیه شوه دَ ائینده وخت دَ پاره۔ تو په دے کښ اشاره ده چه اوریدل دَ خطبے دَ جمعے واجب دی۔ لَهْوًا عام دے هر عمل دنیوی ته شامل دے که مباح وی او که ناجائز وی۔

قَآئِمًا په دے کښ اشاره ده چه خطبه په ولاړے بانداے ویل سنت دَ نبی صلی الله علیه وسلم دی۔

قُلْ مَا عِنْدَ اللّٰهِ خَيْرٌ الخ یعنی هغه اجر او ثواب چه اوریدلو دَ خطبے او په جماعت سره مونځ اداکولو کښ دَیا هغه رزق چه په شرعی طریقے سره حاصل کړیشی وَاللّٰهُ خَيْرُ الرّٰزِقِيْنَ اشاره ده چه روزی په اختیار دَ الله تعالیٰ کښ ده نو دَ هغه په طاعت سره به غوره روزی حاصلیږی۔ خَيْرِيَّة نه مراد حلال او دَ برکت روزی ده په دُنیا او اخرت کښ۔

الحمد لله چه ختم شو تفسیر دَ سورة جمعه په توفیق دَ هغه سره۔

---

| سُورَةُ الْمُنٰفِقُوْنَ ۶۳ مَدَنِيَّةٌ ۱۰۴ | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | اٰيَاتُهَا ۱۱ رُكُوْعَاتُهَا ۲ |
| --- | --- | --- |

إِذَا جَآءَكَ الْمُنٰفِقُوْنَ قَالُوْا نَشْهَدُ إِنَّكَ

هر كله چه راشي تاته منافقان دوی وائي گواهي كوو مونږ چه يقيناً ته

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

## سورة المنافقون

ربط دَ دے سورت دَ ماقبل سره په ډیرو وجوهو دے اوله وجه دا چه په سورة جمعه کښ رد وو په دروغو دَ یهودیانو باندے نو په دے سورت کښ رد دے په دروغو دَ منافقانو باندے. دویمه وجه دا چه په هغه سورت کښ زجر دے په یهودیانو باندے او په دے سورت کښ زجر دے په منافقانو باندے. دریمه وجه په هغه سورت کښ ئے اوفرمائیل چه دَ لهو په وجے سره خطبه اوریدل مه پریږدئ نو په دے سورت کښ فرمائیلی دی چه مالونه او اولاد تاسو لره دَ ذکر دَ اللّٰه تعالیٰ نه مشغول نه کړی. څلورمه وجه دا چه په هغه سورت کښ صداقت دَ رسول اللّٰه صلی اللّٰه علیه وسلم ذکر شو نو په دے سورت کښ رد دے په هغه چا باندے چه اقرار په رسالت دَ هغه باندے په دروغه سره کوی.

دعوی دَ سورت. زجر دے په منافقانو باندے په منع کولو سره دَ انفاق نه خصوصًا او په نورو قبائحو سره عمومًا.

خلاصه دَ سورت. رد دے اولاً په شهادت دَ رسالت باندے په دروغه سره او بیا اتلس قبائح دَ هغوی ذکر کوی. او بیا منع کوی مؤمنانو لره دَ تشبیه دَ منافقانو نه په اشتغال دَ مال او اولاد سره او ترغیب دے انفاق کولو ته مخکښ دَ راتللو دَ مرګ نه.

لَرَسُوْلُ اللّٰهِ ۘ وَاللّٰهُ يَعْلَمُ اِنَّكَ لَرَسُوْلُهٗ ؕ

خامخا رسول دَ الله تعالیٰ یې او الله تعالیٰ پوهه دے چه یقیناً ته خامخا رسول دَ هغه یې

وَاللّٰهُ يَشْهَدُ اِنَّ الْمُنٰفِقِيْنَ لَكٰذِبُوْنَ ۝۱

او الله تعالیٰ گواهی کوی چه یقیناً منافقان خامخا دروغژن دی ۔

تفسیر : په دے ایت کښ تعریف دَ منافق ته اشاره ده چه مخامخ شهادت دَحق کوی او په باطن کښ منکروی او دَهغوی یو وصف ذکرکوی یعنی دوی دروغ وائی ۔

قَالُوْا نَشْهَدُ اه شهادتِ شرعیه موافقت دَ زړه او دَ ژبے دے لیکن دوی چه داکامه ویله نو صرف مشابهت یې کوؤ دَ مؤمنانو سره چه هغوی اَشْهَدُ او نَشْهَدُ وائی یا مراد دَدوی دَ شهادت نه قسم کول دی ۔

وَاللّٰهُ يَعْلَمُ اه دا جمله معترضه ده دَپاره دَ دفع دَ وهم ، هغه دادے چه روستو جمله کښ الله تعالیٰ دَ دوی تکذیب کړے دے نو ایا دا پیغمبر دَ الله تعالیٰ رسول نه دے ؟ نو جواب او شو چه یقیناً دے ! دَ الله تعالیٰ رسول دے ۔

وَاللّٰهُ يَشْهَدُ اِنَّ الْمُنٰفِقِيْنَ لَكٰذِبُوْنَ ، (سوال) قول دَمنافقانو چه اِنَّكَ لَرَسُوْلُ اللّٰهِ داخو حق او رشتیا وؤ نو څه رنگ اوویلے شو چه دوی دروغژن دی ؟ جواب په دیرو وجوهو سره دے ! اوله وجه داده چه شهادت موافقت دَ ژبے او دَ زړه ته ویلے کیږی او دَ منافقانو زړه دَ ژبے سره موافق نه دے نو دا شهادت نه دے او حال دا چه دوی هغے ته نوم دَ شهادت وائی نو دا دروغ دی ۔

دویمه وجه داده چه دوی په خپل زغم کښ دروغژن دی یعنی دَ دوی په نیز اِنَّكَ لَرَسُوْلُ اللّٰهِ دَ واقع نه خلاف دے او خلاف دَ واقع نه دروغ وی ۔ دریمه وجه داده چه دلته دَ کاذبون نه مراد کذب په دے جمله کښ مراد نه دے (اِنَّكَ لَرَسُوْلُ اللّٰهِ) بلکه دَ دے ایت په تفسیر کښ مفسرینو واقعه لیکلے ده چه دوی ویلے وؤ چه لَيُخْرِجَنَّ الْاَعَزُّ مِنْهَا الْاَذَلَّ (رلکه چه روستو به راشی) لیکن هرکله چه دوی دَ رسول الله صلی الله علیه وسلم مخے ته راغلل نو دوی قسمونه کول چه مونږ دا وینا نه ده کړے نو انکار یې دَ خپل قول نه اوکړو نو دا یې کذب دے ۔

اِتَّخَذُوْٓا اَيْمَانَهُمْ جُنَّةً فَصَدُّوْا عَنْ

گرځولے دی دوی قسمونه خپل ډال نو منع شول (منع کوی) دَ

سَبِيْلِ اللّٰهِ ؕ اِنَّهُمْ سَآءَ مَا كَانُوْا يَعْمَلُوْنَ ②

لارے دَ الله تعالیٰ نه یقینًا دوی بد دی هغه عملونه چه دوی کوی۔

ذٰلِكَ بِاَنَّهُمْ اٰمَنُوْا ثُمَّ كَفَرُوْا فَطُبِعَ عَلٰى

دا په دے وجے سره چه دوی ایمان راوړے دے بیا ئے کفر کړے دے نو مهر وهلے شویدے په

قُلُوْبِهِمْ فَهُمْ لَا يَفْقَهُوْنَ ③ وَاِذَا رَاَيْتَهُمْ

زړونو دَ دوی باندے نو دوی نه پوهیږی۔ او هرکله چه ته اُوینے دوی لره

۲ په دیکښ دَ دوی درے خصلتونه ذکر کوی دا ټول په سورة مجادله ۱۶ کښ هم ذکر دی۔ اَيْمَانَهُمْ هرکله چه نشهادت ئے وئیل په نیت دَ قسم سره او دا قسم دے لکه چه دَ اکثرا هل علم مذهب دے دَ دے وجے نه په دے ایت کښ دَ هغے نه تعبیر اوکړے شو په اَيْمَان سره او صیغه دَ جمع دَ دے وجے نه ذکر کړه چه دَ دوی دا سے قسمونه کول ډیر وو۔ جُنَّةً لکه چه په ډال سره انسان ځان دَ ګذار دَ تورے او نیزے وغیر نه بچ کوی نو دا رنګ دوی په دے قسمونو سره ځان دَ سزا دنیوی او دَ قتال او دَ مؤمنانو دَ زورنے نه بچ کوی۔

فَصَدُّوْا عَنْ سَبِيْلِ اللّٰهِ، صد لازمی او متعدی دواړه صحیح دے په لازمی معنیٰ سره مقصد دا دے چه په دروغ قسمونو سره دوی دَ حق نه محروم شول ځکه چه اصرار کول په ګناه باندے قصدًا سبب دے دَ محرومیدلو دَ حق لارے نه۔ او په متعدی معنیٰ سره مطلب دا دے چه په دروغ قسمونو سره خلقو لره دهوکه ورکوی نو لار دَ توحید او سنت نه ئے اړوی ځکه چه هغوی ور باندے دَ رشتینی ګمان کوی۔

۳ په دے ایت کښ دَ دوی درے اوصاف ذکر کوی۔ ذٰلِكَ اشاره ده حکم دَ نفاق ته په دوی باندے په اول ایت کښ یا اشاره ده ټول ماقبل ته یعنی نفاق، دروغ ویل، قسم کول په دروغه، دَ دین نه خلق اړول، بد عملونه کول۔ بِاَنَّهُمْ اٰمَنُوْا ثُمَّ كَفَرُوْا مراد دَ دے نه یو ځل ایمان او

تُعۡجِبُكَ اَجۡسَامُهُمۡ ؕ وَاِنۡ يَّقُوۡلُوۡا تَسۡمَعۡ

تو به تعجب کښې به واچوی تا لره تنې دَ دوی او که چرې دوی وینا کوی نو غوږ به کیږدې ته

لِقَوۡلِهِمۡ ؕ كَاَنَّهُمۡ خُشُبٌ مُّسَنَّدَةٌ ؕ يَحۡسَبُوۡنَ

وینا دَ دوی ته گویا چه دوی لرگی دی ارم کړے شوی دیوال ته گمان کوی دوی

كُلَّ صَيۡحَةٍ عَلَيۡهِمۡ ؕ هُمُ الۡعَدُوُّ فَاحۡذَرۡهُمۡ ؕ

دَ هرے چغې په ځان باندے هم دوی پوره دُشمنان دی نو ځان اوساتے دَ دوی نه

قٰتَلَهُمُ اللّٰهُ ۚ اَنّٰى يُؤۡفَكُوۡنَ ۞ وَاِذَا قِيۡلَ

تباه دِ کړی دوی لره الله تعالیٰ نو څه رنگ اړولے شی دوی (دَ حق نه) ۔ او کوم وخت چه اویلے شی

کفر نه دے بلکه کثرت او تکرار مراد دے یعنی هر وخت ایمان ښکاره کوی نو بیا دَ کفر کار کوی نو بیا بیا داسے کوی لکه په سورة نساء ۱۳۷ کښې ۔ او دا سبب دے دَ پاره دَ طبع او مُهر په زړونو باندے دَ دے وجے نه ئے ذکر کړه په فَطُبِعَ کښې او مُهر سبب دے دَ پاره دَ جهل دَ دے وجے نه ئے راوړه په فَهُمۡ لَا يَفۡقَهُوۡنَ کښې، هغه علم چه په هغے سره دَ حق او باطل تمیز کیږی هغه فقاهت دے او دَ دے نه منافق محروم دے ۔

سـ په دے ایت کښې پنځه اوصاف دَ منافقانو ذکر دی ۔ تُعۡجِبُكَ اَجۡسَامُهُمۡ یعنی دَ دوی بدنونه غټ دی او صحت والا دی مقصد دا چه دوی هر وخت دَ بدن په اصلاح کښې او په قسم قسم خوراکونو کښې مشغول دی غذائے روحانی ته توجه نه کوی ۔ تَسۡمَعۡ لِقَوۡلِهِمۡ یعنی دوی دَ دنیا په خبرو کښې ډیر فصیح بلیغ دی او ریا ونکو کښې کشش پیدا کوی لکه چه سورة بقره ۲۰۴ کښې ذکر دی او مراد دَ قولهم نه دَ دنیا دَ خبرو په باره کښې خبرے کول دی ځکه چه يَعۡلَمُوۡنَ ظَاهِرًا مِّنَ الۡحَيٰوةِ الدُّنۡيَا (سورة روم ۷) ۔ كَاَنَّهُمۡ خُشُبٌ مُّسَنَّدَةٌ داسے لرگے چه دیوال ته اودرولے شوے وی نو هغه بے فائدے وی ، دننه ډډ وی (یعنی مینځ ئے تش وی) کمزورے وی او یو طرف ئے لوند او بل طرف ئے اوچ وی ۔ دَ ابادئے او دَ فائدے دَ خیزونو جوړولو دَ پاره صلاحیت نه لری او ظاهر کښې غټ (پاتے په بل مخ)

لَهُمْ تَعَالَوْا يَسْتَغْفِرْ لَكُمْ رَسُوْلُ اللهِ

دوی ته راشئ چه بخنه اوغواړی تاسو لره رسول الله (صلی الله علیه وسلم)

لَوَّوْا رُءُوْسَهُمْ وَرَاَيْتَهُمْ يَصُدُّوْنَ

داړوی دوی سرونه خپل او اُوینے به ته دوی لره چه مخ اړوی

وَهُمْ مُّسْتَكْبِرُوْنَ ۝۵ سَوَآءٌ عَلَيْهِمْ

او دوی لوئی کوؤنکی دی . برابره خبره ده په دوی باندے

خاشته بنکاری نو د غسے حال دَ منافق دے یعنی دَ دۀ بدن هم غټ وی ټول اهتمام دَ بدن په خړبولو باندے کوی لکه چه حدیث ر خیرالقرون ) کښی راغلی دی یُحِبُّوْنَ السَّمَانَةَ (خوبنوی په څوربَ والے).

يَحْسَبُوْنَ كُلَّ صَيْحَةٍ عَلَيْهِمْ په دے کښی اشاره ده چه سرۀ دَ غټ والی بدنونو اودَ چالاکے دَ زړے ته ډیر بزدل دی . صَيْحَةٌ ، اعلان عذاب، ایا تو ته دَ تخویف دنیوی او اخروی ، زواجر ، دے ټولو ته صیحه شامل ده نو دوی گمان کوی چه دا ایا تونه زموږ په باره کښ دی او ویریږی چه زموږ رازونه چرته بنکاره نشی سورۃ توبه ۶۴ کښ . هُمُ الْعَدُوُّ الف لام دلالت کوی په کمال باندے یعنی په دوی کښ دَ دوستانے هیڅ جهت باقی نه دے پوره دُښمنان دَ توحید او دَ سنّت دی . قَاتَلَهُمُ اللهُ دا جمله خبریه په بخپله معنی سره ده یا په معنی دَ دُعا ده او مراد دَ دے نه لعنت او هلاکت دے ځکه چه قتال دَ الله تعالی سره مستلزم دے دَ هغه تباهی او لعنت لره .

اَنّٰى يُؤْفَكُوْنَ یعنی سرۀ دَ وضاحت دَ دلیلونو دَ حق نه دوی په کوم دلیل سره دَ حق نه بل طرف ته اوړیدلے کیدیشی .

۵ په دے ایت کښ درے اوصاف دَ هغوی ذکرکوی او دلالت کوی په اصرار کولو دَ دوی په گناه باندے . وَاِذَا قِيْلَ صیغه دَ مجهول دَ پاره دَ تعمیم دَ قاتل او دَ وخت دَ پاره ده . تَعَالَوْا دا ماخوذ دے دَ علو نه په هغه ځائے کښ استعمالیږی چه ترقئ ادا اوچت والی طرف ته دعوت وی نو دَ رسول الله صلی الله علیه وسلم مجلس ته راتلل او دَ هغه دُعا او استغفار غوښتل دا لویه مرتبه حاصلول دی .

أَسْتَغْفَرْتَ لَهُمْ أَمْ لَمْ تَسْتَغْفِرْ لَهُمْ ؕ

که ته بخښنه غواړې دوی لره یا بخښنه نه غواړې دوی لره

لَنْ يَّغْفِرَ اللّٰهُ لَهُمْ ؕ اِنَّ اللّٰهَ لَا يَهْدِی

هیڅکله بخښنه نه کوی الله تعالیٰ دوی ته یقیناً الله تعالیٰ هدایت نه کوی

الْقَوْمَ الْفٰسِقِيْنَ ⑥ هُمُ الَّذِيْنَ يَقُوْلُوْنَ

قوم ډیر نافرمانو ته - دوی داسې خلق دی چه دوی وائی

لَا تُنْفِقُوْا عَلٰی مَنْ عِنْدَ رَسُوْلِ اللّٰهِ

خرچ مه کوئ په هغه چاچه د رسول الله (صلی الله علیه وسلم) سره دی

حَتّٰی يَنْفَضُّوْا ؕ وَلِلّٰهِ خَزَآئِنُ السَّمٰوٰتِ

ترڅو پورې چه خواره واره شی او خاص الله تعالیٰ لره خزانې دی د اسمانونو

لَوَّوْا رُءُوْسَهُمْ اړول د مخ او د سر په نفرت او سرکشئ سره يَصُدُّوْنَ په دې کښ معنی د اعراض ده سره د روانیدلو نه بل جانب ته په طریقه د انکار سره او دا صفت د منافقانو وخت په وخت نوې نوې پیدا کیږی د دې وجې نه په صیغه د مستقبل سره ئې ذکر کړو -

وَهُمْ مُّسْتَكْبِرُوْنَ دا صفت علت دے د پاره د ماقبل او استکبار کښ معنی د تحقیر او د سپک ګنړلو ده یعنی رسول الله صلی الله علیه وسلم ته راتلل او د هغه دُعا غوښتل سپک ګنړی او دا صریح کفر دے -

ستا په دے کښ د دوی یو وصف ذکر کوی یعنی هر کله چه ذکر شوه چه دوی ښکاره کفر کوی او استغفار هم نه غواړی نو د داسې انسان د پاره دُعا د نبی صلی الله علیه وسلم هم فائده نه ورکوی لکه چه سورة توبه سـ۸ کښ تیر شویدی -

الْفٰسِقِيْنَ هغه کسان دی چه د فسق کولو نه توبه نه کوی او دوی اصرار او ضد کوی په دے وجه د هدایت او توفیق او مغفرت نه محروم دی -

وَالْاَرْضِ وَلٰكِنَّ الْمُنٰفِقِيْنَ لَا يَفْقَهُوْنَ ⑦

| او دَ زمکے | او لیکن | منافقان | نه | پوهیږي . |
|---|---|---|---|---|

ک په دے ایت کښې دَ دوی دوه وصفونه ذکر کوی او په مینځ کښې رد کوی دَ دوی په قول باندے .

هُمُ الَّذِيْنَ بغیر دَ عطف نه ئے ذکر کړي دے ځکه دا علت دَ فسق دَ دوی دے یعنی ځنې هم بخل کوی او نورو ته په بخل سره امر کوی لکه په سورة نساء ۳۷ کښې دی او ځنې دَ نبی صلّی الله علیه وسلّم نه مخ اړوی او نور ترینه هم په یو حیله سره شړي .

مَنْ عِنْدَ رَسُوْلِ اللّٰهِ دا قول دَ منافقانو دے ځکه چه دوی په ظاهرًا هغه ته رسول وئیل یا دا تعبیر دَ الله تعالٰی دے دَ دوی دَ ډیر تقبیح دَ پاره یعنی دَ رسول الله دَ خوا نه خلق شړل خو ډیره لویه بداخلاقی ده .

حَتّٰى يَنْفَضُّوْا یعنی دَ لوږے دَ وجے نه په لاړ شی او خواره په شی او دا دَ دُنیا پرستو او دَ جاهلانو طریقه ده چه هر څیز صرف په ظاهری اسبابو پورے تړی او دَ الله تعالٰی دَ ربوبیت او الوهیت نه غافل وی او دا رنګ دَ دے وستو جاهلانو هم دا عقیده ده چه دے اهل حق خلقو دَ خوراک او دَ خپلو دنیوی مفاداتو دَ پاره حق قبول کړے دے اوس هم په مشرکانو او مبتدعینو او جاهلانو کښې دا عقیده موجود دی .

وَلِلّٰهِ خَزَآئِنُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ دا رد دے دَ دوی په قول او په دغه عقیده باطله باندے . مراد دا دے چه دَ روزئ او دَ هغے دَ اسبابو ( چه بارانونه او اونے بوټی وغیره دی ) ټول په اختیار دَ الله تعالٰی کښې دی او هغه بے انتها خزانے دی چه نه کمیږي او الله تعالٰی دَ هغے دَ خرچ کولو نه هم ویره نه کوی لکه سورة اسراء ۱۰۰ او سورة حجر ۲۱ کښې ذکر شوی دی .

وَلٰكِنَّ الْمُنٰفِقِيْنَ لَا يَفْقَهُوْنَ فقاهت دا دے چه دَ ظاهری الفاظو او معانی نه باطنی احکام او اسرار او حکمتونه معلوموے نو چه دَ رزق دَ پاره صرف ظاهری اسبابو ته ګوری او دَ مسبب حقیقی نه غافل وی نو په دا سے شخص کښې فقاهت نیشته .

يَقُولُونَ لَئِن رَّجَعْنَا إِلَى الْمَدِينَةِ

دوی وائی که چرے واپس شو موږ مدینے ته

لَيُخْرِجَنَّ الْأَعَزُّ مِنْهَا الْأَذَلَّ ۚ وَلِلَّهِ الْعِزَّةُ

ضرور او به باسی عزتمند د هغې نه ذلیل لره او خاص الله تعالیٰ لره صفت د عزت دے

وَلِرَسُولِهِ وَلِلْمُؤْمِنِينَ وَلَٰكِنَّ الْمُنَافِقِينَ

او رسول لره (صفت د عزت دے) او مؤمنانو لره (صفت د عزت دے) او لیکن منافقان

لَا يَعْلَمُونَ ⑧ يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لَا تُلْهِكُمْ

نه پوهیږی . اے ایمان والو غافل دِ نکړی تاسو لره

ف په دے ایت کښ دوه اوصاف دَ منافقانو دی . تیر شوی ایت کښ معلومه شوه چه په مال سره بخل کوی نو په دے ایت کښ ذکر کوی چه مال سبب دَ عزت گنړی . يَقُولُونَ دلته ئے لفظ دَ هم نه دے ویلے اشاره ده چه تیر شوے قول دوی هر وخت کوؤ او دا قول ئے یو ځل کړے دے .

لَئِن رَّجَعْنَا دا واقعه دَ غزوه بنی مصطلق نه په واپسے کښ ده او هغے ته مریسیع هم ویلے کیږی . لَيُخْرِجَنَّ الْأَعَزُّ اه دَ اعز نه مراد عبد الله بن اُبَیْ منافق وؤ مالدار وؤ او مال ئے سبب دَ عزت گنړلو او د اذل نه دوی رسول الله صلی الله علیه وسلم مراد کړے وؤ او دا صریح کفر دے .

وَلِلَّهِ الْعِزَّةُ اه دا تردید دے دَ عقیدے دَ دوی او عزت خو په اختیار دَ الله تعالیٰ کښ دے او عزت حاصلیږی په ایمان او تقویٰ سره او دا صفتونه دَ رسول او دَ مؤمنانو دی .

سوال :- په سورة نساء ۱۳۹ او فاطر ۱۰ کښ تخصیص دَ عزت په الله تعالیٰ پورے کړے شوے دے او په دے ایت کښ ورسره رسول او مؤمنان هم ذکر شو ؟

جواب :- په هغه دواړه ایاتونو کښ مراد دَ اختیار دَ عزت دے او هغه خاص دے په الله تعالیٰ پورے او په دے ایت کښ مراد توصیف دے په عزت سره یعنی موصوف په عزت سره الله تعالیٰ ( پاتے په بل مخ )

أَمْوَالُكُمْ وَلَآ أَوْلَادُكُمْ عَنْ ذِكْرِ اللّٰهِ ۚ وَمَنْ

مالونه ستاسو او نه اولاد ستاسو دَ ذکر دَ الله تعالیٰ نه او چا چه

يَّفْعَلْ ذٰلِكَ فَأُولٰٓئِكَ هُمُ الْخٰسِرُوْنَ ۝٩

اوکړو دا کار نو دغه کسان دوی پوره تاوان والا دی۔

اورسول او مؤمنان دی منافقانو اوکافرانو لره په نیز دَ الله تعالیٰ هیڅ عزت نیشته دے۔ بیا دَ درے وارو سره حرف دَلام ئے جدا جدا ذکر کړے دے اشاره ده چه دَ دوی په عزت کښ دَ یو بل سره ډیر فرق دے۔

وَلٰكِنَّ الْمُنٰفِقِيْنَ لَا يَعْلَمُوْنَ فقاهت خاص دے دَعلم نه نو دا ترقی ده په قباحت دَ دوی کښ یعنی فقاهت خو څه چه علم هم په دوی کښ نیشته او علم استعمالیږی په امور ظاهری او باطنی دواړو کښ او فقه صرف امور باطنه کښ استعمالیږی نو نظر کول خزانو دَ الله تعالیٰ ته دا فقاهت دے او عزت او ذلت خو ظاهری څیزونه دی نو په دے کښ علم استعمال کړے دے۔

سو هر کله چه دَ منافقانو قبائح ذکر کړے شول نو اوس مؤمنانو لره تحذیر ورکوی دَ اوصافو دَ منافقانو نه۔ اوهر کله چه سبب دَ دغه قباحتونو اشتغال او فخر کول دی په مال او په اولاد سره نو خصوصًا دَ هغے دَ اشتغال نه نهی کوی۔

عَنْ ذِكْرِ اللّٰهِ مراد دَ ذکر نه طاعت دے توحید، اتباع سنت، پابندی دَ مونځ او قراءة دَ قرآن ټول په دے کښ داخل دی۔

وَمَنْ يَّفْعَلْ ذٰلِكَ دا اشاره ده ترک دَ ذکر الله ته په سبب دَ مال او اولاد سره۔

او دَ دینه معلومه شوه چه قباحت دَ مالونو دَ دُنیا فی نفسها نیشته بلکه په دے سبب ئے قباحت دے چه دَ دین دَ الله تعالیٰ نه مانع اوګرځی۔

الْخٰسِرُوْنَ وجه دَ خسران دا ده چه دوی باقی لره تباه کړو په فانی څیز سره او عمر (رأس المال) ئے تباه شو۔

وَاَنۡفِقُوۡا مِنۡ مَّا رَزَقۡنٰكُمۡ مِّنۡ قَبۡلِ

او خرچ کوئ دَ هغه نه چه مونږ درکړے دی تاسو ته مخکښ

اَنۡ يَّاۡتِىَ اَحَدَكُمُ الۡمَوۡتُ فَيَقُوۡلَ رَبِّ

دَ دے نه چه راشي یو تن ستاسو ته مرګ نو وائي به اے ربه زما

لَوۡلَاۤ اَخَّرۡتَنِىۡۤ اِلٰۤى اَجَلٍ قَرِيۡبٍ ۙ فَاَصَّدَّقَ

ولے نه روستو کوے ته ما لره تر یو نیټې نزدے پورے نو زه به صدقه اوکړم

وَاَكُنۡ مِّنَ الصّٰلِحِيۡنَ ﴿۱۰﴾ وَلَنۡ يُّؤَخِّرَ اللّٰهُ

او شم به زهٔ دَ نیکانو نه . او هیچرے نه روستو کوی الله تعالیٰ

سنا دا ترغیب دے انفاق ته په وخت دَ قبولیت دَ هغے کښ رچه قبل الموت دے)
او انفاق دَ ذکر الله یو خاص فرد دے په مقابل دَ منافقینو کښ چه هغوی دَ انفاق
نه منع کوله. او مراد دَ انفقوا نه عام دے زکوٰة، صدقات واجبه، انفاق فی سبیل
الله ټولو ته شامل دے.

مِنۡ قَبۡلِ اَنۡ يَّاۡتِىَ اَحَدَكُمُ الۡمَوۡتُ دَ مرګ دَ راتللو وخت نه دے معلوم نو مراد دَ
دے نه تعجیل کول دی په انفاق کښ چه کله ئے وس برشي نو روستو والے دے
نه کوي. فَيَقُوۡلَ رَبِّ دا قول وی په وخت دَ ځنکدن کښ په طریقه دَ تمنا سره.
فَاَصَّدَّقَ دا منصوب دے په جواب دَ تمنا کښ اَنۡ پټ دے او دا صیغه دلالت
کوی په مبالغه دَ تصدق باندے.

وَاَكُنۡ مِّنَ الصّٰلِحِيۡنَ مراد دَ صالحین نه نور دَ اصلاح کارونه دی ماسیوا دَ تصدق
نه. ایمان راوړل، اتباع دَ سنت کول توبه کول دَ ګناهونو نه او دا سے مضمون په
سورة ابراهیم ۴۴ او سورة مؤمنون ۹۹ کښ هم تیر شوی دے. وَاَكُنۡ په جزم
سره دے نو دا عطف دے په محل دَ فَاَصَّدَّقَ باندے ځکه چه تقدیر دَ عبارت
دا دے اِنۡ اَخَّرۡتَنِىۡ اَصَّدَّقُ وَاَكُنۡ . یا په توهم دَ شرط باندے یعنی اِنۡ اَصَّدَّقَ
فَاَكُنۡ مِنَ الصّٰلِحِيۡنَ. او آلوسی ویلی دی چه محل او متوهم یو څیز دے لیکن توهم
اطلاق په قرآن کښ تعبیر قبیح دے.

نَفْسًا اِذَا جَآءَ اَجَلُهَا ؕ وَاللّٰهُ خَبِيْرٌۢ بِمَا

هیڅ نفس کوم وخت چه راشی نیټه دَ هغه او الله تعالیٰ خبردار دے په هغه

تَعْمَلُوْنَ ﴿۱۱﴾

عملونو چه تاسو کوئے ۔

سلہ دا معطوف دے په مقدر باندے۔ دَ تیر شوی ایت په آخر کښ لَنْ يُّؤَخِّرَهُ وو یعنی دغه تمنا کوونکے نه روستو کوی او دلته تعمیم کوی په نَفْسًا نکره ذکر کولو سره په مقام دَ نفی کښ۔ وَاللّٰهُ خَبِيْرٌۢ بِمَا تَعْمَلُوْنَ خبیر عالم دے په باطن او ظاهر دواړو باندے نو مَا تَعْمَلُوْنَ شامل دے پټ او ښکاره عملونه او نیتونو دَ زړه ته هم ۔ او مفسر آلوسی ویلے دی چه عمر رضی الله عنه دَ نبی صلی الله علیه وسلم عمر دَ درے شپیته کلونو دَ دے ایت نه استنباط کړیدے پداسے طریقه چه دا ایت انتهاءَ دَ درے شپیتم سورة ده او په دے کښ نفسًا نبی صلی الله علیه وسلم ته هم شامل دے چه دَ هغه نیټه چه راغله نو هم روستو ا ے نشوکیدے او ورپسے تغابن ذکر شو او غبن امت ته په سبب دَ وفات دَ نبی صلی الله علیه وسلم سره اورسیدلو ۔ ګویا الله تعالیٰ دَ دنیا کښ مونږ دَ نبی صلی الله علیه وسلم دَ زیارت نه محروم یو لیکن دَ هغه سره زیارت په قیامت کښ په حوض کوثر باندے او په جنت کښ نصیب کړے "۔ اللّٰهم آمین ثم آمین ۔

الحمد لله ختم شو تفسیر دَ سورة المنافقون ۔

سُوْرَةُ التَّغَابُنِ ۶۴ مَدَنِيَّةٌ ۱۰۸ | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | اٰيَاتُهَا ۱۸ رُكُوْعَاتُهَا ۲

يُسَبِّحُ لِلّٰهِ مَا فِي السَّمٰوٰتِ وَمَا فِي الْاَرْضِ ۚ

پاکی وائی الله تعالیٰ لره هغه څیزونه چه په اسمانونو کښې دی او هغه څیزونه چه په زمکه کښې دی

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

## سورة التغابن

ربط دَ دے سورت دَ مخکښې سورت سره په دیرو وجوهو سره دے اوله وجه داده چه په تیرشوی سورتونو کښې رد وؤ په یهودیانو اومنافقینو باندے نو په دے سورت کښې رد دے په مشرکینو اومنکرینو دَ بعث بعد الموت باندے.
دویمه وجه داده چه په مخکښې سورت کښې شهادت دَ منافقانو په رسالت باندے ذکر کړو چه دا دروغ دے نو په دے سورت کښې اشاره کوی چه دوی په شان دَ نسکاره کافرانو دی چه انکار دَ رسول نه په سبب دَ بشریت سره کوی.
دریمه وجه داده چه په مخکښې سورت کښې انکار دَ رسول نه ذکر شو په طریقه دَ منافقت سره نو په دے سورت کښې ترغیب دے ایمان بالرسول ته.
څلورمه وجه داده چه په هغه سورت کښې اوفرمائیل لَا تُلْهِكُمْ اَمْوَالُكُمْ وَلَا اَوْلَادُكُمْ اه نو په دے سورت کښې دَ هغې علت ذکر کوی چه اِنَّ مِنْ اَزْوَاجِكُمْ وَاَوْلَادِكُمْ عَدُوًّا لَّكُمْ - او اِنَّمَا اَمْوَالُكُمْ وَاَوْلَادُكُمْ فِتْنَةٌ -
دعویٰ دَ دے سورت اثبات دے دَ څلورو مقاصدو عالیو ( توحید، رسالت، قرآن، بعث بعد الموت ) سره دَ تزهید فی الدنیا او ترغیب الی الانفاق ته او دَ دے وجے نه په دے کښې نهیه او امر ذکر دی او اسماء حسنیٰ څوارلس ذکر کړیدی دَ پاره دَ اثبات دَ توحید.
خلاصه دَ سورت داده - په یکښې اول دعوی دَ توحید ده په تسبیح سره او په هغې باندے څلور عقلی دلیلونه ذکر کړے دی بیا تخویف دنیوی او بیا سببونه دَ عذاب ذکر دی اول انکار دَ رسول نه او دویم انکار دَ بعث بعد الموت نه او دَ هغې اثبات کوی په حلف سره - بیا امر دے ( پاتے په بل مخ )

لَهُ الْمُلْكُ وَلَهُ الْحَمْدُ وَهُوَ عَلٰى كُلِّ

خاص هغه لره پادشاهي ده او خاص هغه لره ستائينه ده او هغه په هر

شَيْءٍ قَدِيرٌ ۝١ هُوَ الَّذِي خَلَقَكُمْ فَمِنْكُمْ

څیز باندے قدرت لرونکے دے۔ خاص الله تعالی هغه ذات دے چه پیدا ئے کړی تاسو نو بعض ستاسو نه

كَافِرٌ وَمِنْكُمْ مُؤْمِنٌ ۚ وَاللَّهُ بِمَا تَعْمَلُونَ

کافر دی او بعض ستاسو نه مؤمن دی او الله تعالی ستاسو عملونو لره

بَصِيرٌ ۝٢ خَلَقَ السَّمٰوٰتِ وَالْأَرْضَ بِالْحَقِّ

لیدونکے دے۔ پیدا کړی دی اسمانونه او زمکه د حق بنکاره کولو د پاره

په ایمان سره په دے مقاصدو باندے سره د بشارت او تخویف نه بیا ترغیب دے په ایمان بالقدر د پاره د تخفیف د مصیبتونو او امر دے په طاعت الله او د رسول۔ او ذکر د توحید دے بیا تحذیر دے د محبت د دنیا نه او ترغیب دے توحید او قرآن او انفاق ته سره د بشارت نه او د امر د انفاق سره پنځه اسماء حسنٰی ذکر دی د پاره د ترغیب۔

تفسیر ۱۔ په دیکښ توحید ذکر دے په طریقه د تسبیح سره او د هغے د پاره ئے درے صفات د الله تعالی ذکر کړے دی۔

اول لَهُ الْمُلْكُ پوره او ټوله پادشاهي د دُنیا او د اخرت خاص الله تعالی لره ده نو دا دلیل دے چه په الله تعالی کښ هیڅ صفت د نقصان نیشته۔

دویم وَلَهُ الْحَمْدُ نسبت د ټولو نعمتونو لویو او وړو بنکاره او پټ خاص الله تعالی ته دے هغه د هغے پیدا کوونکے او ورکوونکے دے او استحقاق د حمد کامل مستلزم دے پاکوالی لره د هر عیب نه۔

او دریم وَهُوَ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ نو هیڅ عجز او مجبوری پکښ نیشته نو تسبیح د هغه حق دے۔

۲۔ دا هم دلیل د دعوے د توحید دے او دیته دلیل نفسی عقلی وئیلے شی فَمِنْكُمْ كَافِرٌ الخ په دیکښ دوه قولونه دی اول دا چه ذکر دے نه مراد کفر او ایمان تقدیری دے یعنی الله تعالی په تقدیر کښ څوک کافر مقرر کړی دی

وَصَوَّرَكُمْ فَأَحْسَنَ صُوَرَكُمْ ۚ وَإِلَيْهِ

او شکلونه ئې درکړي دي تاسو ته نو ښائسته کړي دي شکلونه ستاسو او خاص هغه ته

الْمَصِيرُ ﴿٣﴾ يَعْلَمُ مَا فِي السَّمٰوٰتِ وَالْأَرْضِ

ورګرځېدل دي ۔ عالم دے په هغه څه چه په اسمانونو کښ دي او زمکه کښ دي

وَيَعْلَمُ مَا تُسِرُّونَ وَمَا تُعْلِنُونَ ۚ وَاللّٰهُ

او عالم دے په هغه څه چه پټوئے تاسو او په هغه څه چه ښکاره کوئے تاسو او الله تعالیٰ

عَلِيمٌ بِذَاتِ الصُّدُورِ ﴿٤﴾ أَلَمْ يَأْتِكُمْ

عالم دے په هغه خبرو چه په سینو د خلقو کښ دي۔ آیا نه دے راغلے تاسو ته

او څوک مؤمن. نو خالق او تقدیر کوؤنکے الله تعالیٰ دے او د کفر او ایمان کسب کوؤنکے بنده دے۔ دویم قول دا چه په دے کښ کفر او ایمان کسب کوؤنکے بنده دے۔ دریم قول دا چه په دے کښ کفر او ایمان کسبي مراد دے نو په دے کښ معنیٰ د زجر ده یعنی الله تعالیٰ تاسو پیدا کړي ئي نو پکار دا وه چه ټولو ایمان راوړے وے لیکن تاسو تقسیم شوئے دوه ډلو ته او هر کله چه سبب د زجر کفر دے د دے وجے نه کافر ئے مخکښ ذکر کړے دے۔

وَاللّٰهُ بِمَا تَعْمَلُونَ بَصِيرٌ یعنی د کفر او د ایمان اعمال ستاسو نه چه صادر یږي (روستو د خلق د الله تعالیٰ نه) نو الله تعالیٰ هغے لره وینی ۔

سٓ دا بل دلیل عقلی دے آفاقي او انفسي نه مرکب دے۔ بِالْحَقِّ په معنیٰ د حکمت سره یا په معنیٰ د یقین سره دے یا بآ په معنیٰ د لام سره ده یعنی د پاره د اظهار د حق او هغه توحید د الله تعالیٰ دے۔ فَأَحْسَنَ صُوَرَكُمْ حُسن په اعتبار د باطن او د ظاهر دواړو سره دي او جمال صرف په اعتبار د ظاهر سره وي نو په انسان کښ اوصاف باطنیه معنویه او تناسب د اندامونو او سیدها قد و قامت دا سے دے چه په نور مخلوق کښ نیشته او دا سے په سورة مؤمن سټ کښ هم تیر شویدی۔ وَإِلَيْهِ الْمَصِيرُ کښ اشاره ده چه په خپل حُسن دے هیڅوک غرور او نکړي بلکه آخرت دِ رایاد کړي۔

سٓ دا بل دلیل دے روستو د صفاتو د تصرف نه صفت (پاتے په بل مخ)

نَبَؤُا الَّذِيْنَ كَفَرُوْا مِنْ قَبْلُ ۫ فَذَاقُوْا

خبر دَ هغه کسانو چه کفر ئې کړے وو مخکښ ستاسو نه نو اوڅکله هغوی

وَبَالَ اَمْرِهِمْ وَلَهُمْ عَذَابٌ اَلِيْمٌ ۝۵

سزا دَ کار خپل او دوی لره عذاب درد ناک دے۔

ذٰلِكَ بِاَنَّهٗ كَانَتْ تَّاْتِيْهِمْ رُسُلُهُمْ بِالْبَيِّنٰتِ

دا په دے وجه چه یقینًا راتلل دوی ته رسولان دَ دوی په ښکاره احکامو سره

فَقَالُوْا اَبَشَرٌ يَّهْدُوْنَنَا ۫ فَكَفَرُوْا وَتَوَلَّوْا

نو دوی اُویل آیا یو بشر مونږ ته لار ښائی نو انکار اوکړو دوی او مخ ئې واړوو

وَّاسْتَغْنَى اللّٰهُ ۭ وَاللّٰهُ غَنِيٌّ حَمِيْدٌ ۝۶

او ښکاره کړه الله تعالیٰ خپله بے پرواهی۔ او الله تعالیٰ بے حاجته ستائیلے شوے ذات دے۔

دَعلم ذکر کوی او دَعِلم درے کلیات ئې ذکر کړل چه هر یو کلی په بے شماره جزئیاتو باندے مشتمل دے اول ما فی السموات اه دویم ما تسرون اه دریم ذات الصدور
ـ۵ـ دا تخویف دنیوی او اخروی دے نبأ لوئے خبر او غټے واقعے ته ویلے کیږی۔
وَبَالَ بوج او سختی ته ویلے کیږی اَمْرِهِمْ مراد دَ دے نه کفر او تکذیب دَ دوی دے دا ئې مبهم ذکر کړو دَپاره دَ هیبت شان دَ هغے۔ وَلَهُمْ عَذَابٌ اَلِيْمٌ دا تخویف اخروی دے۔
ـ۶ـ دا سبب دَ عذاب ذکر کوی چه انکار دے دَ رسالت دَ رسولانو نه په بهانه دَ بشریت سره۔ او دا مرض دَ ټولو منکرینو دے لکه په سورة اسراء ۹۴ کښ ذکر دے۔ يَهْدُوْنَنَا اَبَشَرٌ اسم جنس مفرد او جمع دواړه استعمالیږی دلته ئې هم ضمیر دَ جمع ورته راجع کړے دے۔ فَكَفَرُوْا دا تکذیب دَ رسول دَ بشریت دَ وجے نه کفر دے یا كَفَرُوْا معنیٰ دا چه انکار ئې اوکړو دَ توحید او رسالت نه
وَتَوَلَّوْا اعراض ئې اوکړو دَ تدبر کولو نه په بینا تو کښ۔ وَّاسْتَغْنَى اللّٰهُ ...۔
سوال :۔ دا عطف دے په تَوَلَّوْا باندے یعنی تولی دَ کافرانو او استغنا دَ الله تعالیٰ په یو وخت کښ ده او حال دا چه غِنا خو دَ الله تعالیٰ صفتِ قدیمه دے ؟

زَعَمَ الَّذِينَ كَفَرُوا أَنْ لَنْ يُبْعَثُوا ط

گمان کوی کافران چه دوی به هیڅکله دوباره پیدا نشی

قُلْ بَلَىٰ وَرَبِّي لَتُبْعَثُنَّ ثُمَّ لَتُنَبَّؤُنَّ

ته او وایه هاں قسم دے په رب زما ضرور به دوباره پیدا کړے شئ بیا به ضرور خبر درکړیشی تاسو ته

بِمَا عَمِلْتُمْ ط وَذَٰلِكَ عَلَى اللَّهِ يَسِيرٌ ﴿۷﴾

د هغه عملونو چه تاسو کړیدی او دا کار په الله تعالیٰ باندے آسان دے.

فَآمِنُوا بِاللَّهِ وَرَسُولِهِ وَالنُّورِ الَّذِي أَنْزَلْنَا ط

نو ایمان راوړئ په الله تعالیٰ او په رسول د هغه بانډے او په هغه رنړا باندے چه نازل کړیده مونږ

وَاللَّهُ بِمَا تَعْمَلُونَ خَبِيرٌ ﴿۸﴾ يَوْمَ يَجْمَعُكُمْ

او الله تعالیٰ ستاسو عملونو باندے خبردار دے. په هغه ورځ چه جمع به کړی تاسو

جواب ۱- دا په معنیٰ د اظهار د استغناء دے په هلاکولو د دوی سره یا دا جمله حالیه ده یعنی حال دا چه الله تعالیٰ خود مخکښے نه غنی ذات دے د هغه د مخلوق ایمان ته هیڅ حاجت نیشته.

ک په دیکښ زجر دے په انکار د بعث بعد الموت سره او دا هم سبب د عذاب دے او داخل دے په فکفروا وتولوا کښ او دا څلورم آیت دے د قرآن کریم نه چه په هغې کښ الله تعالیٰ په خپل ربوبیت باندے قسم کوی د پاره د اثبات د بعث اول په سورة یونس ۵۳ دویم سورة مریم ۶۸ دریم سورة سبا ۳ او څلورم دا آیت شو. زعم اکثر استعمالیږی په باطل او دروغو کښ او هرکله چه د دے فاعل یقیناً دغه قول کړے وی لکه په دے آیت کښ نو دا استعمال صحیح دے اگرچه مزعوم باطل دے او هرکله چه د دے فاعل باندے یقین نه وی او بے دلیله نسبت کوی بل چا ته نو په هغه وخت دا کلمه استعمالول منع دی لکه چه حدیث د ابوداؤد کښ راغلے دی بئس مطية الرجل زعموا. او د شریح نه نقل شویدی چه د هر څیز کنیت وی او کنیت د دروغو زعموا لفظ دے.

ک هرکله چه مخکښ آیاتونو کښ توحید او رسالت ر یاتے په بیل مح )

لِيَوْمِ الْجَمْعِ ذٰلِكَ يَوْمُ التَّغَابُنِ ۗ وَمَنْ

په ورځ د جمع کولو کښې دغه ورځ د غبن ښکاره کیدلو ده او چاچه

يُّؤْمِنْ بِاللّٰهِ وَيَعْمَلْ صَالِحًا يُّكَفِّرْ عَنْهُ

ایمان راوړے په الله تعالیٰ باندے او عمل ئے نیک اوکړو لرے به کړی الله تعالیٰ د ده نه

سَيِّاٰتِهٖ وَيُدْخِلْهُ جَنّٰتٍ تَجْرِيْ مِنْ

بدئ د ده او داخل به کړی ده لره جنتونو ته چه بهیږی لاندے د

تَحْتِهَا الْاَنْهٰرُ خٰلِدِيْنَ فِيْهَآ اَبَدًا ۗ ذٰلِكَ

هغے نه ولے همیشه به وی دوی په هغے کښ همیشه ۔ دا

الْفَوْزُ الْعَظِيْمُ ﴿٩﴾ وَالَّذِيْنَ كَفَرُوْا وَكَذَّبُوْا

کامیابی لویه ده ۔ او هغه کسان چه کفر ئے کړیدے او دروغژن گنړی

او بعث بعد الموت د قران کریم په اخبارا تو سره ثابت شو نو اوس په هغے باندے تفریع کوی په دعوت او ایجاب د ایمان سره په دے ټولو باندے۔
فَاٰمِنُوْا بِاللّٰهِ یعنی ایمان راوړئے په الوهیت د الله تعالیٰ باندے وَرَسُوْلِهٖ مراد د دے نه جنس رسول دے نو ټولو رسولانو باندے عمومًا او خصوصًا د اخری رسول په رسالت باندے ایمان راوړل مراد دی. وَالنُّوْرِ اه مراد د دے نه ټوله وحی او خصوصًا قران دے ځکه چه د دے په ذریعه د تیارو د گمراهئ د جهل نه خلاصے حاصلیږی۔
سوال:۔ چه رسوله ئے اوئیل نو نُوْرِهٖ به ئے هم وئیلے وو؟
جواب:۔ که نُوْرِهٖ وئیلے وے نو د الله تعالیٰ صفت ترینه مراد وو لکه چه سورة نور کښ تیر شوے دے او مقصود خو دلته په قران باندے ایمان راوړل دی۔
۹ په دے کښ تذکره د ورځ د قیامت ده (او د دے وجے نه په مخکښ ایت کښ ئے ذکر اونکړو) او بیا بشارت اخرویه ذکر کوی۔ يَوْمَ منصوب دے په اُذکر پټ سره۔ لِيَوْمِ الْجَمْعِ دا نوم دے د نومونو د قیامت نه ځکه په هغے کښ به اولین او اخرین او تمام انسانان پیریان او اسمانونو او زمکو والا او انبیاء

بِاٰيٰتِنَآ اُولٰٓئِكَ اَصْحٰبُ النَّارِ خٰلِدِيْنَ فِيْهَا ط

| ایاتونه زمونږ | دغه کسان | اور والا دی | همیشه به دی دوی په هغې کښې |
|---|---|---|---|

او امتونه دَ هغوی او ظالمان او مظلومان او ټول اعمال جمع کیدیشی لکه چه دا سے صفت په سورة هود ۱۰۳ او سورة الواقعه ۵۰ کښې ذکر دے۔
ذٰلِكَ يَوْمُ التَّغَابُنِ ماخوذ دے دَ غَبن نه په لغت کښې نقصان دَ قیمت ته ویلے کیږی کله چه یو انسان یو څیز لږه په کم قیمت سره خرڅ کړی نو ویلے کیږی چه فلانی غبن اوکړو او دا رنګ چه څوک په امانت کښې خیانت اوکړی نو هغې ته هم غبن ویلے شی۔
سوال:- دلته خو څه معامله نیشته چه په هغې باندے اطلاق دَ غبن اوکړے شی؟
اول جواب دا دے چه دا په طریقه دَ استعارے (مجاز) سره ده څکه چه جنت والو دُنیا خرڅه کړه او جنت ئے حاصل کړو دا خوړ معه ده او اور والو خپل مالونه او خپل عمر خرڅ کړو او په هغې ئے اور واخستو او دا غبن او لوئے نقصان دَے نور وا یا تو نو کښې دے ته خسران هم ویلے کیږی نو دا معامله دَ اور والو ئے مشا به کړه یو دا سے میاد سره چه په هغې کښې تاوان او غبن حاصل شی۔
دویم جواب دا دے چه هر مکلف سره دَ هغه عمر او بدن او مال امانت دَ الله تعالیٰ دے او دِ دے مامور دے چه دا په داسے طریقه خرچ کړی چه په هغې سره جنت حاصل شی او دَ اُور نه بالکل نجات او موهی لیکن اکثر مکلفینو په دے امانت کښې غبن کړے دے په دنیا کښې دِ دے په هغه غبن باندے پوهه نه لږی لیکن په آخرت کښې به دَ دهٔ غبن ښکاره شی۔
سوال:- التَّغَابُنِ باب تفاعل دے نو په دے معنیٰ سره دَ صدور دَ جانبینو نه څه رنګ جوړیږی؟
جواب:- چه دنیا کښې هر شخص خپل غبن دَ بل نه پټ ساتی "كُلُّ حِزْبٍۭ بِمَا لَدَيْهِمْ فَرِحُوْنَ" او په آخرت کښې به یو بل ته نقصانات خپل او پر دی هم ښکاره شی۔
نو یوم التغابن نوم دے دَ نوموړو دَ قیامت نه په اعتبار دَ بعض اشخاصو سره (چه هغوی ګنهګاران دی) لکه چه يَوْمُ الْحَسْرَةِ نوم هم په اعتبار دَ بعضو سره دے
وَمَنْ يُّؤْمِنْۢ الخ دا دلیل دے چه په ایمان او عمل صالح سره انسان دَ غبن نه بچ کیږی دَ دے وجے نه دے ته فوز عظیم او یلے شو۔

ع ۲ ۱۵

وَبِئْسَ الْمَصِيْرُ ﴿۱۰﴾ مَآ اَصَابَ مِنْ مُّصِيْبَةٍ

او بد دے ځائے دَ ورګرځيدلو۔ نه رسي هيڅ مصيبت

اِلَّا بِاِذْنِ اللّٰهِ وَمَنْ يُّؤْمِنْ بِاللّٰهِ يَهْدِ

مګر په حکم (تقدير) دَ الله تعالیٰ سره او چاچه ايمان راوړيد په (تقدير) دَ الله تعالیٰ کلک کړي الله تعالیٰ

قَلْبَهٗ وَاللّٰهُ بِكُلِّ شَيْءٍ عَلِيْمٌ ﴿۱۱﴾

زړه دَ هغه او الله تعالیٰ په هر څيز باندے پوره علم لرونکے دے۔

سلا په دے کښ ذکر دَ غبن والو دے او دَ هغے سبب ئے ذکر کړے دے او تخويف اخروی دے۔ (سوال) څه حکمت دے چه وَمَنْ يُّؤْمِنْ اه ئے په فعل مضارع سره ذکر کړو او کفر وائے په صيغه دَ ماضی سره ذکر کړو؟ (جواب) وجه دا ده چه اول ئے يوم التغابن ذکر کړو نو دَ هغے نه دَ نجات دَ پاره ايمان او عمل صالح دے نو اهل التغابن خو په اصل کښ کافران دی نو تقدير دَ عبارت دا دے وَمَنْ يُّؤْمِنْ بِاللّٰهِ مِنَ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا اه وَمَنْ لَّمْ يُؤْمِنْ مِنْهُمْ اُولٰٓئِكَ اَصْحٰبُ النَّارِ۔

سلا دا متعلق دے دَ فَاٰمِنُوْا بِاللّٰهِ وَرَسُوْلِهٖ اه سره په طريقه دَ جوابِ سوال سره سوال دا دے چه په توحيد او اتباع دَ قرآن او سنت کښ ډير مصيبتونه راځی نو دَ هغے علاج څه دے؟ حاصل جواب دا دے چه هر مصيبت مقرر وی دَ طرف دَ الله تعالیٰ نه نو هر کله چه په چا باندے مصيبت راشی نو عقيده دِ اولری چه دا دَ الله تعالیٰ په تقدير سره دے نو په دے سره به دَ هغه زړه مضبوط شی او په هدايت باندے به کلک شی۔ مَآ اَصَابَ اه دا سے په سورة حديد سلا ۲۲ او سورة توبه سلا ۵۱ کښ تير شوی دی اِلَّا بِاِذْنِ اللّٰهِ مراد دے نه تقدير او اراده دَ الله تعالیٰ ده۔ وَمَنْ يُّؤْمِنْ بِاللّٰهِ مراد دَ ايمان بالله نه ايمان دے په تقدير دَ هغه باندے يَهْدِ قَلْبَهٗ قرطبی دَ ابو عثمان الحيری نه نقل کړيدی چه دا ايمان صحيح شو نو الله تعالیٰ ورله دَ اتباع سنت توفيق ورکوی يا مراد دَ دے نه کلک والے دَ زړه دَ هغه دے په ايمان باندے په وخت دَ مصيبتونو کښ۔

او خطيب شربينی ويلی دي چه هر کله زړه په هدايت باندے پوخ شی نو زائل شی دَ هغه نه هر اعتقاد باطل، کفر او بدعت او صفاتِ خبيثه دَ هغه۔

وَأَطِيعُوا اللَّهَ وَأَطِيعُوا الرَّسُولَ ۚ فَإِن

او تابعداری کوئ د الله تعالیٰ او تابعداری کوئ د رسول نو که چرے

تَوَلَّيْتُمْ فَإِنَّمَا عَلَىٰ رَسُولِنَا الْبَلَاغُ

مخ واړ وؤ تاسو نو یقینا زموږ په رسول باندے رسول

الْمُبِينُ ﴿١٢﴾ اللَّهُ لَا إِلَٰهَ إِلَّا هُوَ ۚ وَعَلَى اللَّهِ

ښکاره دی - الله تعالیٰ نیشته حقدار د بندگۍ سیوا د هغه نه او خاص په الله تعالیٰ باندے دے

فَلْيَتَوَكَّلِ الْمُؤْمِنُونَ ﴿١٣﴾ يَا أَيُّهَا الَّذِينَ

ځان او سپاری مؤمنان - اے ایمان

آمَنُوا إِنَّ مِنْ أَزْوَاجِكُمْ وَأَوْلَادِكُمْ

والو یقینا بعض د بیبیانو ستاسو او اولاد ستاسو نه

عَدُوًّا لَّكُمْ فَاحْذَرُوهُمْ ۚ وَإِن تَعْفُوا

دشمنان ستاسو دی نو ځان اوساتئ د هغوی نه او که چرے معاف کوئ تاسو (خطا ئے د هغوی)

سلا دا معطوف دے په معنیٰ د ماقبل باندے یعنی اسان کړئ په ځان باندے مصیبتونه د وجے د ایمان نه په تقدیر باندے او اطاعت د الله تعالیٰ او د رسول د هغه کوئ د مصائبو د وجے نه ئے مه پریګدئ. ابن کثیر د امام زهری نه نقل کړیدی چه د الله تعالیٰ د طرف نه رسالت دے او د نبی صلی الله علیه وسلم د طرف نه بلاغ دے او زموږ د طرف نه تسلیم دے -

سلا دا دعویٰ د توحید ده او دا د اطاعة الله والرسول اوله مسئله ده او دا رنګ د مصائبو د دفع کولو د پاره توکل په الله تعالیٰ باندے ضروری دے۔ ابن کثیر ویلی دی چه په اوله جمله کښ معنیٰ د طلب پرته ده یعنی اخلاص اوکړئ الله تعالیٰ ته په هر قسم شرک پریخودلو سره۔

وَ تَصْفَحُوْا وَ تَغْفِرُوْا فَاِنَّ اللّٰهَ غَفُوْرٌ

او مخ اړوئ (د ملامته کولو نه) او بخنه ورته کوئ نو یقیناً الله تعالیٰ بخنه کوونکے دے

رَّحِيْمٌ ﴿۱۴﴾ اِنَّمَآ اَمْوَالُكُمْ وَاَوْلَادُكُمْ فِتْنَةٌ ط

رحم کوونکے دے۔ یقیناً مالونه ستاسو او اولاد ستاسو امتحان دے

سګد دَ اطاعة الله والرّسول دَ یو مانع (چه مصیبتونه دی) علاج یې ذکر کړونو اوس نور موانع ذکر کوی چه ازواج او اولاد دی۔

اِنَّ مِنْ اَزْوَاجِكُمْ مِنْ دلیل دے چه دا دشمنی دَ بعضو دَ طرف نه وی۔

عَدُوًّا لَّكُمْ مراد دَ دے نه عداوت دینیه اخرویه دے یا په طریقه دَ تشبیه باندے دے یعنی پشان دَ دشمنانو وی او دشمنی دا ده چه منع کول کوی دَ هجرت دَ جهاد او دَ اتباع دَ سنت نه په غم او بنا دے کښ او ترغیب ورکوی بدعاتو او رسمونو رواجونو ته۔

فَاحْذَرُوْهُمْ یعنی په باره دَ دین کښ دَ هغوی دَ وسوسے او دَ اطاعت کولو نه ځان اوساتے۔ وَاِنْ تَعْفُوْا وَ تَصْفَحُوْا دا تعلیم دَ حسن اخلاق دَ پاره دے دَ دفع دَ فساد دَ کورنۍ دَ یعنی خپل دین هم مه خرابوئ په اطاعت کولو دَ هغوی او خپله دنیا هم مه فاسدوئ په هغوی باندے په غصه کیدلو او جنګ کولو سره۔ او هرکله چه په وخت دَ غصّه کیدلو کښ اول انسان سزا ورکول غواړی په وهلو سره نو دَ هغے دَ دفع دَ پاره یې اوفرمائیل وان تعفوا، دویم که عملی سزا نه ورکوی نو بیا په خوله سره سب وشتم او ملامته کول کوی نو دَ هغے دفع په تَصْفَحُوْا سره ذکر شوه بیا که ملامته کول نه کوی لیکن دَ هغه ګناه نورو خلقو ته ښکاره کوی دَ دے دَ پاره چه دَ خلقو په نظر کښ ذلیل شی نو دَ هغے ملاقعه یې اوکړه په تغفروا سره۔ او مراد دَ دے جرم نه هغه دے چه قابل دَ عفوا و صفح وی یعنی دَ هغوی دَ ناکاره اخلاقو چه امور دنیویه سره تعلق لری او جرم دَ معاف کولو نه وی لکه چه مونځ نه کوی دَ شرک او کفر کارونه کوی زنا او بدکاری ورباندے ثابته شی نو بیا دَ هغے دَ سزا ورکولو انتظام شرعی ضروری دے۔

وَاللّٰهُ عِنْدَهٗٓ اَجْرٌ عَظِيْمٌ ﴿۱۵﴾ فَاتَّقُوا اللّٰهَ

او الله تعالیٰ خاص دَ هغه سره ثواب لوئے دے ۔ نو ویره کوئے دَ الله تعالیٰ نه

مَا اسْتَطَعْتُمْ وَاسْمَعُوْا وَاَطِيْعُوْا

څومره چه ستا سو وس رسيږی او غوږ کيږدئے او خبره منئ

وَاَنْفِقُوْا خَيْرًا لِّاَنْفُسِكُمْ ۗ وَمَنْ يُّوْقَ

او خرچ کوئے نو غوره به وی ستا سو دَ پاره ۔ او هغه څوک چه اوساتلے شو

شُحَّ نَفْسِهٖ فَاُولٰٓئِكَ هُمُ الْمُفْلِحُوْنَ ﴿۱۶﴾

دَ حرص دَ نفس خپل نه نو دغه کسان دوی کامياب دی ۔

۱۵ دا دَ اطاعة الله والرسول نه دَ بل مانع ذکر کوی چه هغه مالونه او اولاد دی. په تير شوی ايت کښ مِنْ ئے ذکر کړے وو ځکه چه عداوت دينيه دَ هر يے شئے او اولاد ته نه وی او هرچه مالونه او اولاد فتنه کيدل دی دا خو ټول اولاد مالونو ته شامل دے. او اموال ئے مخکښ ذکر کړو په اولاد باندے ځکه چه دَ مالونو فتنه ډيره ده په نسبت دَ اولاد سره۔

فِتْنَةٌ فتن په اصل کښ ارولو ته ويلے کيږی او په عرف کښ او په قرآن کښ دَ دے مختلف معانی دی دلته مراد امتحان دے يعنی محبت دَ مال او اولاد کله انسان لره منع کوی دَ طاعت دَ الله تعالیٰ او دَ رسول نه او کله دا سبب اوګرځی دَ پاره دَ تقرب الی الله تعالیٰ.

وَاللّٰهُ عِنْدَهٗٓ اَجْرٌ عَظِيْمٌ يعنی هر کله چه دَ طاعت دَ الله تعالیٰ او دَ محبت دَ مال او اولاد مقابله راشی نو طاعت دَ الله تعالیٰ مه پريږدئے ځکه چه لوئے اجر به ضائع شی دَ پاره دَ لګ او فانی څيز او دا رنګ په سورة انفال ۲۸ کښ ذکر شويدی او په هغه سورت کښ اول منع اوکړه دَ خيانت نه او هغه ډير لوئے جرم دے نو دَ خيانت نه دَ بچ کيدلو دَ پاره په تاکيد سره او فرمائيل وَاعْلَمُوْٓا اَنَّمَآ اه او دلته ډير تاکيد ته ضرورت نه وو۔

۱۶ روستو دَ ذکر کولو دَ اسبابو دَ عداوت او دَ فتنے نه چه هغه اسباب دَ ګمراهئ دی ذکر کوی امور دَ هدايت او دَ دين چه هغه راپاتے په بل مخ)

إِن تُقْرِضُوا اللَّهَ قَرْضًا حَسَنًا يُضَاعِفْهُ

که چیرے قرض ورکړئ تاسو الله تعالیٰ قرض ښائسته (په اخلاص سره) زیات به یې کړي

لَكُمْ وَيَغْفِرْ لَكُمْ ۚ وَاللَّهُ شَكُورٌ حَلِيمٌ ⑰

تاسو لره او بخښنه به کوي تاسو ته او الله تعالیٰ قبلوونکے دَ عملونو دے صبر ناک دے۔

څلور او امر دی - اول امر په تَقْوٰی سره، په دے کښې قید لګولے دے دَ مَا استطعتم او سورة اٰل عمران ۱۰۲ کښې حق تقاته ذکر کړے دے نو اکثر مفسرینو ویلے دی چه اٰیت دَ سورة اٰل عمران منسوخ دے په دے اٰیت سره ځکه چه حق تقاته نه مراد دا اخستلے شویدے چه هیڅ قسم معصیت به نه کوي او دا خو دَ استطاعت نه بهر خبره ده لیکن تحقیق دا دے چه دَ حق تقاته معنیٰ دا ده چه تقوی کوئے موافق دَ حدود شرعیه سره او دَ مَا استطعتم مقصد دا دے چه هر انسان دِ خپل پوره استطاعت صرف کوي په اقامت دَ حدودِ شرعیه دَ تقوٰی کښې نو بِنا په دے معنیٰ سره دَ دواړو اٰیاتونو منافات نیشته نو نسخ هم نیشته بلکه دا اٰیت دَ سورة اٰل عمران دَ اٰیت تفسیر دے او چا چه قول دَ نسخ کړے دے نو هغه په معنیٰ دَ تقیید سره دے او دا په تیز دَ متأخرینو نسخ نه دے۔

دویم امر وَاسْمَعُوا ، دریم امر وَأَطِيعُوا یو علم حاصلولو ته اشاره ده او بل په هغې باندے عمل کولو ته۔ څلورم امر وَأَنفِقُوا دا عبادتِ مالیه دے او مخکښې درے عبادات بدنیه (عقیده او اعمال) دی۔ خَيْرًا دا دَ څلورو واړو امرو سره تعلق لری او دلته فعل محذوف دے یکن خیرا لانفسکم۔ وَمَن يُوقَ شُحَّ دَ تیر شوے اعمالو نه منع کوونکے شح دَ انسان دے دَ دے وجے نه دَ هغې نه دَ بچ کیدلو ترغیب یې ذکر کړو۔

۱۷ ۱۸ په دے کښې ترغیب دے انفاق فی سبیل الله ته روستو دَ امر دَ انفاق نه او انفاق ته یې قرضِ حسنه نوم ایخودلے دے دَ پاره دَ ترغیب۔ یا مراد دَ قرض نه مطلق اعمال حسنه دی چه په هغې کښې محسن وی په توحید او اتباع سنت سره نو دا تعمیم بعد التخصیص دے او دا سے سورة بقره ۲۴۵ کښې هم تیر شویدے۔ وَيَغْفِرْ لَكُمْ هر عمل صالح باندے هم ثواب حاصلیږی او هم په هغې سره ګناه معاف کیږی۔

عٰلِمُ الْغَيْبِ وَالشَّهَادَةِ الْعَزِيْزُ الْحَكِيْمُ ﴿١٨﴾

| عالم دے په هر پټ | او ښکاره باندے | زور آور | حکمتونو والا دے ۔ |
|---|---|---|---|

وَاللّٰهُ شَكُوْرٌ حَلِيْمٌ ۔ شکر دَ طرف دَ اللّٰه تعالیٰ نه ښکاره کول دَ نعمت دی په ذریعه دَ ډیرے جزا ورکولو سره او دا متعلق دے دَ يضاعف سره ۔ حَلِيْمٌ تلوار نه کوی په سزا ورکولو کښ مجرمانو ته بلکه مهلت ورکوی دَ پاره دَ دے چه توبه اوباسی او بخشش ورته اوکړے شی نو دا متعلق دے دَ يَغْفِر سره ۔

عٰلِمُ الْغَيْبِ اه دا صفتونه دَ پاره دَ تحذير دی دَ ګناهونو کولو نه چه دَ اللّٰه تعالیٰ نه هيڅ څيز پټ نيشته او زورآور پوخ تدبير کوونکے دے نو انسان ولے ګناه او جرم کوی ۔

"اَللّٰهُمَّ نَسْأَلُكَ بِهٰذِهِ الْاَسْمَاءِ الْحُسْنٰى اَنْ تَغْفِرَ لَنَا خَطَايَانَا وَتُدْخِلَنَا الْجَنَّةَ وَقِنَا عَذَابَ النَّارِ"۔

الحمد للّٰه ختم شو تفسیر دَ سورة تغابن په فضل دَ اللّٰه تعالیٰ سره۔

ع ۲ ۸ ۱۶

سورة الطلاق ٦٥ مدنية ٩٩ | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | آياتها ١٢ ركوعاتها ٢

يَا أَيُّهَا النَّبِيُّ إِذَا طَلَّقْتُمُ النِّسَاءَ فَطَلِّقُوهُنَّ

اے نبی هرکله چه طلاق ورکول غواړئ بیبیانو ته نو طلاق ورکړئ دوی ته

لِعِدَّتِهِنَّ وَأَحْصُوا الْعِدَّةَ وَاتَّقُوا اللَّهَ رَبَّكُمْ

مخکښ د زمانے د عدت ته او پوره شمار وے مده د عدت او ویره کوئ د الله تعالیٰ نه چه ستاسو رب دے

لَا تُخْرِجُوهُنَّ مِنْ بُيُوتِهِنَّ وَلَا يَخْرُجْنَ

مه اوباسئ دوی لره د کورونو د دوی نه او نه دے اوځی دوی پخپله

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

سورة الطلاق او د دے بل نوم سورة النساء القصریٰ دے.

ربط د دے سورت د ماقبل سره په ډیرو وجوهو سره دے اوله وجه دا ده چه په هغه سورت کښ د بعض ازواجو د عداوت ذکر اوکړے شو نو په دے سورت کښ د هغوی د مفارقت طریقه شرعی ذکرکوی په وخت د ضرورت کښ.

دویمه وجه دا ده چه په هغه سورت کښ امر وؤ په تقویٰ سره او په دے سورت کښ پنځه فائدے د تقویٰ ذکرکوی.

دریمه وجه دا ده چه د هغه سورت په ۵ کښ نزول د عذاب ذکروؤ اجمالًا نو د دے سورت په ۸، ۹ کښ د هغے تفصیل او اسباب ذکر کړی دی.

دعوی د دے سورت امر دے په رعایت د حدود شرعیه سره عمومًا او په معامله د طلاق او د عدت د زنانو کښ خصوصًا او دا معنیٰ د تقویٰ ده چه د هغے پنځه فوائد یے ذکرکړے دی او حدود شرعیه په دیارلس اوامرو سره او په درے نواهی سره ذکر شوے دی او دعویٰ د توحید په ۱۲ کښ ده او دوه اسماء حسنیٰ د الله تعالیٰ یے ذکر کړیدی.

خلاصه د سورت دا ده. چه په اول ایت کښ ذکر د طریقه شرعی د طلاق او د عدت او حکم د سُکنیٰ (اوسیدل د ښځے) په حالت د عدت کښ ذکر

إِلَّآ أَن يَأْتِينَ بِفَٰحِشَةٍ مُّبَيِّنَةٍ ۚ وَتِلْكَ

مګر که چرے راتلل اوکړی په بد ئے ښکاره سره او دا

حُدُودُ ٱللَّهِ ۚ وَمَن يَتَعَدَّ حُدُودَ ٱللَّهِ فَقَدْ

پولے د الله تعالیٰ دی او چاچه تیریدل اوکړل د پولو د الله تعالیٰ نه نو یقیناً

ظَلَمَ نَفْسَهُۥ ۚ لَا تَدْرِى لَعَلَّ ٱللَّهَ يُحْدِثُ

ظلم ئے اوکړو په ځان خپل باندے نه پوهیږی هیڅ نفس چه امید دے چه الله تعالیٰ به پیدا کړی

بَعْدَ ذَٰلِكَ أَمْرًا ① فَإِذَا بَلَغْنَ أَجَلَهُنَّ

روستو د دے بله خه خبره - نو هرکله چه دوی نزدے شی نیټې خپلے ته

کړے دے او دے ته ئے حدود ویلے دی او په ۲ کښ حکم د رجوع او د عدم رجوع ذکر دے او په ۳ کښ دوه فائدے د تقوی مذکور دی او په ۴ کښ بعض قسمونه د عدت او دریمه فائده د تقوی ذکر شویده او په ۵ کښ دا احکام ئے مسمیٰ کړیدی په امر الله سره او د تقوی دوه فائدے ئے ذکر کړیدی او په ۶ کښ حکم د سُکنیٰ او د انفاق او د رضاع د ولد ذکر شوید ے او په ۷ کښ ذکر دی چه انفاق به د زوج د طاقت مناسب وی. بیا تخویف دنیوی او اخروی په سبب د تعدی عن حدود الله سره په درے ایاتونو کښ ذکر کوی او صداقت د قران او د رسول سره د بشارت اخرویه ته په دوه ایاتونو کښ او اختتام د سورت دے په ذکر د توحید سره او په ۱۲ کښ خلاصه د اسماؤ او صفاتو د الوهیت ذکر کړیده په ضمن د دوه صفتونو کښ چه علم او قدرت دے۔

تفسیر :- يَٰٓأَيُّهَا ٱلنَّبِىُّ په دے ایت کښ اته جملے دی او په هره جمله کښ ډیر احکام او حکمتونه شرعیه دی او درے اوامر دی او دوه پکښ نهی دی. په نداء د یا ایها النبی کښ اشاره ده چه احکام شرعیه په صادریدو د الله تعالیٰ د طرف نه د نبی صلی الله علیه وسلم په واسطے سره بغیر د هغه نه شرعی حکم نشی کیدے. نو تقدیر د عبارت دا دے چه اے نبی ( قل للمؤمنین ) او ایه مؤمنانو ته. او قرطبی ویلے دی چه اصح دا ده چه دا شرع مبتدا مستقله ده خاص سبب نزول د دے د پاره په روایات صحیحه سره راپاتے په بل مخ )

فَأَمْسِكُوهُنَّ بِمَعْرُوفٍ أَوْ فَارِقُوهُنَّ

نو حصار کړئ دوی لره په ښه طریقه سره (رجوع کول) یا جدا کړئ دوی لره

ثابت نه دے - فَطَلِّقُوهُنَّ لِعِدَّتِهِنَّ مراد دَ عدت نه زمانه دَ طهر ده په اتفاق سره او لام دَ پاره دَ توقیت دے په نیز دَ هغه علماؤ چه عدت په طهر سره وائی او څوک چه عدت په حیض سره وائی نو په دے کښ لفظ دَ استقبال یا مستقبلات پټ دے او دَ مسلم په یو قراءت کښ فی قبل عدتهن راغلے دے هغه دَ دے تقدیر دَ پاره دلیل دے - او ابن جریر ویلی دی معنیٰ دا ده طلاق ورکړئ دوی لره په هغه طهر کښ (چه دوی ئے شماره کوی دَ عدت نه) په غیر دَ جماع نه په دغه طهر کښ" او دا معنیٰ دَ اول قول سره موافق ده او بیا په دویم قول معنیٰ دا ده "چه طلاق ورکړئ دوی لره په طهر کښ چه مخ له ئے راشی زمانه دَ عدت تیرولو چه هغه حیض دے" او ابن کثیر ویلی دی چه دَ دے ایت نه فقهاؤ اقسام دَ طلاق راغستلی دی چه طلاق سنت دا دے چه طلاق ورکړی په دا سے حال کښ چه دَ حیض نه پاکه وی او جماع ئے ورسره نه وی کړے چه حامله وی او حمل ئے ښکاره وی او طلاق بدعت دا دے چه طلاق ورکړی په حالت حیض کښ یا په طهر کښ چه جماع ئے ورسره کړے وی او نه پوهیږی چه حامله ده او که نه ده - او دریم قسم طلاق دے نه سنت دے او نه بدعت دے هغه طلاق دَ وړے نابالغې یا دَ بوډئ دے او غیر مدخول بها دے او دا په فقه حنفی کښ احسن او حسن او بدعی دے دَ هغے تفصیل دَ فقهے په کتابونو کښ دے -

وَأَحْصُوا الْعِدَّةَ دَ عدت ورځے یا حیضونه او طهرونه پوره شمارل لازم دی او دا حکم دَ پاره دَ مدخول بها دے او دا شمارل دَ دے وجے نه ضروری دی چه په دے باندے احکام دَ رجوع او دَ دویم نکاح او نفقے وغیره تفریح کیږی - او خطاب په یکښ خاوندانو ته دے -

وَاتَّقُوا اللَّهَ دا تمهید دے دَ پاره دَ روستنی احکامو او تاکید دے دَ پاره دَ تیر شوی لَا تُخْرِجُوهُنَّ اه دا دلیل دَ او سیدلو دے دَ زنانه روستو دَ طلاق نه په وخت دَ عدت کښ په کور دَ خاوند کښ خاوند باندے دَ هغے ویستل حرام دی او ښځے لره هم پخپله وتل دَ سکنیٰ حرام دی -

بِمَعْرُوْفٍ وَّاَشْهِدُوْا ذَوَیْ عَدْلٍ مِّنْكُمْ

په ښه طریقه سره (رجوع نه کول) او ګواهان کړئ (په دواړه حالو کښ) دوه انصاف والا ستاسو نه

وَاَقِیْمُوا الشَّهَادَةَ لِلّٰهِ ؕ ذٰلِكُمْ یُوْعَظُ بِهٖ

او پوره کړئ شهادت دَپاره دَ الله تعالیٰ دا وعظ ورکیدیشی په دے سره

مَنْ كَانَ یُؤْمِنُ بِاللّٰهِ وَالْیَوْمِ الْاٰخِرِ ؕ۬

هغه چا ته چه ایمان لری په الله تعالیٰ او په ورځ روستنئ

وَمَنْ یَّتَّقِ اللّٰهَ یَجْعَلْ لَّهٗ مَخْرَجًا ۟ۙ ﴿۲﴾

او څوک چه ویره کوی د الله تعالیٰ نه جوړه به کړی دهٔ لره طریقه دَ نجات

بُیُوْتِهِنَّ کورِ دَ خاوند دے لیکن هغے ته اضافت کړے شوید ے دَ وجے دَ اوسیدلو د هغے نه اِلَّاۤ اَنْ یَّاْتِیْنَ بِفَاحِشَةٍ مُّبَیِّنَةٍ مراد دَ دے نه وتل دی بغیر دَ اجازت نه او وتل دی بغیر دَ ضرورت نه یا مراد تریته بد ژبائی دَ ښځے ده دَ خاوند او دَ سخر کنئ سره. یا مراد دَ دے نه زنا دے لیکن وتل دَ پاره دَ حد قائم کولو دی هسے شړل مراد نه دی۔ وَتِلْكَ حُدُوْدُ اللّٰهِ دا احکام ئے مسمّٰی کړل په حدود سره اشاره ده چه په دیکښ دَ ځان دَ طرف نه زیاتے کول یا کمے کول منع دی۔

لَا تَدْرِیْ لَعَلَّ اللّٰهَ یُحْدِثُ بَعْدَ ذٰلِكَ اَمْرًا ضمیر دَ لا تدری مؤنث غائب دے نفس ته راجع دے۔ او دا حکمت دے دَ پاره دَ طلاق رجعی او عدت تیرول په کور دَ خاوند کښ. بَعْدَ ذٰلِكَ دا اشاره ده یو طلاق یا دوه طلاقو ته اَمْرًا مراد دَ دے نه رغبت دَ خاوند دے دغه ښځے ته په رجوع کولو سره. او دا دلیل دے چه درے طلاق په یو ځل ورکول ظلم دے او دَ دے حکمت نه خلاف دے ځکه چه په هغے کښ رجوع کول حرام دی بغیر دَ تحلیل شرعی نه په دے ایت کښ خلور اوامر ذکر کوی. بَلَغْنَ اَجَلَهُنَّ مراد دا دے چه عدت ئے قریب دے تیریدلو ته لیکن ختم شوے نه دے. فَاَمْسِكُوْهُنَّ الخ مراد دا چه په عدت کښ دَ خاوند خوښه ده که رجوع ورته کوی او که نه کوی دَ ښځے رضا په دے کښ شرط نه ده بِمَعْرُوْفٍ دَ دے نه مراد اداکول دَ حقوقو دَ ښځے دی نفقه، جامے، اوسیدل او بد ژوند تیرول ورپاتے په بل مخ )

وَّيَرْزُقْهُ مِنْ حَيْثُ لَا يَحْتَسِبُ ۭ وَمَنْ

او روزي به ورکوي ده ته د داسې ځائې نه چه ده ته به ګمان نه کوي او چا چه

يَّتَوَكَّلْ عَلَى اللّٰهِ فَهُوَ حَسْبُهٗ ۭ اِنَّ اللّٰهَ

ځان اوسپارلو په الله تعالیٰ باندې نو هغه (الله ته) پوره دې ده لره يقيناً الله تعالیٰ

بِمَعْرُوْفٍ دَ دې نه مراد زورنه او بدئې وينا او دَ کنځلو نه ځان بچ کول او رجوع نه کول تردې پورې چه عدت ئې تير شي. وَاَشْهِدُوْا ذَوَيْ عَدْلٍ مِّنْكُمْ شهادت پيش کول په وخت دَ رجوع کولو يا په وخت دَ طلاق ورکولو کښې دَ اکثر اهلِ علمو په نيز باندې دا امر دَ وجوب دَ پاره نه دې ليکن بغير دَ اشهاد نه رجوع کول او طلاق ورکول خلافِ سنت دي لکه چه ابو داؤد دَ عمران بن حصين رضي الله عنه نه روايت نقل کړې دې. او قاسمي وئيلې دي چه ظاهر دا ده چه دا امرهم دَ وجوب دَ پاره دې ځکه ټول اوامر دَ دې سورت دَ وجوب دَ پاره دي او دا يو قول دَ امام شافعيؒ دې. وَاَقِيْمُوا الشَّهَادَةَ لِلّٰهِ دا امر دې ګواهانو ته په وخت دَ ضرورت دَ ګواهئ ادا کولو کښې چه ګواهئ ته حاضر شي او دروغ دِ نه وائي او اجرت دِ په هغې باندې نه اخلي ذٰلِكُمْ يُوْعَظُ بِهٖ الخ دا دَ تاکيد دَ مخکښې احکامو دَ پاره دې يعني په دې اوامرو باندې عمل کول دَ ايمان بالله تقاضا ده او په دې باندې دَ ثواب اميد ساتل يا دَ عذاب نه ويره کول دَ ايمان بالآخرة دليل دې. وَمَنْ يَّتَّقِ اللّٰهَ يَجْعَلْ لَّهٗ مَخْرَجًا په دې کښې دَ تقوىٰ يوه فائده ذکر کړه او مراد دَ تقوىٰ نه دَ شرک او کفر نه ځان ساتل او دَ ټولو ګناهونو کبيرو نه بچ کيدل او په صغيره اصرار نه کول او دَ مامورات شرعيوا متثال کول دي. او په سنت طريقه طلاق ورکول او دَ بدعي طلاقو نه ځان ساتل په دې تقوىٰ کښې داخل دي لکه حديث دَ ابو داؤد کښې راغلې دې چه يو شخص خپلې ښځې ته درې طلاقه ورکړې وو نو ابن عباسؓ ته راغے نو هغه ورته دا آيت اولوستلو او ورته ئې اوفرمائيل تا دَ الله تعالىٰ نه ويره نه ده کړې نو ستا دَ پاره مخرج نيشته. يَجْعَلْ لَّهٗ مَخْرَجًا هر غم دَ دُنيا او آخرت نه نجات او دا رنګ دَ شبهاتو او دَ شکونو نه بچ کيدل مراد دي او دفع دَ ضرر خو مخکښې وي دَ حصول دَ منفعت نه دَ دې وجې نه دا فائده ئې وړاندې ذکر کړه لفظ دَ

بَالِغُ اَمْرِهٖ ؕ قَدْ جَعَلَ اللّٰهُ لِكُلِّ شَيْءٍ

پوره کوونکے دے خپل کار لره یقیناً جوړ کړے دے الله تعالیٰ دپاره د هر خیز

قَدْرًا ﴿۳﴾ وَالّٰٓـِٔيْ يَئِسْنَ مِنَ الْمَحِيْضِ

خاص انداز - او هغه زنانه چه نا امیده وی د حیض نه

مخرجاً کښې اشاره ده چه تکلیفونو مصیبتونه به ورباندے راځی لیکن د ...
نه راوتل او د هغې د ناکاره آثارونه به نجات مومی ځکه چه خروج مخکښې
دخول غواړی - او د سهل بن عبدالله نه نقل دے چه چا تابعداری د سنت
اوکړه الله تعالیٰ به ئے بچ کړی د عقوبت د بدعتیانو نه -
۳ په دے کښې دویمه فائده د تقویٰ ذکر کوی - او مراد د دے نه برکات اچول
دی په رزق د دهٔ کښې - او بغیر د ظاهری اسبابو نه روزی راتلل دی - معلومه
شوه چه د روزئ اصل سبب تجارت اوکسب نه دے بلکه تقویٰ ده تجارت اوکسب
وغیره چا سره د تقویٰ نه وی نو روزی به سره د برکاتو نه ملاویږی او یا
مراد د دے نه روزی ده په جنت کښې او دا فائده د مخکښې نه جدا او
مستقله ده د دے وجے نه د هغې نه ئے جدا ذکر کړو -
وَمَنْ يَّتَوَكَّلْ عَلَى اللّٰهِ فَهُوَ حَسْبُهٗ ، هر کله چه توکل لره هم دخل وو په برکت د
رزق کښې د دے وجے نه دا ئے ورسره متصل ذکر کړو - توکل اعتماد دے په
الله تعالیٰ باندے او ټول کارونه هغه ته سپارل دی سره د استعمال د اسبابو نه
دلته ترتیب دا معلوم شو چه اول تقویٰ ده چه اوامر د الله تعالیٰ په ځائے راوړی
او د منهیاتو نه ځان ساتی او ورپسے توکل علی الله دے نو اشاره ده چه توکل
بغیر د تقویٰ نه راتلے نه شی او نه فائده ورکوی دا رنګ د دے سیاق سره
مناسبت دا دے چه احکام د طلاق او د عدت او د رجوع په شرعی طریقه سره
اداکوی او د دے د نتیجے اعتماد په الله تعالیٰ باندے اوکړی فَهُوَ حَسْبُهٗ هغه
به ورله توفیق د خیر ورکوی ضرر نه به ئے لرے کوی فائدے به ورکوی بل
چا ته به ئے نه محتاج کوی - اِنَّ اللّٰهَ بَالِغُ اَمْرِهٖ دا جواب د سوال دے سوال
دا چه ډیر توکل کوونکی متقیان خلق دی او په هغوی باندے مصیبتونه مرضونه
وغیره راځی؟ حاصل جواب دا دے چه دا فیصلے د الله تعالیٰ دی ریاتے په پل مخ)

مِنْ نِّسَآئِكُمْ إِنِ ارْتَبْتُمْ فَعِدَّتُهُنَّ ثَلٰثَةُ

دَ زنانو ستاسو نه که چرې شک کوئ (په عدت دَ هغوی کښې) نو عدت دَ هغوی درې

اَشْهُرٍ وَّالّٰٓئِىْ لَمْ يَحِضْنَ ؕ وَاُولَاتُ الْاَحْمَالِ

میاشتې دې او هغه زنانه چه نه وی حائضه شوې هم او حمل والا زنانه

اَجَلُهُنَّ اَنْ يَّضَعْنَ حَمْلَهُنَّ ؕ وَمَنْ يَّتَّقِ

عدت دَ هغوی زیګول دَ حمل دَ دوی دی او چا چه ویره کوله

اللّٰهَ يَجْعَلْ لَّهٗ مِنْ اَمْرِهٖ يُسْرًا ۝۴ ذٰلِكَ

دَ الله تعالیٰ نه جوړه وی دَه لره دَ کار دَ دهٔ نه آسانتیا . دا

چه په مخلوق کښې چلوی او هره فیصله خپلې انتها ته رسوی .

قَدْ جَعَلَ اللّٰهُ لِكُلِّ شَيْءٍ قَدْرًا مراد دَ دې نه تقدیر دې او علت دې دَ بَالِغُ اَمْرِهٖ دَپاره یعنی دَ دې وجې نه پوره کوی چه دَ هغې تقدیر ئې کړې دې یا مراد دَ دې مقدار او انتهاء وه لکه چه دَ طلاق او عدت دَ پاره ئې تعداد او مدت مقرر کړې دې دا رنګ دَ هر مصیبت او مرض دَ پاره مقدار او مدت الله تعالیٰ مقرر کړې دې .

ځکه په دې ایت کښې دَ درې قسمو زنانو عدت ذکر کوی او په آخر دَ ایت کښې دَ تقویٰ یوه فائده ذکر کوی. یو قسم زنانه آیسه ده چه دَ حیض دَ راتللو نه نا امیده شی نو حامله کیدې هم نشی او دَ دې په مدت کښې اختلاف دې شپیته، اویا، پنځه پنځوس کلونه. صحیح دا ده چه دا په عادت دَ وطنونو او دَ زنانو بانده بنا دې. دویم قسم صغیره نابالغه چه دَ هغې حیض تر اوسه پورې نه وی شورو شوې لیکن دَ هغې نکاح کړې شوې وی او خاوند ورسره دخول کړې وی او بیا طلاقه کړې شی دَ دې دواړه قسمو عدت درې میاشتې دې ځکه چه اصل په عدت کښې حیض دې او عادةً حیض په میاشت کښې یو ځل راځی او دَ دوی حیض نیشته نو دَ دې حیضونو په ځائې کښې درې میاشتې مقرر کړې شوې . دریم قسم حامله زنانه دی برابره خبره ده چه طلاقه کړې شوې وی یا خاوند ترینه وفات شوې وی

أَمْرُ اللّٰهِ أَنْزَلَهُ إِلَيْكُمْ ۚ وَمَنْ يَتَّقِ اللّٰهَ يُكَفِّرْ

حکم دَ الله تعالىٰ دے نازل کړے دے تاسو ته او چا چه ویره اوکړه دَ الله تعالیٰ نه لرے کوی به

عَنْهُ سَيِّاٰتِهٖ وَيُعْظِمْ لَهٗٓ أَجْرًا ۝ أَسْكِنُوْهُنَّ

دَ دهٔ نه بدئ دَ دهٔ او لویه وی به دوی لره ثواب - او سوئ دوی لره

دَ دے عدت وضع دَ حمل دہ که لګ وخت روستو وی او که ډیر وخت پس وی.
دلته هم په وجه دَ حمل سره حیض بند شوید ے نو په عدت کښ حمل دَ حیض
په ځائے باندے قایم کړے شو. اِنِ ارْتَبْتُمْ "که تاسو څوک شک کوئ په حکم دَ
عدت دَ دوی کښ "دا شرط ئے ځکه ذکر کړو چه مخاطبینو ته دَ عدت دَ حیض والو
حکم دَ جاهلیت دَ وخت نه معلوم وؤ لیکن دَ غیر حائضے په باره کښ علم نه وؤ.
یا معنیٰ دا ده چه دَ آئیسه او صغیره وینه راځی خو ستاسو شک وی چه دا دَ څه وینه
ده لیکن هغه وینه دَ حیض نه ده نو عدت به په میاشتو سره وی نو که شک هم
نه وی ځکه چه وینه نه وی نو بیا خو په طریقه اولے سره دا حکم دے. یا معنیٰ
دا ده چه آئیسه او صغیره مستحاضه وی او ستاسو شک وی په باره دَ عدت کښ
نو حکم دغه دے. دا معانی په هغه وخت کښ دی چه ارتبتم په معنیٰ دَ شک سره
شی او بل احتمال دا دے چه دا په معنیٰ دَ یقین سره هم راځی دا دَ اضداد دو نه
دے. وَالّٰٓئِىْ لَمْ يَحِضْنَ دا دلیل دے چه دَ نابالغے نکاح چه ولی اوکړی دَ چا سره
نو دا شرعًا جائز دے لکه نکاح دَ عائشه رضی الله عنها نو څوک چه دَ دے نه انکار
کوی او په باره دَ حدیث عائشه رضی الله عنها کښ په امام بخاری یا په امام زهری
باندے طعنونه کوی نو دا خلق پخپله مطعون دی.
وَمَنْ يَّتَّقِ اللّٰهَ الخ دلته هم تقوی عامه ده او داخل دے په دے کښ طلاق
ورکول په سنت طریقے سره دا رنګ دا تقوی دَ زنانو ته اشاره ده چه په عدت
تیرولو کښ دَ حکم شرعی لحاظ کوی نو الله تعالیٰ به دے زنانه لره آسانتیا ورکوی.
او يُسْرًا عام دے دَ مخرجًا نه دَ دُنیا او دَ آخرت آسانتیا ته شامل دے. نو دا
لویه فائده ده په نسبت دَ مخکښ دواړه فائدو.
سه دا تاکید دے دَ باره دَ امتثال دَ تیر شوے احکامو او دَ تقوی دوه فائدے
نورے ذکر کوی. ذٰلِكَ اشاره ده ټولو احکامو ذکر کړے شوؤ ته دربانے په بل مخ

مِنْ حَيْثُ سَكَنْتُمْ مِّنْ وُّجْدِكُمْ وَلَا
په هغه ځائے کښې چه تاسو پکښې اوسیږئے . دَ طاقت ستاسو نه او مهٔ

تُضَآرُّوْهُنَّ لِتُضَيِّقُوْا عَلَيْهِنَّ ؕ وَاِنْ كُنَّ
ضَرَر . ورکوئے دوی ته دَ پاره دَ دے چه تنګسیا راولئ په دوی باندے او که چرے وی

اُولَاتِ حَمْلٍ فَاَنْفِقُوْا عَلَيْهِنَّ حَتّٰى
دا زنانه حمل والا نو خرچ کوئے په دوی باندے تر دے پورے چه

يَضَعْنَ حَمْلَهُنَّ ۚ فَاِنْ اَرْضَعْنَ لَكُمْ
او زیږوی حمل خپل نو که چرے پئ ورکوی دوی ستاسو (بچو) لره

فَاٰتُوْهُنَّ اُجُوْرَهُنَّ ۚ وَاْتَمِرُوْا بَيْنَكُمْ
نو ورکوئے دوی ته مزدوری دَ دوی او جرګه کوئے په مینځ خپل (په باره دَ بچی کښې) کښې

يعنى طلاق، عدت، رجوع، شهادات۔ اَمْرُاللّٰهِ مراد دَ دے نه حکم او قانون دَ الله تعالیٰ دے برابره خبره ده که په صیغه دَ امر سره وی او که دَ نهی سره وی۔ وَيُعْظِمْ لَهٗٓ اَجْرًا په صیغه دَ مضارع سره یئے ذکر کړو اشاره ده چه څومره تقویٰ زیاتیږی نو دومره به اجر او ثواب عظیم ورکیدے شی۔

فائده:- هر کله چه دَ تقوی درے درجے دی لکه چه په سورة مائده ۹۳ کښې تیرے شوی دی دَ دے وجے نه په دے سورت کښې هم درے کرته تقویٰ ذکر شوه اوله درجه کښې پوره عقیده دَ توحید ساتل او دَ هر قسم شرک نه ځان بچ کول هر کله چه صرف توحید ذکر وؤ نو دَ هغے فائده یئے صرف مخرج ذکر کړه او هر کله چه ورسره توکل ذکر کړو چه اشاره ده دَ هر قسم شرک نه ځان بچ کولو ته نو ورسره برکت او وسعت دَ رزق دَ دنیا او دَ جنت ذکر کړے شو۔ دویمه درجه دَ تقویٰ ده دَ احکامو دَ الله تعالیٰ پوره پابندی کول په امتثال دَ اوامرو سره او اجتناب دَ نواهی سره نو ورسره یئے یسر ذکر کړو چه په دے سره مشکلات اسانیږی۔ دریمه درجه استقامت او دَ شبهاتو نه ځان ساتل دی نو دَ هغے دوه فائدے ذکر کړے دَ سیئاتو معافی او دَ اجرو ثواب ډیر والے (والله اعلم)۔

بِمَعْرُوْفٍ ۚ وَاِنْ تَعَاسَرْتُمْ فَسَتُرْضِعُ لَهٗٓ

په خه طریقه سره او که چیرے تاسو سختی کوئے ډیو بل سره (پسمزد ورکولو کښ) نو یقیناً به ورکړی ورته

اُخْرٰى ۝ لِيُنْفِقْ ذُوْ سَعَةٍ مِّنْ سَعَتِهٖ ۭ

بله ښځه - خرچ دې کوی خاوند د فراخۍ د فراخۍ خپلې نه (د مال په لحاظ سره)

سـ په دے ایت کښ شپږ جملے او شپږ احکام ذکر کړے دی. اول حکم اَسْكِنُوْهُنَّ وجوب د سکنیٰ د مطلقے که په طلاق رجعی سره وی او که بائن سره وی. په دے کښ سکنیٰ د مطلقے رجعی د پاره خاص وؤ او دلته عام دے. مِنْ حَيْثُ، مِنْ د تبعیض دے یعنی مکان د اوسیدلو یا مِنْ زائده دے یا مِنْ د ابتداء د پاره دے یعنی د هغه طریقے نه چه تاسو خه رنګ اوسیږئ.

مِنْ وُّجْدِكُمْ مراد تربیته قدرت مالیه د خاوند دے که په طریقه د ملکیت سره وی او که اجرة سره وی لوئے کور وی یا وړوکے خو موافق د طاقت د خاوند سره.

دویم حکم وَلَا تُضَآرُّوْهُنَّ الخ اضرار عام دے په مسکن کښ یا بے ضرورته رجوع کول طلاقے شوے ته یا نفقه نه ورکول په تیز د امام ابوحنیفه رحمة الله او مقصد ئے دا وی چه دا سکنیٰ پریږدی یا خپل حق او نه غواړی.

دریم حکم وَاِنْ كُنَّ اُولٰتِ حَمْلٍ الخ حاملے ته په عدت کښ نفقه ورکول. او په غیر د حاملے نه د نورو مطلقو په باره کښ اختلاف دے چه د هغوی نفقه واجب ده او که نه ده واجب.

څلورم حکم فَاِنْ اَرْضَعْنَ فَاٰتُوْهُنَّ د دے وجے نه راوړه چه اول خو دا چه د دے بچے پیو والا نه وی او که وی نو دا ښځه نه خوخپل بچی ته پئ ورکوی او اجرت نه غواړی او که غواړی نو خاوند باندے اجرت د رضاعت واجب دے.

پنځم حکم وَاْتَمِرُوْا بَيْنَكُمْ بِمَعْرُوْفٍ مخاطب په دے سره مور او پلار د بچی دی دوی په د هغه د رضاعت په باره کښ مشوره او اتفاق کوی د پاره د دے چه د دوی په اختلاف سره تربیت د بچی برباد نشی.

شپږم حکم وَاِنْ تَعَاسَرْتُمْ الخ دا هم خطاب دے مور او پلار د بچی ته چه د اجرت د رضاعت په باره کښ اختلاف راشی او یو بل سره تنګسیا کوی یعنی مسامحه او اتفاق نه کوی نو پلار د بچی لره لازم دی چه بله مرضعه په اجرت سره اونیسی.

وَمَنْ قُدِرَ عَلَيْهِ رِزْقُهُ فَلْيُنْفِقْ مِمَّا اٰتٰىهُ

او هغه څوک چه تنګه ده په هغه باندے روزی دَ هغه نو خرچ دې اوکړی دَ هغه مال نه چه ورکړے دے ده ته

اللّٰهُ ؕ لَا يُكَلِّفُ اللّٰهُ نَفْسًا اِلَّا مَآ اٰتٰىهَا ؕ

الله تعالیٰ تکلیف نه ورکوی الله تعالیٰ هیڅ نفس ته مګر برابر دَ هغه طاقت چه ورکړے دے ده ته

سَيَجْعَلُ اللّٰهُ بَعْدَ عُسْرٍ يُّسْرًا ۝ ع

زر دے چه پیدا به کړی الله تعالیٰ روستو دَ تنګسیا نه اسانتیا ۔

وَكَاَيِّنْ مِّنْ قَرْيَةٍ عَتَتْ عَنْ اَمْرِ رَبِّهَا

او ډیر کلو والو چه نافرمانی اوکړه دَ حکم دَ رب خپل نه

ف په دے ایت کښ څلور جملے دی دَ مسئلے دَ انفاق سره متعلق دی ۔
لِيُنْفِقْ ذُوْسَعَةٍ مِّنْ سَعَتِهٖ دا امر دَ انفاق عام دے انفاق دَ خاوند په ښځه باندے او انفاق دَ پلار په اولاد باندے او انفاق په مرضعه باندے او دَ دے نه علاوه انفاق فی سبیل الله او نور نفقاتِ واجبو ته هم شامل دے دا رنګ خرچ کول دَ انسان په خپل ځان باندے هم په دے کښ داخل دے په دے ټولو کښ چه حال دَ انفاق کوونکی ته اعتبار دے نو معلومه شوه چه په باب دَ نکاح کښ هم دَ ښځے حالت دَ مالدارئے غریبے ته اعتبار نیشته بلکه دَ خاوند حالت ته به نظر کیدیشی حکمت په دے کښ په دریمه جمله کښ ذکر دے چه لَا يُكَلِّفُ اللّٰهُ اه یعنی څوک چه په یو عمل باندے مکلف وی نو دَ هغه طاقت ته اعتبار دے ۔
اِلَّا مَآ اٰتٰىهَا هرکله چه په دے ایت کښ صرف دَ انفاق دَ مال مسئله ده دَ دے وجے نه اٰتٰهَا ئے ذکر کړو او هرکله چه عام عبادات او تکالیف مراد وی نو هلته الا وسعها (عام لفظ) ذکر کیږی ۔
سَيَجْعَلُ اللّٰهُ بَعْدَ عُسْرٍ يُّسْرًا دا تسلی ده چه هرکله انسان په هر حالت کښ دَ الله تعالیٰ دَ حکم تابعداری کوی په مالدارئے کښ او غریبے کښ نو الله تعالیٰ به په هغه باندے اسانتیا په دنیا او اخرت کښ راولی لکه په سورة انشراح ۵ ۶ کښ ۔

وَرُسُلِهٖ فَحَاسَبْنٰهَا حِسَابًا شَدِيْدًا ۙ

او د رسولانو د هغه نه نو حساب اوکړو مونږ د هغوی سره حساب سخت

وَّعَذَّبْنٰهَا عَذَابًا نُّكْرًا ⑧ فَذَاقَتْ وَبَالَ

او عذاب ورکړو مونږ هغوی ته عذاب ډیر بد . نو او څکل هغوی سزا

اَمْرِهَا وَكَانَ عَاقِبَةُ اَمْرِهَا خُسْرًا ⑨

د کارخپل او شو عاقبت د کار د هغوی تاوان .

ش ۹ روستو د بیان د احکامو او حدود شرعیه نه تخویف دنیوی او اخروی ذکرکوی د پاره د تحذیر د مخالفت کولو د دے حکمونو نه او تخویف په پنځه طریقو سره ذکر شوی دے . مِنْ قَرْيَةٍ مراد ترینه اهل قریه دی په تقدیر د اضافت سره قریة د قری نه دے جمع نه ویلے شی نو قریه هغه ښارا و کلے چه ډیر خلق پکښ جمع وی .

عَتَتْ عَنْ اَمْرِ رَبِّهَا لفظ د امر کښ اشاره ده ش ته او مراد د دے نه وحی د الله تعالیٰ ده وَرُسُلِهٖ یعنی د توحید او رسالت دواړو نه یې نافرمانی او بغاوت کړے وو .

فَحَاسَبْنٰهَا الخ د سخت حساب نه مراد دا دے چه هیڅ جرم یې ورته معاف کړے نه دے د ټولو ګناهونو په سزا سره یې را اونیول .

وَعَذَّبْنٰهَا عَذَابًا نُّكْرًا دا په دنیا کښ وو اشاره ده هغه عذابونو ته چه په قوم نوح ؑ او عاد او ثمود واصحاب مدین او مؤتفکات وغیره باندے رالیږلے شوی وو .

فَذَاقَتْ وَبَالَ اَمْرِهَا مراد د امر نه نافرمانی کول په کفر او شرک او انکار رسالت سره دی .

وَبَالَ سخت عاقبت ته ویلے شی او حرف فا اشاره ده چه روستو د عذاب نه دوی ته احساس اوشو چه دا زمونږ د اعمالو عاقبت دے ځکه چه لفظ د ذاقت هم په احساس باندے دلالت کوی ذوق د احساسات ظاهریو نه دے .

وَكَانَ عَاقِبَةُ اَمْرِهَا خُسْرًا لفظ د امر یې مکرر ذکر کړو د پاره د مزید قباحت د هغې . ظاهر د الفاظو نه دا ده چه دا ټول دواړه جملے د عذاب دنیوی سره متعلق دی .

أَعَدَّ اللّٰهُ لَهُمْ عَذَابًا شَدِيدًا فَاتَّقُوا اللّٰهَ

تیار کړے دے الله تعالیٰ دوی لره عذاب سخت (په آخرت کښې) نو وېره کوئ د الله تعالیٰ نه

يٰٓأُولِي الْأَلْبَابِ ۚ الَّذِينَ آمَنُوا ۚ قَدْ أَنزَلَ

اے صفا عقل والو - هغه کسان چه ایمان ئې راوړے دے یقینًا نازل کړے دے

اللّٰهُ إِلَيْكُمْ ذِكْرًا ⑩ رَّسُولًا يَتْلُوا عَلَيْكُمْ

الله تعالیٰ تاسو ته یادداشت رسول چه لولی په تاسو باندے

آيَاتِ اللّٰهِ مُبَيِّنَاتٍ لِيُخْرِجَ الَّذِينَ آمَنُوا

آیاتونه د الله تعالیٰ ښکاره کوونکی د حکمونو د دے د پاره چه اوباسی هغه کسان چه ایمان ئې راوړے دے

وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ مِنَ الظُّلُمَاتِ إِلَى النُّورِ ۚ

او عملونه ئې کړیدی په برابر د سنت سره د تیارو نه رڼا ته -

سلہ په دے کښې تخویف اخروی ذکر کوی په اوله جمله کښې او ایمان بالآخرة او صداقت د قرآن هم په دے آیت کښې ذکر کوی - فَاتَّقُوا اللّٰهَ روستو د ذکر د عذاب د تیر شوے خلقو نه تنبیه ده او امر په تقویٰ دے دے امت ته ځکه چه تقویٰ دعوی د دے سورت ده او مراد د دے امر د تقوی نه ادامة (همیش والے) او استقامت دے په تقویٰ باندے په درے واړه مرتبو د تقویٰ کښې کوم چه مخکښې ذکر شویدی په دلیل د دے چه دا خطاب دے ایمان والو ته -

يٰٓأُولِي الْأَلْبَابِ هغه خلق دی چه د هغوی عقلونه د مقابلے د وهم نه او د شکونو شبهاتو نه محفوظ دی د هغوی صفات په سورة آل عمران سلہ۱۹۰ سورة زمر سلہ۱۸ کښې ذکر دی -

الَّذِينَ آمَنُوا دا صفت دے یا عطف بیان دے یا بدل دے د اولی الالباب نه او په دے کښې اشاره ده چه ایمان او تقوی والا صحیح عقل والا خلق دی -

قَدْ أَنزَلَ اللّٰهُ إِلَيْكُمْ ذِكْرًا مراد د دے نه قرآن دے او په دے کښې تاکید دے چه اے مؤمنانو غفلت او نکړئ ځکه چه تاسو سره د تذکیر کتاب موجود دے.

وَمَنْ يُّؤْمِنْ بِاللّٰهِ وَيَعْمَلْ صَالِحًا يُّدْخِلْهُ

او چا چه ایمان راوړو په الله تعالیٰ او عمل ئې کوؤ برابر د سنت سره داخل به کړي هغه لره

جَنّٰتٍ تَجْرِيْ مِنْ تَحْتِهَا الْاَنْهٰرُ خٰلِدِيْنَ

جنتونو ته چه بهیږي لاندې د هغې نه ویالې همیشه به وي

فِيْهَآ اَبَدًا ۭ قَدْ اَحْسَنَ اللّٰهُ لَهٗ رِزْقًا ⑪

په هغې کښې همیشه یقینًا خائسته کړیده الله تعالیٰ دهٔ لره روزي (په جنت کښې).

---

رَسُوْلًا په دې کښې صداقت دَ رسول ذکر کوي. پهٔ نصب (رَسُوْلًا) دَ رسولًا کښې ډیر اقوال دي یو دا چه دا بدل دې (او کوفیان ورته ترجمه وائي) دَ ذکرًا ته نو رسول ته ئې ذکر مبالغةً اویل یعني صاحب دَ ذکر دې - دویم قول دا دې چه په دې کښې اَرْسَلَ پټ مراد دې - دریم دا چه ذکرًا مصدر دې او رسولًا دَ هغې مفعول دې یعني نازل کړیدې الله تعالیٰ ذکر دَ رسول په قرآن کښې۔

څلورم دا چه فعل امر (اِتَّبِعُوْا) پټ دې۔ یَتْلُوْا عَلَیْکُمْ الخ صداقت دَ قرآن ته اشاره ده او دا دلیل دې چه مراد دَ رسول نه محمد صلی الله علیه وسلم دې

مُبَيِّنٰتٍ. بینات اکثر په عقیده کښې استعمالیږي او مبینات په احکامو او اعمالو کښې لکه سورة نور ۳۳ ۴۶ کښې هلته هم احکام وؤ او په دې سورت کښې هم احکام دي۔ لِيُخْرِجَ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا الخ ضمیر دَ یخرج رسول ته راجع دې یا آیات الله ته راجع دې په تاویل دَ قرآن یا دَ ذکر سره یا الله تعالیٰ ته راجع دې۔

تائید دَ اول احتمال په سورة ابراهیم ۱ کښې دې او تائید دَ دویم په سورة مائده ۱۶ کښې دې او تائید دَ دریم په سورة احزاب ۴۳ او سورة بقره ۲۵۷ کښې دې۔

سوال:- ایمان او عمل صالح والا خو دَ ظلماتو نه وتلې دي نو بیا دَ هغوي دَ اخراج څه معنیٰ ده؟

جواب اول:- مراد هغه کسان دي چه دَ هغوي ایمان په تقدیر دَ الله کښې مقرر دې

جواب دویم:- مؤمنان کتابیان مراد دي۔

جواب دریم:- مؤمنان مراد دي او دَ اخراج نه مراد بچ کول دي دَ ظلماتو دَ ګمراهۍ نه۔ (رپاتې په بل مخ)

اَللّٰهُ الَّذِیْ خَلَقَ سَبْعَ سَمٰوٰتٍ وَّمِنَ الْاَرْضِ

الله تعالیٰ هغه ذات دے چه پیدا کړیدی اوؤ اسمانونه او دَ زمکو نه

مِثْلَهُنَّ ؕ یَتَنَزَّلُ الْاَمْرُ بَیْنَهُنَّ لِتَعْلَمُوْۤا

پشان دَ اسمانونو راکوزیږی حکم دَ الله تعالیٰ په مینځ دَ دوی کښې دَدے دَپاره چه یقین اوکړئ تاسو

اَنَّ اللّٰهَ عَلٰی كُلِّ شَیْءٍ قَدِیْرٌ ۙ وَّ اَنَّ اللّٰهَ

چه یقیناً الله تعالیٰ په هر خیز باندے قدرت والا دے او یقیناً الله تعالیٰ

قَدْ اَحَاطَ بِكُلِّ شَیْءٍ عِلْمًا ⑫

راګیر کړے دے هر خیز په علم خپل کښې۔

جواب څلورم:- دا چه ظلمات نه مراد بعض شکونه او شبهات او وسوسے شیطانی او نفسانی دی نو الله تعالیٰ مؤمنانو لره دَ قران او رسول په ذریعه دَ دے نه اوباسی۔ وَمَنْ یُّؤْمِنْ ۢ بِاللّٰهِ اه دا بشارت دے روستو دَ اخراج دَ ظلماتو نه قَدْ اَحْسَنَ اللّٰهُ لَهٗ رِزْقًا مراد احسان نه وسعت او دَ رزق نه مراد رزق دَ جنت دے یا دا بشارتِ دنیوی دے روستو دَ بشارتِ اخرویه نه او په دنیا کښې احسان دَ رزق په ۳ کښې ذکر شو۔

۱۲ په دے ایت کښې پنځه جملے دی او ټولے دلالت کوی په توحید باندے په رد دَ شرک فی التصرف او فی العلم سره۔ او دا متعلق دے دَ تخویف سره چه الله تعالیٰ قادر او عالم دے نو دَ هغه دَ عذاب نه په هیڅ طریقه بچ کیدلے نه شئ بغیر دَ ایمان نه۔ وَمِنَ الْاَرْضِ مِثْلَهُنَّ مماثلت په بعض صفاتو کښې وی نو دلته مماثلت په عدد کښې دے چه اووه دی او دا رنګ احادیث صحیحه کښې تصریح راغلے ده چه زمکے اووه دی لکه حدیث دَ بخاری چه چا په ظلم سره دَ بل چا دَ زمکے نه دَ یو لیشت په مقدار سره واخستله نو دَ قیامت په ورځ به دَ دهٔ غاړے ته دَ اووۀ زمکو نه اچولے شی۔ او دا حدیث اشاره کوی چه دا زمکے دَ یو بل دَپاسه طبقه طبقه دی نو چا چه ویلی وؤ چه اووۀ اقلیمونه مراد دی هغه قول بے دلیله دے۔ لیکن هغه حدیث چه امام بیهقی په کتاب الاسماء والصفات کښې ذکر کړیدے چه په هره زمکه کښې

آدم دے ستا سو دَ آدم پشان او نوح علیه السّلام (الی آخره) دا حدیث صحیح نه دے بیهقی ویلے دی چه دا حدیث شاذ دے او دَ دے متابع هم نیشته.
ابن کثیر او امام ذهبی هم دا سے ویلے دی او ابو حیان په بحر المحیط کښ ویلے دی چه دا بیشکه موضوعی روایت دے او دَ واقدی کذاب نه نقل دے او دَ دے په مقابله کښ دَ حاکم صاحب مستدرک تصحیح ته اعتبار نیشته او په نبراس کښ وئیلے دی چه دَ امام نووی نه نقل ده چه دا حدیث ثابت نه دے.
یَتَنَزَّلُ الْاَمْرُ بَیْنَهُنَّ امر نه مراد وحی ده یا هغه امور چه الله تعالیٰ مقدر کړے دی بَیْنَهُنَّ بنا اول احتمال ضمیر راجع دے ټولو آسمانونو ته او دَ آسمانونو او زمکے مینځ ته چه په دے کښ وحی دَ الله تعالیٰ نازلیدله او په دویم احتمال ضمیر ټولو آسمانونو او زمکو ته راجع دے په ټولو کښ دَ الله تعالیٰ مقدرات او تدبیرات چلیږی.
لِتَعْلَمُوْآ دا متعلق دے دَ خَلَقَ سره یا متعلق دے دَ یتنزل سره بنا په اول باندے مطلب دا دے چه خلق دَ دے عالم بره او ښکته دلیل دے دَ دوه صفتونو دَ الله تعالیٰ باندے چه قدرت ئے دے هر څیز باندے او علم لری دَ هر څیز.
او بنا په دویم احتمال باندے مقصد دا دے چه دَ وحی منزل خلاصه علم دَ دوؤ مسئلو دے اوله مسئله عموم دَ قدرت دَ الله تعالیٰ دے او دویمه علم دَ الله تعالیٰ په هر څیز باندے. لِتَعْلَمُوْآ په دے لفظ کښ اشاره ده چه علم دَ دے دوه صفتونو فرض دے په هر مکلّف باندے.
سوال:- اسماء او صفات دَ الله خو ډیر دی نو دَ دے دوؤ تخصیص ئے ولے کړیدے؟
جواب:- دا دوه صفتونه خلاصه ده دَ ټولو صفتونو الهیو او دَ دے وجے نه عقلی دلیلونه دَ توحید په قرآن کریم کښ په دے دوه صفتونو باندے مشتمل دی لکه په سورة بقره ۲۸ ۲۹ او سورة انعام ۱ ۲ ۳ او سورة نحل ۳ ۱۹ او نور ډیرو سورتونو کښ هم شته.

الحمد لله تفسیر دَ سورة الطلاق ختم شو.

| سُوْرَةُ التَّحْرِيْمِ ۶۶ مَدَنِيَّةٌ ۱۰۷ | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | اٰيَاتُهَا ۱۲ | رُكُوْعَاتُهَا ۲ |
|---|---|---|---|

يٰٓاَيُّهَا النَّبِيُّ لِمَ تُحَرِّمُ مَآ اَحَلَّ اللّٰهُ لَكَ ج

اے نبی ولے بندوے پہ ځان باندے هغه څیز چه حلال کړے دے الله تعالیٰ تا لره

## بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

سورة التحريم او نور نومونه ئے سورة النبی او سورة لم تحرم او سورة المتحرم دی
ربط دَ دے سورت دَ مخکښ سورت سره په ډیرو وجوهو سره دے اول وجه دا
ده چه مخکښ امور متعلقه دَ طلاق ذکر کړل اوس په دے سورت کښ هغه اخلاق
ذکر کوی چه منع کوونکی دَ طلاق دی۔ دویمه وجه دا ده هر کله چه ذکر کړل
په مخکښ سورت کښ احکام دَ جدا ئے دَ ښځے او خاوند نو په دے سورت کښ ذکر
کوی هغه احکام چه په هغے سره جوړخ راځی دَ ښځے خاوند۔ دریمه وجه دا ده چه هر
کله مخکښ سورت کښ عظمتِ شان دَ رسول صلی الله علیه وسلم ذکر شو نو
په دے سورت کښ عتاب دے هغه چا ته چه دَ هغه دَ خفگان کار کوی۔
دعوی دَ سورت۔ ذکر دَ حقوق دَ زوجیت۔ او عدم افاده دَ زواج دَ پاره دَ
نجات دَ عذاب نه۔ او تهه اسماءِ حسنیٰ ذکر کوی دَ پاره دَ توحید۔
خلاصه دَ سورت دا ده۔ دوه خطابات دَ نبی صلی الله علیه وسلم او دوه دَ
مؤمنانو په اول خطاب دَ نبی صلی الله علیه وسلم کښ مقصد حرج لرے کول
دی دَ هغه نه په پاره دَ رضا کولو دَ بیبیانو کښ په هغے څیز کښ چه دَ هغوی
حق نه دے۔ بیا ترغیب دے بیبیانو ته په ساتلو دَ رازونو دَ نبی صلی الله علیه
وسلم کښ او دَ هغه دَ خلاف (تظاهر) نه منع کول دی او دا رنګ ترغیب دے
دوی ته په ښځه اخلاقِ حسنه سره دا ترسه پورے دی۔ بیا ذکر دَ حق دَ خاوند
دے په ښځه باندے۔ بیا اول خطاب دے مؤمنانو ته چه په هغے کښ ذکر کوی
حق دَ ښځے په خاوند باندے په هغه امورو چه دَ عذاب نه بچ کول کوی او بیا
دویم خطاب دَ مؤمنانو دے او په هغے کښ ترغیب دے توبے ته دَ پاره دَ

تَبْتَغِيْ مَرْضَاتَ اَزْوَاجِكَ ۗ وَاللّٰهُ غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ ①

لټوې په دې سره خوشحالي دَ بيبيانو ستا او الله تعالىٰ بخښونکې رحم کوونکې دې۔

بچ کيدلو دَ اُور نه او بشارت اخروية دے۔او بيا دويم خطاب دَ نبي صلى الله عليه وسلم دے په چهاد سره دَ پاره دَ دے چه معامله دَ بيبيانو سره مشغول نشي دَ دے اهم مقصد نه.بيا دَ دوه وهمونو جوابونه دي اول وهم دادے چه هر کله دَ ښځې عقيده دَ خاوند دَ عقيدے نه مخالفه وي په سبب دَ شرک کولو دَ ښځې نو ايا صرف ښځه کيدل دَ موحد سړي دے له فائده ورکوي؟ حاصل جواب دادے چه نه ورکوي او مثال ئې ذکر کړو دَ ښځې دَ نوح عليه السلام او دَ ښځې دَ لوط عليه السلام۔ دويم وهم دادے چه هر کله ښځه موحده وي او خاوند مشرک کافر وي نو دا نکاح دے ښځې ته ضرر او نقصان ورکوي؟ حاصل جواب دادے چه هيڅ ضرر نه ورکوي ما سيوا دَ ابتلاء نه او مثال ئې ذکر کړے دے په امرءة فرعون سره او په دے مثال کښ سرۀ دَ ذکر دَ حال دَ مريم نه تشجيع هم ده مؤمنانو ته په استقامت دَ دين دَ الله تعالىٰ سره۔

تفسير ۱ـ مفسر قرطبي او اکثرو مفسرينو دَ دے سبب نزول کښ ډير اقوال ليکلي دي ليکن هغه روايت چه په سند صحيح سره امام بخاري نقل کړيدے هغه دادے چه نبي صلى الله عليه وسلم دَ بي بي زينب رضى الله عنها کور کښ دَ کبين شربت او څښلو نو بي بي عائشه رضى الله عنها او بي بي حفصه رضى الله عنها دَ بنتوب دَ غيرت دَ وجے نه اتفاق اوکړو چه نبي صلى الله عليه وسلم چه هر يو کره راشي نو ورته به اُوايو چه ستا نه دَ مغافير بوئې زي ايا تا مغافير خوړلے دي (مغافير جمع دَ مغفور ده او دے ته عرفط هم ويلے شي دا دَ يو قسم بوټي گل دے چه دَ عربو (نحل) مچو به هغه خوړلو او دَ هغے نه به شهد پيدا کيدل نو په هغه شهد کښ به هغه بوټي بوئي نو دَ دوي قول چه ستا نه دَ مغافير بوئې ځي دا خبره رشتيا وه او دويمه خبره خو په طور دَ تپوس سره ده چه ايا تا مغافير خوړلے دي دَ تپوس په جمله کښ صدق اوکذب نه راځي (او نبي صلى الله عليه وسلم به دَ بد بوئې څيز دَ استعمال نه ځان۔بچ ساتلو) نو هغه اوفرمائيل چه ما مغافير نه دي خوړلي ليکن دَ شهد شربت مې څښلے دے آئينده به نه څښم او په (رپاتے په بل مخ)

قَدْ فَرَضَ اللّٰهُ لَكُمْ تَحِلَّةَ اَيْمَانِكُمْ وَاللّٰهُ

| يقيناً مقرر كړی دی الله تعالىٰ تاسو لره | پرانستل | دَ قسمونو ستاسو | او الله تعالىٰ |
|---|---|---|---|

ما د حرام وی، او بل صحیح سند والا روایت هم شته لیکن صحیحینو ته دے راوړے دَ هغې اختصار دا دے چه رسول صلی الله علیه وسلم حفصه رضی الله عنها ته ویلے وو چه ماریه رضی الله عنها مور دَ ابراهیم دَ په ما باندے حرامه وی او په دواړو روایتونو کښ دا هم شته چه نبی صلی الله علیه وسلم حفصه رضی الله عنها ته او فرمائیل چه دا راز به ته ښکاره کوے او نورو خبرو کښ مقصد دَ نبی صلی الله علیه وسلم دا وو چه نورے بیبیانے رضا وی او زینب او ماریه هم خفه نشی نو الله تعالىٰ دَ دے سورت ابتدائی آیاتونه نازل کړل چه يَا أَيُّهَا النَّبِيُّ لِمَ تُحَرِّمُ مَا أَحَلَّ اللّٰهُ لَكَ قرطبی ویلے دی چه دا عتاب دے یعنی دَ دوه دوستانو په منع کښ دَ زور نے خبرے) دا گناه صغیره یا کبیره نه دے او قاسمی ویلے دی چه دا خطاب په طریقه دَ شفقت سره دے چه ولے ځان په تکلیف کښ دَ بیبیانو دَ وجے نه اچوے او شربینی ویلے دی چه دا په طریقه دَ عتاب سره نه دے بلکه تنبیه ده چه دا کار ستا دَ شان سره مناسب نه دے۔

سوال:۔ کوم څیز چه الله تعالىٰ حرام کړے وی نو نبی صلی الله علیه وسلم خو هغه نشی حرام کولے لکه حدیث دَ بخاری (په باره دَ نکاح دَ علی رضی الله عنه دَ لور دَ ابوجهل سره) کښ وارد دی چه نبی صلی الله علیه وسلم فرمائیلی دی چه زه خو حلال دَ الله تعالىٰ نشم حراموله نو دَ دے آیت څه مطلب دے؟

جواب:۔ دلته تحریم په معنیٰ لغوی سره دے چه منع ده او فایده اخستل دَ یو څیز نه ته ده مراد نه ده دَ عقیده دَ تحریم دَ ما احل الله ځکه چه داسے عقیده لرل خو کفر دے او نبی دَ هر معصیت نه پاک وی داسے خطیب شربینی ذکر کړے دی۔

تَبْتَغِيْ مَرْضَاتَ اَزْوَاجِكَ او دا خو امر مباح دے لیکن دَ دے وجے نه په ځان باندے مشقت خلاف عادت مه اچوه۔

مَوْلٰىكُمْ ۚ وَهُوَ الْعَلِيْمُ الْحَكِيْمُ ۝۲ وَاِذْ اَسَرَّ

مولا ستا سو دے او خاص عالم په هر څه پوهېږي حکمتونو والا دے ۔ او کوم وخت چه پټه اوکړه

النَّبِيُّ اِلٰى بَعْضِ اَزْوَاجِهٖ حَدِيْثًا ۚ فَلَمَّا

نبي صلى الله عليه وسلم بعض د بيبيانو خپلو ته يوه خبره نو هر کله

نَبَّاَتْ بِهٖ وَاَظْهَرَهُ اللّٰهُ عَلَيْهِ عَرَّفَ

چه دے خبر کړه په هغې سره بله او خبر ورکړو الله تعالى په هغې باندے نبي صلى الله عليه وسلم لره نو وېخودله

بَعْضَهٗ وَاَعْرَضَ عَنْۢ بَعْضٍ ۚ فَلَمَّا نَبَّاَهَا

يوه خبره او مخ ئے واړوؤ د بلے خبرے نه نو هر کله چه نبي صلى الله عليه وسلم خبر ورکړه هغې بي بي

بِهٖ قَالَتْ مَنْ اَنْۢبَاَكَ هٰذَا ۗ قَالَ نَبَّاَنِيَ

په هغې خبرے سره هغې اُوئیل چا تاله دا خبر درکړے دے هغه اُوئیل خبر راکړے دے ما ته

سے قَدْ فَرَضَ اللّٰهُ په دے کښې ترغيب دے د دغه قسم ماتولو ته په کفاره ادا کولو سره ۔ فَرَضَ په معنىٰ د تقدير سره دے او تقدير د کفارے په سورة مائده سے ۸۹ کښې ذکر کړے شوے دے ۔ تَحِلَّةَ اَيْمَانِكُمْ ، تحلّه د حَلّ نه ماخوذ دے په معنىٰ د پرانستلو د غوټے دے يعنې په قسم سره چه کومه غوټه راغله نو د هغې غوټے پرانستل په کفارے سره دي ۔ اَيْمَانِكُمْ جمع د يمين ده قسم ته ويلے کيږي دا اشاره ده چه تحريم د ما احل الله په معنىٰ د قسم کښې دے که خوراک څښاک وغيره وي يا ښځه وي او دا قول امام بخاري د ابن عباس رضي الله عنهما نه روايت کړے دے او په دے کښې قرطبي اتلس اقوال ذکر کړے دي ليکن غوره دا ده چه چا د خوراک ، څښاک ، لباس او ښځے وغيره په باره کښې اُوئيل چه دا دِ په ما باندے حرام وي ليکن عقيده د حرمت شرعيه حقيقيه ئے نه وي نو دا قسم دے او په هغې کښې کفاره د قسم واجب ده ۔ وَاللّٰهُ مَوْلٰىكُمْ لفظ د الله ئے دوباره ذکر کړو د پاره د زياتے تسلّي د زړه ۔ مَوْلٰىكُمْ مالک ، متولي ، اختيارمند د کارونو او دوست ستاسو دے ۔

الْعَلِيْمُ الْخَبِيْرُ ﴿۳﴾ اِنْ تَتُوْبَآ اِلَى اللّٰهِ فَقَدْ

الله تعالیٰ چه په هرڅه پوهه ده خبردار دے. که چرے توبه او باسئ الله تعالیٰ ته نو یقینًا

صَغَتْ قُلُوْبُكُمَا ۚ وَاِنْ تَظٰهَرَا عَلَيْهِ

جوړ دی ستاسو زړونه (د پاره د توبے) او که چرے تاسو دوارے جوړے په مخالفت د هغه کښ

سے دا هم متعلق دے د مخکښ واقعے سره بَعْضِ اَزْوَاجِهٖ مراد د دے نه حفصه رضی الله عنها ده په غوره قول باندے. حَدِيْثًا مراد د دے نه تحریم د شهد دے او منع کول د هغے دی د ښکاره کولو د دے راز نه او بل قول کښ تحریم د ماریه رضی الله عنها مراد دے دا دلیل دے چه خاوند له جائز دی چه په بعض رازونو سره بعضے بیبیانے خاص کړی. فَلَمَّا نَبَّاَتْ بِهٖ یعنی عائشه رضی الله عنها ئے په هغے سره خبر کړه ګمان ئے داؤ چه په دے کښ په څه حرج نه وی ځکه چه عائشه رضی الله عنها ډیره محبوبه وه رسول الله صلی الله علیه وسلم ته او مفعول د نَبَّاَتْ ئے ذکر نه کړو اشاره ده چه نفس دا خبر ورکول نامناسبه کار وؤ تخصیص د یو شخص پکښ مقصد نه وؤ. وَاَظْهَرَهُ اللّٰهُ عَلَيْهِ په دے کښ دلیل دے چه نبی صلی الله علیه وسلم خو په غیب باندے نه پوهیدلو بلکه په علم کښ د الله تعالیٰ اخبار ته محتاج وؤ. عَرَّفَ بَعْضَهٗ تعریف په معنیٰ د الزام او ملامتیا ورکولو دے یعنی نبی صلی الله علیه وسلم حفصه رضی الله عنها ته اُوئیل چه تا ولے زما راز خور کړیدے او عائشه رضی الله عنها ته دِ حال وئیلے دے لیکن په ټولو خبرو باندے زورنه ورنکړه د بعضو خبرو ئے ورته شکوه اوکړه د دے وجے نه ئے اوفرمائیل وَاَعْرَضَ عَنْۢ بَعْضٍ یا مراد د دے نه دا چه زورنه ئے ورکړه لیکن طلاق ئے ورنکړو او فراق ئے ورسره اونکړو. او په دے کښ خائسته اخلاقو ته اشاره ده هغه دا ده چه دوست یا بی بی نه څه غلطی او نقصان اوشی نو پوره په هره یو خبره باندے زورنه ورکول پکار نه دی بلکه صرف په بعض خبرو باندے زورنه دِ اوکړی. او دا دلیل دے چه شیخ له یا دوست له جائز نه دی چه د خاوند او دوست رازونه دِ خوره وی. قَالَتْ مَنْ اَنْۢبَاَكَ هٰذَا دا دلیل دے چه د صحابه کرامو او د بیبیانو د نبی صلی الله علیه وسلم دا عقیده وه چه نبی صلی الله علیه وسلم حاضر او ناظر

**فَإِنَّ اللَّهَ هُوَ مَوْلَاهُ وَجِبْرِيلُ وَصَالِحُ**

نو یقیناً الله تعالیٰ مولا د هغه دے او جبرئیل علیه السلام او نیکان

**الْمُؤْمِنِينَ ۖ وَالْمَلَائِكَةُ بَعْدَ ذَٰلِكَ ظَهِيرٌ ④**

مؤمنان او نور ټول ملائک دوستو د دے نه د هغه دپاره کومکی دی.

اوغیب دان نه دے. قَالَ نَبَّأَنِيَ الْعَلِيمُ الْخَبِيرُ اشاره ده چه نبی صلی الله علیه وسلم وحی د الله تعالیٰ محتاج وو. الْعَلِيمُ الْخَبِيرُ کښې اشاره ده چه د الله تعالیٰ د رضا نه خلاف پټه یا ښکاره هیڅ خبره کول جائز نه دی. علیم په اعتبار د ظاهری خبرو او خبیر په اعتبار د باطنی خبرو سره دے.

سه په دے ایت کښې ترغیب دے توبه کولو ته. فَقَدْ صَغَتْ قُلُوبُكُمَا صغت د صوغ نه دے مائل کیدلو او جوړیدلو ته وئیلے کیږی که په ښه طریقه سره وی یا بدے طریقے سره وی او زیغ همیشه استعمالیږی په بده طریقه کښې نو مراد دا دے چه ستاسو زړونه توبے طرف ته مائل دی او د توبے دپاره جوړ شویدی نو جزا په اصل کښې محذوف ده یعنی که چرے تاسو توبه کوئے نو ستاسو توبه مقبوله ده او بل قول دا دے چه معنیٰ دا ده چه ستاسو زړونه اوړیدلی او کاږه شویدی د واجب طریقے نه په اطاعت د رسول کښې او دلته هم جزا په اصل کښې محذوف ده یعنی که تاسو توبه کوئے نو موجود دے سبب د توبے کولو ستاسو. لیکن په اوله توجیه کښې ترغیب توبے ته ډیر دے او دا رنګ پدے کښې صفت د عائشه او حفصه رضی الله تعالیٰ عنهما دے او هغه امهات المؤمنین دی چه د هغوی اکرام په مونږ باندے واجب دے. قُلُوبُكُمَا قانون د عربیت دا دے چه تثنیه بلے تثنیے ته مضاف کولو کښې ثقل ګڼړی نو د اول تثنیه نه جمع جوړه کړی نو دا افصح کلام دے او افراد هم جائز دے سره د فصاحت نه او تثنیه راوړل صرف جواز لری. او خطاب په ضمیر د کما کښې عائشه او حفصه رضی الله عنهما ته دے لکه چه حدیث د ابن عباس رضی الله عنه کښې امام بخاری نقل کړے دے. وَإِنْ تَظَاهَرَا عَلَيْهِ تظاهر د یو بل ملا تینګول او مدد کول دی او عَلیٰ د طرف د ضرر دے یعنی "که چرے تاسو د یو بل سره دله کوئے د پاره د ایذا ورکولو رسول صلی الله علیه وسلم ته" رپلے په بل مخ)

عَسٰى رَبُّهٗۤ اِنْ طَلَّقَكُنَّ اَنْ يُّبْدِلَهٗۤ اَزْوَاجًا

امید دے چه رب دَ نبی صلی الله علیه وسلم که چرے (دا نبی) طلاق ورکړی دَ بیبیانو ته نو بدله کښ به ورکړی نورے بیبیانے

خَيْرًا مِّنْكُنَّ مُسْلِمٰتٍ مُّؤْمِنٰتٍ قٰنِتٰتٍ

چه غوره به وی ستا سو نه مسلمانانے ښکاره ایمان لرونکی په زړونو تابعداری کوونکی دَ حکم

تٰٓئِبٰتٍ عٰبِدٰتٍ سٰٓئِحٰتٍ ثَيِّبٰتٍ وَّاَبْكَارًا ۝۵

توبے کوونکی بندګی کوونکی (په توحید سره) روژے نیوونکی کونډے او جینکے.

هرکله چه تظاهر په ایذاء کښ مقصد دَ بیبیانو نه وُو دَ دے وجے نه دائے روستو ذکر کړو صرف په طریقه دَ احتمال سره. فَاِنَّ اللّٰهَ هُوَ مَوْلٰىهُ جزاء په اصل کښ پټه ده یعنی ضرر نه شی ورکولے تظاهر ستاسو ځکه چه الله تعالیٰ مددګار دَ دهٔ دے.
وَجِبْرِيْلُ اه غوره دا ده چه دا مبتدا ده او ما بعد په دے باندے عطف دے او ظهیر ئے خبر دے او هغه جنس په معنی دَ جمع سره دے او مفرد ئے دَ دے وجے نه ذکر کړو چه دَ دوی په مینځ کښ پوره اتحاد او اتفاق دے ګویا که یو دی.
وَصَالِحُ الْمُؤْمِنِيْنَ صالح اسم جنس دے ټول مؤمنان سابقین او روستنی ټول پکښ داخل دی چه هغوی اکرام دَ رسول الله صلی الله علیه وسلم کوی او په هغه باندے درود وائی او دَ هغه دَ سنت تابعداری کوی. جبرئیل ئے اول ذکر کړو ځکه چه هغه هر وخت دے نبی ته وحی راوړله په اذن دَ الله تعالیٰ سره او ورپسے مؤمنین ذکر کړل چه هغوی دغه وحی لولی او اتباع دَ رسول سره مکلف دی او نور ملائک ئے روستو ذکر کړل ځکه چه دَ هغوی دَ نبی صلی الله علیه وسلم سره دَ جبرئیل او دَ صالح المؤمنین نه تعلق کم دے. بَعْدَ ذٰلِكَ دا اشاره ده تظاهر ته یا اشاره ده ولایت دَ الله تعالیٰ ته بنا په اول باندے علتیت ته اشاره ده او بنا په دویم باندے اشاره ده چه مدد کا الله تعالیٰ دَ هر چا مدد نه ځکښ دے.
ـ په دے کښ تنبیه او تحذیر دے بیبیانو دَ نبی صلی الله علیه وسلم ته په تطلیق او تبدیل سره کله چه دوی توبه اونکړی او تظاهر کوی. لیکن دوی توبه کړیده او تظاهر ئے پریخودلو نو نبی صلی الله علیه وسلم دوی لره طلاق نه دے ورکړے او روایت دَ طلاق دَ حفصه رضی الله عنها ثابت نه دے. عَسٰى رَبُّهٗۤ عسی دَ طرف دَ الله تعالیٰ نه دَ وجوب دَ پاره وی لیکن په هغه وخت چه څه تعلیق نه وی

يَاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا قُوْٓا اَنْفُسَكُمْ وَاَهْلِيْكُمْ

اے ایمان والو بچ کوئ ځانونه خپل او بال بچ خپل

او دلته يئ خو په شرط پورے معلق کړے دے، شرط دا دے اِنْ طَلَّقَكُنَّ ليکن نبي صلی الله علیه وسلم طلاق نه دی ورکړی. اَنْ يُّبْدِلَهٗٓ اَزْوَاجًا په زنانه بانده تطليق لوئ مصيبت وی او د دوستو د طلاق نه بله ښځه په بدل کښ نکاح کول خو ډير زيات مصيبت او غم وی د دے وجے دا دواړه کاروته (تطليق او ابدال) يئ ذکر کړل. خَيْرًا مِّنْكُنَّ (سوال) دا دلالت کوی چه د نبي صلی الله علیه وسلم د ازواجو نه نورے زنانه هم غوره شته؟

جواب:۔ دا دلالت نيشته ځکه چه ابدال د غوره ښځے په طريقه د فرض (تقدير) سره ده نه په طريقه د وقوع سره يعنی که بالفرض ازواج د نبي صلی الله علیه وسلم تظاهر کوی او عصيان کوی نو ضرور راتلونکی صفتونو والا زنانه به د دوی نه غوره وی ليکن توبے يئ اُويستلے او تظاهر د نبي صلی الله علیه وسلم يئ پريخودلو او راتلونکی صفتونه پکښ ټول موجود وو نو معلومه شوه چه د هغوی نه نورے زنانه غوره نيشته او بل دليل دا دے چه که د ازواج مطهرات د نبي صلی الله علیه وسلم نه نورے زنانه غوره وے نو بيا لازميږی چه الله تعالی نبي خپل لره تر مرګه پورے د ناقصو (چه غوره نه وی) زنانو سره اوساتلو او اوچتے او اعلے صفت نه يئ محروم کړو او دا خو باطله خبره ده نو يقيناً معلومه شوه چه ازواج د نبي صلی الله علیه وسلم د ټولو زنانو نه غوره دی او تفاضل د آسيه رضی الله عنها ښځه د فرعون او مريم رض لور د عمران او خديجه رضی الله عنها او عائشه رضی الله عنها او فاطمه رضی الله عنها په تفصيل سره په کتابونو د عقيدے کښ ذکر دے په هغے کښ اوګورے. مُسْلِمٰتٍ اٰه شپږ صفتونه د کمال د عبديت دی په انسان کښ که نارينه وی او که زنانه وی او دوستے صفت د عبديت سره تعلق نه لری اشاره ده چه هغه صفت ځان له سبب د کمال او د افضليت نه دے ځکه چه بعض ثيبه زنانه د نيک عمل او عقيدے په سبب د جاهلے بکرے (جونے) نه ښه وی. مُسْلِمٰتٍ اسلام چه د ايمان نه وړاندے ذکر شی په دے کښ اخلاص د پوره انقياد سره مراد وی او اخلاص د تصديق د پاره شرط دے د دے وجے نه وصف د اسلام يئ (رباتے په سيل مخ)

# نَارًا وَّقُوْدُهَا النَّاسُ وَالْحِجَارَةُ عَلَيْهَا مَلٰٓئِكَةٌ

دَ اور نه چه خشاک دَ هغې خلق دی او کانړی دی په هغې اور باندې مقرر دی ملائک

# غِلَاظٌ شِدَادٌ لَّا يَعْصُوْنَ اللّٰهَ مَآ اَمَرَهُمْ

سخت (طبیعت والا) طاقتور. نافرمانی نه کوی دَ الله تعالیٰ نه دَ هغې چه امر ئې کړې وی دوی ته

# وَيَفْعَلُوْنَ مَا يُؤْمَرُوْنَ ۝٦ يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ

او کوی دوی هغه څه چه دوی ته حکم ورکیدې شی - (او به ویلې شی) اے کفر

په ایمان باندے مقدم ذکر کړو - قَانِتَاتٍ مراد دَدے نه طاعة دَ الله تعالیٰ او د رسول دَ هغه دے په پوره اطاعت سره نو ټول اعمالِ صالحه کول او دَ منهیاتو نه بچ کیدل پدے کښ داخل دی تَآئِبَاتٍ مخکښې صفات ثبوتیه دی او دا صفت سلبیه دے یعنی ګناهونه نه کول او که چرے ګناه اوشی نو دَ هغې نه توبه کول او اشاره ده چه دَ خاوند په باره کښ څه نامناسب خبرے کړے وی نو دَ هغې نه توبه کوی - عَابِدَاتٍ په دے وصف کښ اشاره ده چه مخکښې صفتونه دَ خپل طبیعت په وجه سره یا دَ ریا په وجه یا دَ نفاق په طریقه سره نه کوی بلکه دَ الله تعالیٰ دَ عبدیت په سبب سره ئې کوی.

سَآئِحَاتٍ سیاحت په اصل کښ ګرځیدل په زمکه کښ دی او مفسرینو دَ دے درے معانی ذکر کړے دی روژے نیوُنکے ، هجرت کوُنکے ، ګرځیدونکے دَ طاعت دَپاره او قاسمی وئیلے دی چه هغه آیاتونه چه په هغې کښ دَ سیر فی الارض ذکر راغلے دے لکه سورة حج ۴۶ او سورة غافر ۲۱ او سورة روم ۹ دغه صفت لکه چه نارینو دَپاره ضروری دے نو زنانو دَ پاره هم ضروری دے - ثَيِّبَاتٍ وَّاَبْكَارًا اشاره ده چه دَ نبی صلی الله علیه وسلم ازواج هم دواړه قسمونه وے بعض پیغلے او اکثر ثیبے وے۔

۶ هر کله چه مخکښ حاصل دا وو چه په ښځه باندے دَ خاوند حق واجب دے دَ هغه راز نه به نه خوروی دَ هغه مقابله کښ به تظاهر نه کوی بلکه ځان کښ به دَ صالحو زنانو صفتونه پیدا کوی نو اوس دَ ښځو حق په خاوند باندے ذکر کوی - قُوْٓا اَنْفُسَكُمْ وَاَهْلِيْكُمْ نَارًا معطوف او معطوف علیه دواړه په وقایت کښ شریک دی لیکن په طریقه دَ وقایت کښ فرق دے هغه دا چه ځان به بچ کوی دَ اور نه په اتباع دَ قرآن او سنت سره او په طاعاتو کولو او پریخودلو

كَفَرُوْا لَا تَعْتَذِرُوا الْيَوْمَ اِنَّمَا تُجْزَوْنَ

| والو | بهانے مه کوئے | نن | ورځ | - | یقینًا | بدله درکیدیشی تاسو ته |
|---|---|---|---|---|---|---|

دَ معاصي سره او اهل به یې کوی په امر بالمعروف او نهی عن المنکر سره او په ادابو خودلو سره په عاموحالاتو کښې او مونځ خودلو او امر کولو سره مخکښې دَ بلوغ نه. وَقُوْدُهَا النَّاسُ وَالْحِجَارَةُ (سوال) چه په انسانانو سره بلیږی او دوی یې خشاک دے نو هرکله چه دوی ورته نه دی داخل شوی نو خشاک څه څیز وو ځکه چه اور خو دَ مخکښې نه بل دے، او دارنګ هرکله چه دوی خشاک دے نو مقصد دَ بلولو څه دے؟ (جواب) په څو وجوهو سره دے اول داچه کلام په طریقه دَ تشبیه بلیغ سره دے یعنی الناس والحجارة مثل الوقود دوی به دَ خشاک په شان سوځیږی دویمه وجه داده چه مخکښې دَ دخول دَ انسانانو نه دوی یې خشاک دے او عبارت کښې تقدیم تاخیر دے. دریمه توجیه داده چه سبب دَ بلیدلو دَ اور عابدانو او معبودان باطله دی چه اکثر دَ ګټو نه جوړ کړے شویدی. النَّاسُ مراد دَ دوی نه کافران مشرکان دی په دلیل دَ ایت دَ سورة العمران ۱۰ او سورة بقره ۲۴ سره. او مؤمنان ګنهګاران چه الله تعالی هغوی ته معافی او نکړی هغوی به هم اور ته داخلیږی لیکن دَ خشاک پشان به پکښې نول نه سوځیږی اندامونه دَ سجدے به بچ وی لکه چه حدیث صحیح کښې راغلی دی. وَالْحِجَارَةُ دا لفظ عام دے جنس ګټے ته چه دَ هغې اور ډیر ګرم وی او ګټے دَ ګوګړو (کبریت) چه دَ هغې اور تیزاو بدبوئیه وی او هغه ګټے چه دَ هغې عبادت کړے شوے دے بتان یې دَ هغې نه جوړ کړے دی یا یې په قبرونو باندے لګولے دی او مشرکانو هغې لره سبب دَ نفع او ضرر ګنړلے وی.

سوال:- په سورة بقره ۲۴ کښې النار یې معرفه په الف لام سره او صفت دَ هغې یې معرفه په التي سره ذکر کړیدے او په دے سورت کښې نکره ده وجه دَ فرق څه ده؟

جواب:- الف لام دلالت کوی په کمال او مبالغه باندے او نکره دلالت کوی په قلت او تخفیف باندے نو سورة بقره کښې خطاب دے مؤمنانو ته چه هغه مبالغه او سختی نه غواړی. عَلَيْهَا مَلَائِكَةٌ عدد دَ هغه ملائکو په سورة مدثر ۳۰ کښې ذکر کړے دے. او نوم دَ هغوی زبانیه په سورة علق ۱۸ کښې راپاتے په بل مخ)

مَا كُنْتُمْ تَعْمَلُوْنَ ۞ يٰۤاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا

دَ هغه عملونو چه تاسو کوئ . . اے ایمان والو

تُوْبُوْۤا اِلَى اللّٰهِ تَوْبَةً نَّصُوْحًا ؕ عَسٰى رَبُّكُمْ

توبے اوباسئ اللّٰه تعالیٰ ته توبے اخلاص والا امید دے چه رب ستاسو به

کښ ذکر دے غِلَاظٌ زړونه ئے سخت دی په جهنم والو باندے نه ترسیږی اگرچه هغوی ترینه دُعا غواړی خوراک او ښناك غواړی. شِدَادٌ مضبوط بدنونو او اندامونو والا دی او یو روایت قرطبی ذکر کړے دے چه دَ دے ملائکو دَ دواړه اوګوترمینځ دومره فاصله بوی لکه دَ مشرق نه ترمغربه پورے. لَا يَعْصُوْنَ اللّٰهَ مَاۤ اَمَرَهُمْ وَيَفْعَلُوْنَ مَا يُؤْمَرُوْنَ فرق دَ دواړه جملو دادے چه مراد دَ اول نه دادے چه انکار دَ اوامرو دَ اللّٰه تعالیٰ نه نه کوی او مراد دَ دویم دادے چه عمل کوی په ماموراتو باندے. دویم فرق دا چه اوله جمله په باره دَ زمانه ماضی کښ ده او دویمه په باره دَ زمانه مستقبله کښ ده. دریم فرق دادے چه دَ اولے جملے معنیٰ داوه چه خلاف نه کوی دَ اللّٰه تعالیٰ نه دَ هغه کارونو چه امر ئے په باره دَ اجتناب دَ هغے کښ کړے دے چه منهیات دی او عمل کوی په ماموراتو باندے نو په اوله جمله کښ اجتناب دَ منهیاتو نه مراد دے او په دویمه کښ امتثال دَ اوامرو مقصد دے. او دا ټول صفتونه دلالت کوی چه دَ دغه ملائکو نه په هیڅ طریقے سره بچ کیدل نشی کیدلے نه په رحم درخواست سره او نه په مقابلے کولو دَ هغوی سره او نه په رشوت اخستلو او مخالفت دَ حکم دَ اللّٰه تعالیٰ سره او نه په رعایت سره په کنوالی دَ عذاب کښ.

ک دا ایت هم دَ تخویف اخروی سره تعلق لری او دفع دَ وهم ده که څوک اوائی چه دَ ملائکو نه خو نشی بچ کیدلے لیکن کیدے شی چه اللّٰه تعالیٰ ته عذرونه پیش کړی او هغه ورله عذرونه قبول کړی نو په دے ایت کښ جواب دے. يٰۤاَيُّهَا الَّذِيْنَ كَفَرُوْا دلته عبارت داسے دے وَيُقَالُ لَهُمْ يَوْمَ الْقِيَامَةِ (او ویلے به شی دوی ته په ورځ دَ قیامت) چه اے کافرانو نن ورځ بهانے مه کوئ. نن دَ جزا دَ خپل عملونو نه نشئ بچ کیدلے.

أَنْ يُّكَفِّرَ عَنْكُمْ سَيِّاٰتِكُمْ وَيُدْخِلَكُمْ جَنّٰتٍ

لرے کړی ستاسو نه بدے ستاسو او داخل به کړی تاسو جنتونو ته

تَجْرِیْ مِنْ تَحْتِهَا الْاَنْهٰرُ يَوْمَ لَا يُخْزِی اللّٰهُ

چه بهیږی لاندے دَ هغے نه دَ لے په هغه ورځ چه نه به شرمنده کوی الله تعالیٰ

النَّبِیَّ وَالَّذِیْنَ اٰمَنُوْا مَعَهٗ نُوْرُهُمْ يَسْعٰی بَيْنَ

نبی لره او هغه کسانو لره چه ایمان ئے راوړے دے دَ هغه په ملګرتیا کښ ـ رڼا دَ دوی به منډے وهی

اَيْدِيْهِمْ وَبِاَيْمَانِهِمْ يَقُوْلُوْنَ رَبَّنَآ اَتْمِمْ لَنَا

مخے دَ دوی ته او په ښی طرفونو دَ دوی دوی به وائی اے ربه زمونږ پوره اوساتے موږ لره

نُوْرَنَا وَاغْفِرْ لَنَا اِنَّكَ عَلٰی كُلِّ شَیْءٍ قَدِیْرٌ ⑧

رڼا زمونږ او بخنه اوکړے موږ ته یقیناً ته په هر څیز باندے قدرت والا ئے ـ

۸ هرکله چه مخکښ ایت کښ معلومه شوه چه دَ عذاب دَ الله تعالیٰ نه په بهانو سره نجات نه حاصلیږی بلکه صرف په توبه سره نو اوس ترغیب ورکوی توبه کولو ته او توبه کول فرض عین دی په هرحالت کښ اوخصوصاً په حالت دَ ګناه کولو کښ ـ
تَوْبَةً نَّصُوْحًا دا دَ نصح نه ماخوذ دے دَ خیری نه پاکول یا په معنیٰ دَ جامے ګنډلو سره دے نو په اوله معنیٰ سره اخلاص په توبه کښ مراد دے او په دویمه معنیٰ سره دامناسبت دے چه په ګناه کولو سره تعلق دَ الله تعالیٰ سره او شلیدلونو داسے توبه پکار ده چه هغه بیا اوګنډلے شی او دَ توبه نصوح په تعریف شرعی کښ قرطبی د روویشت[۲۳] اقوال ذکر کړے دی ـ
او ابن کثیر دا قول غوره کړے دے چه توبه نصوح دا ده چه ګناه کول فی الحال پریږدی او په تیر شوی باندے پښیمانه شی او عزم اوکړی چه ګناه به نه کوی په مستقبل کښ او که حق دَ بنده وی نو هغه دِ ے ادا کړی او په توبه نصوح کښ دا اختلاف دے چه ایا دا شرط دے چه ترمرګه پورے به دغه ګناه نه کوی او یا داچه عزم اوکړی چه بیا به ئے نه کوی !
ظاهر دَ نور روایاتو نه دویم قول دے او په دے مقام کښ ر پاتے په بل مخ )

يَٰٓأَيُّهَا ٱلنَّبِيُّ جَٰهِدِ ٱلْكُفَّارَ وَٱلْمُنَٰفِقِينَ وَٱغْلُظْ

اے نبی جهاد کوه دَ کافرانو سره او دَ منافقانو سره او سختي اوکړه

عَلَيْهِمْ ۚ وَمَأْوَىٰهُمْ جَهَنَّمُ ۖ وَبِئْسَ ٱلْمَصِيرُ ⑨

په دوی باندے او ځائے دَ دوی جهنم دے او بد ځائے دَ ورګرځیدلو دے ۔

واقعه دَ نصوحا شخص موضوعي واقعه ده دَ ایت سره دَ هغې تعلق نیشته ۔
عَسَىٰ رَبُّكُمْ عسٰی دَ الله تعالیٰ دَ طرف نه دَ یقین دَپاره دے او په دے کښ دَ توبه نصوح دوه فائدے ذکر کوی اول دفع دَ ضرر چه سیئات معاف کیدل دی او دویم جلب دَ منفعت چه جنتونه او ر نړا حاصلول دی ۔ لَا يُخْزِي ٱللَّهُ ٱلنَّبِيَّ دَ دے ذکر دَ دے سورت په تیر شوے ایاتو سره مناسبت لری یعنی الله تعالیٰ خپل نبی دنیا کښ نه رسوا کوی بلکه دَ هغه مدد کوی لکه چه فان الله هو مولاه کښ ذکر شول نو دا رنګ په آخرت کښ ئے هم نه شرمنده کوی وَٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ هغه مؤمنان چه په دُنیا کښ ئے دَ نبی صلی الله علیه وسلم ملګرتیا کړیده لکه چه صالح المؤمنین مخکښ تیر شول ۔ نُورُهُمْ يَسْعَىٰ الخ دا سے په سورة حدید ۱۲ کښ ذکر شویدی او شمائلهم ذکر ئے نه دے کړے دَ دے وجے نه چه هغه طرف ته منافقان او کافران او جهنم دے یا دَ هغې ذکر ئے مقایسته پریخو دلے دے ۔
أَتْمِمْ لَنَا نُورَنَا په دے ایت کښ نور دَ اتباع دَ رسول او دَ توبة نصوح دے هر کله چه دَ منافقانو نور ناقص دے دَ دے وجے نه مؤمنان دَ اتمام نور دُعا غواړی ۔
وَٱغْفِرْ لَنَآ دُعا دَ مغفرت هر وخت دَ تعبّد دَپاره ده اګرچه ګناهونه دَ دوی معاف کړے شویدی یا مراد دَ مغفرت نه بخشش دَ صغائرو دے په دے خوف سره چه چرته دَ اتمام دَ نور نه مانع او نه ګرځی ۔
۹ دا دویم خطاب دے نبی صلی الله علیه وسلم ته ربط ئے اول خطاب سره دا دے چه اے نبی دَ مخلوق او دَ بیبیانو دَ رضا کولو کوشش مکوه بلکه هغوی ته دعوت ورکړه او دَ کافرانو او منافقانو سره جهاد اوکړه دا ډیر اهم دے دا رنګ ذکر شوه نرمي دَ نبی صلی الله علیه وسلم دَ کمزورے مخلوق سره چه زنانه دی نو اوس هغه ته حکم ورکوی په سختئ کولو دَ ناکاره خلقو سره ۔
جَٰهِدِ ٱلْكُفَّارَ وَٱلْمُنَٰفِقِينَ دا رنګ په سورة توبه ۷۳ کښ هم ذکر شوے دے ۔

ضَرَبَ اللّٰهُ مَثَلًا لِّلَّذِيْنَ كَفَرُوا امْرَاَتَ نُوْحٍ

بیان کړیدے اللہ تعالیٰ مثال کافرانو لرہ دَ ښځې دَ نوح علیہ السلام

وَّامْرَاَتَ لُوْطٍ ۭ كَانَتَا تَحْتَ عَبْدَيْنِ مِنْ

او دَ ښځې دَ لوط علیہ السلام وے دا دواړہ پہ نکاح دَ دوہ بندګانو کښں دَ

عِبَادِنَا صَالِحَيْنِ فَخَانَتٰهُمَا فَلَمْ يُغْنِيَا عَنْهُمَا

بندګانو زمونږ نہ چہ نیکان وُو نو نقصان اوکړو دوی دَ هغوی سرہ نو دفع نہ کړہ هغوی دَ دوی نہ

مِنَ اللّٰهِ شَيْـًٔا وَّقِيْلَ ادْخُلَا النَّارَ مَعَ الدّٰخِلِيْنَ ⑩

دَ عذاب دَ اللہ تعالیٰ نہ هیڅ څیز او اوویلے شو داخل شئ اُور تہ سرہ دَ داخلیدونکو نہ ۔

جهاد عام دے دَ قتال نہ۔ هر قسم کوشش او محنت صرف کول دَ پارہ دَ اشاعت او دَ غلبے دَ دین حق نہ جهاد ویلے شی وَ اغْلُظْ عَلَيْهِمْ دا متعلق دے دَ المنافقین سرہ او مراد دَ دے نہ دَ دوی اوصاف قبیحہ ذکر کول دی دوی نہ زور نہ ورکول او پہ دوی باندے حدود شرعیہ قائمول دی او دا امور دَ ښکارہ کافرانو سرہ نیشتہ یا واغلظ علیهم متعلق دے دَ دواړو سرہ نو مراد دَ دے نہ تشدد او کلک والے دے پہ دین کښں مقابلہ دَ دواړہ ډلوکښں پہ اقامۃ دَ حجۃ سرہ پہ دواړو باندے او پہ تخویفات دنیویہ او اخرویہ ذکر کولو سرہ ۔

سټ پہ دے کښں تنبیہ دہ زنانو تہ پشان دَ ابتدا دَ سورت پہ ایمان او توحید او پہ اتباع دَ رسول صلی اللہ علیہ وسلم سرہ یعنی کہ اے زنانو ستاسو خپلہ ایمان او عمل صالح نہ وی نو دَ خاوندانو عمل تاسو تہ فائدہ نہ درکوی او دا رنګ دا هم پہ تفسیر دَ جَاهِدْ وا او دَ وَاغْلُظْ دے او جواب دَ وهم دے چہ آیا مشرکانو زنانو او سړو تہ دَ موحدینو خپلولی څہ فائدہ ورکوی ؟

حاصل دَ جواب دا دے چہ خپلولی دَ نیکانو هیڅ فائدہ نہ ورکوی کلہ چہ دَ نیکانو نہ پہ عقیدہ او عمل کښں مخالفت وی لکہ چہ ښځې دَ نوح علیہ السلام او ښځې دَ لوط علیہ السلام تہ زوجیت دَ پیغمبرانو هیڅ فائدہ ورنکړہ ۔

امْرَاَتَ نُوْحٍ وَّامْرَاَتَ لُوْطٍ لفظ دَ زوجہ ئې نہ دے وئیلے ځکہ چہ دَ دوی دَ خاوندانو سرہ موافقت دَ عقیدے نوؤ صرف نکاح وؤ دپاتے پہ بل مخ )

وَضَرَبَ اللّٰهُ مَثَلًا لِّلَّذِیْنَ اٰمَنُوا امْرَاَتَ فِرْعَوْنَ

او بیان کړیدے الله تعالیٰ مثال مؤمنانو لره د ښځے د فرعون

اِذْ قَالَتْ رَبِّ ابْنِ لِیْ عِنْدَكَ بَیْتًا فِی الْجَنَّةِ

کوم وخت چه اُووئیل هغے اے ربه زما جوړ کړے ما لره ستا په خوا کښ کور ته په جنت کښ

وَنَجِّنِیْ مِنْ فِرْعَوْنَ وَعَمَلِهٖ وَنَجِّنِیْ مِنَ الْقَوْمِ

او بچ اوساتے ما لره د فرعون او د عمل د هغه نه او بچ اوساتے ما لره د قوم

او زوجه هغه مقام کښ ذکر کیږی چه د ښځے او خاوند موافقت وی۔

كَانَتَا تَحْتَ عَبْدَیْنِ اه په دے تعبیر کښ اشاره ده چه د دوی د هغوی سره شپه او ورځ محبت وؤ او ژوند د یو بل سره تیرول وؤ خدمت او د نکاح فائدے اخستل وؤ۔

او عبدین او صالحین دلالت کوی چه د انبیاء علیهم السلام کمال هم دا دے چه په هغوی کښ عبدیت د الله تعالیٰ د پوره اطاعت سره موجود دے۔

فَخَانَتَاهُمَا ابن کثیر وئیلی دی چه مراد د خیانت نه فاحشه او بدکاری کول نه دی ځکه د انبیاؤ بیبیانے د زنا نه پاکے دی اګرچه کفر او شرک یا نفاق پکښ وؤ او قرطبی وئیلی دی چه دا د مفسرینو اجماع ده۔ "چه د دے دواړو خیانت دا وؤ چه د خاوندانو نه ئے پټ کفر او شرک کوؤ۔ او د هغوی رازونه به ئے د هغوی دشمنانو ته رسول"۔

فَلَمْ یُغْنِیَا عَنْهُمَا اه قرطبی وئیلی دی چه دا تنبیه ده چه عذاب د الله تعالیٰ په طاعت سره دفع کیږی په وسیلو سره نه دفع کیږی او رد دے په مشرکانو باندے چه هغوی وائی چه نبی صلی الله علیه وسلم به زمونږ د پاره شفاعت کوی۔

وَقِیْلَ دا قول د الله تعالیٰ او د ملائکو د طرف نه دے د دے وجے نه فاعل ذکر کولو ته حاجت نیشته۔

مَعَ الدّٰخِلِیْنَ اشاره ده چه د دوی نسبت هغه انبیاؤ ته په شان د نورو مشرکانو پردو خلقو شو چه هغوی اور ته داخلیږی او د انبیاؤ شفاعت ورته هیڅ فائده نه ورکوی نو د غسے شان د دے بیبیانو هم اوګرځیدلو۔

الظّٰلِمِيْنَ ﴿۱۱﴾ وَمَرْيَمَ ابْنَتَ عِمْرٰنَ الَّتِيْٓ

| ظالمانو نه | (او بيان كړيدے مثال) دَ مريم | لور | دَ | عمران | هغه | زنانه |
|---|---|---|---|---|---|---|

ــلــ دا جواب دَ دويم وهم دے چه ايا نيكانو نارينو او زنانو ته دَ مشركانو خپلولی ضرر ورکولے شی؟ حاصل دَ جواب دا دے چه هركله دَ انسان عمل صالح وی نو دَ مشرک سره خپلولی او نكاح وغيره مؤمن ته هيڅ ضرر نه وركوی او دا دَ پوهے دَ مؤمنانو دَپاره يو مثال دَ دے وجه نه په دے كښ لِلَّذِيْنَ اٰمَنُوْا اُوئيلے شو او دا رنګ په دے مثال كښ تشجيع وركول دی مؤمنانو ته چه زنانه دَ فرعون دَ دين حق او اتباع دَ موسٰی عليه السلام دَپاره خپل خومره شجاعت ښكاره كړو او اخركار شهيده كړے شوه نو اے مؤمنانو په تاسو هم واجب دی چه دَ توحيد دَپاره دا سے شجاعت ښكاره كړئ.

اِمْرَاَتَ فِرْعَوْنَ دلته هم دَ تنبيه خاوند په كورنۍ كښ مخالفت دَ عقيدے دے دَ دے وجه نه زوجه ئے نه ده ذكر كړے. او په دے دواړو مثالونو كښ تعريض دے عائشه او حفصه رضی الله عنهما ته په اول كښ تحذير ورکوی چه دَ نبی صلی الله عليه وسلّم دَ مخالفت نه ځان بچ اوساتی او په دويم كښ ترغيب دے طاعت ته پښتان دَ امرأة فرعون او دَ هغے نوم اسيه لور دَ مزاحم وه او په موسٰی عليه السلام ئے ايمان راوړے وو. او فرعون دے لره قسما قسم سزا ګانے وركولے او اخركار ئے دَ هغے لاس او خپے اوتړلے او په سخت نمر كښ دَ هغے په بدن باندے ګرمے ګټے كيخودلے او په لاسونو او خپو ئے ورله ميخونه ټک وهل په دغه سخت حالت كښ هغے دا دُعا اوغوښتله رَبِّ ابْنِ لِيْ عِنْدَكَ بَيْتًا اه دليل دے چه په داسے حالت كښ الله تعالٰی ته تضرّع كول ډيره فائده وركوی او لفظ دَ عندك كښ اشاره ده هغه قول مشهور ته چه اَلْطُّبِ الْجَارَ قَبْلَ الدَّارِ (دَ كور نه وړاندے دَ همسايه معلومات اوكړه).

وَنَجِّنِيْ مِنْ فِرْعَوْنَ "دَ ده دَ مجلس او دَ نكاح نه".

وَعَمَلِهٖ مراد دَ دے نه عمل دَ كفر او دَ شرک دَ هغه دے يا دَ هغه دَ طرف نه عقوبت او ظلم كول دی.

مِنَ الْقَوْمِ الظّٰلِمِيْنَ مراد دَ دے نه قوم دَ فرعون دے چه هغه ټول ظالمان وو په سبب دَ كفر او شرک، او ظلم كوونكی وو په موحدينو بنی اسرائيلو باندے يا مراد دَ دے نه صرف هغه كسان دی چه دَ فرعون په امر ئے سزا وركوله دغه بی بی ته.

أَحْصَنَتْ فَرْجَهَا فَنَفَخْنَا فِيْهِ مِنْ رُّوْحِنَا

چه بچ یې اوساتلو عورت خپل نو پو کړه اوکړو مونږ په هغه کښې د روح د طرف نه زمونږ نه

وَصَدَّقَتْ بِكَلِمٰتِ رَبِّهَا وَكُتُبِهٖ وَكَانَتْ

او تصدیق کړے وو دے د کلمو د رب خپل او د کتابونو د هغه او دا وه

مِنَ الْقٰنِتِيْنَ ﴿۱۲﴾

د پوره تابعدارے کوونکو نه ۔

۱۲ دا دویم مثال دے د پاره د اهل ایمان او په دے کښې هم اول مقصد دا دے چه دشمنانو (یهودیانو) په مریم علیها السلام باندے طعنونه لګول لیکن هر کله چه هغه پاکدامنه وه او په کلماتو د الله یقین کوونکے وه نو طعنونو د دشمنانو هغې ته هیڅ ضرر ورنکړو د هغې په درجه عندالله کښې هیڅ نقصان رانغے دا رنګ مؤمن صالح داعي الی الله باندے که دشمنان د دین طعنونه او بهتانونه لګوی خو چه د هغه لمن پاکه وی او په کتاب د الله تعالیٰ باندے کلک وی نو هغه ته هیڅ ضرر او نقصان نشی رسولے۔ دا رنګ په دے کښې تشجیع ده مؤمنانو ته چه یو زنانه (ربے خاونده) د الله تعالیٰ د دین د پاره په ځان باندے مصیبتونه تیروی او دین بیانوی نو تاسو باندے خو د هغې نه زیات کوشش صرف کول پکار دی ځکه چه نارینه یئ او ابن قیم رحمه الله اعلام الموقعین کښې د دے امثالو خه تشریح کړے ده حاصل یې دا دے چه په دے کښې د درے قسمو زنانو ذکر دے اول قسم هغه چه خاوند یې مؤمن وی او ښځه کافره وی نو ایمان د هغهٔ ذے ښځے ته فائده نه ورکوی۔ دویم قسم هغه زنانه چه خاوند یې کافر وی او دا مؤمنه وی نو د خاوند کفر دیته ضرر نه رسوی۔ دریم هغه چه خاوند یې نیشته نه مؤمن او نه کافر نو دلے ښځے ته عدم د خاوند هیڅ ضرر نه ورکوی۔ الَّتِيْٓ اَحْصَنَتْ فَرْجَهَا اشاره ده چه یهودیانو په دے باندے په دروغه طعن د بد کارئ لګولے وو داخو پاکدامنه وه بلکه د نکاح او زنا دواړو نه یې خپل ځان بچ ساتلے وو۔ فَرْج نه مراد ګریوان د هغې د قمیص دے ځکه نفخ د روح د هغې په ګریوان کښې کړے شوے وو یا مراد د فرج نه معنی معروفه ده او فِيْهِ کښې مضاف محذوف دے یعنی فی جیب درعها او دا ئے په سورة الانبیاء ۹۱ کښې تیر شوی دی۔

سوال:- په هغه سورت کښ ضمير مؤنث (فيها) ذکر دے او دلته ضمير مذکر دے؟
جواب:- لفظ دَ فرج مذکر او مؤنث دواړه استعماليږی نو دَ لفظ دَ دواړه جهتو نو حق ادا کړے شو لکه لفظ دَ نفس شو. بيا هر کله چه په سورة الانبياء کښ لفظ مريم او بنت نۀ وو ذکر کړے نو ضمير دَ مؤنث ئے ذکر کړو دَ پاره دَ دفع کولو دَ احتمال دَ تذکير او په دے ايت کښ مريم او بنت صراحةً موجود دی نو ضمير دَ مؤنث ته ضرورت نه راځی فَنَفَخْنَا دَ دے نه مخکښ اَرْسَلْنَا اِلَيْهَا جِبْرَئِيْلَ فَتَمَثَّلَ لَهَا مقدر دے په قرينه دَ سورة مريم سره. وَصَدَّقَتْ بِكَلِمَاتِ رَبِّهَا امام فراء وئيلے دی چه مراد نۀ دينه احکام شرعيه دَ الله تعالىٰ دی چه په ذريعه دَ کلماتو سره په تورات او انجيل کښ نازل کړے شوی وو. او کلمات دَ جبريل چه په سورة مريم ۱۹ ۲۱ ۲۲ کښ ذکر دی هغه هم پکښ داخل دی او دَ دے صفت دَ وجه نه مريم ته صديقه وئيلے کيږی او دا مقام دَ کمال دَ ايمان دے. وَكَانَتْ مِنَ الْقَانِتِيْنَ دا مرتبه دَ کمال دَ عمل ته اشاره ده يعنی قوة علميه ايمانيه او عمليه پکښ دواړه کامل وو. وَكَانَتْ پخپله معنی سره دے او مراد دا دے چه دَ عمل په لحاظ سره دا دَ قانتينو نه وه او مِنْ په دے معنی سره تبعيضيه دے يا كَانَتْ په اعتبار دَ ولادت او دَ نسب سره دے او من په معنی دَ ابتداء سره دَ او القانتين نه مراد خاندان دَ دے دے، چه اولاد دَ هارون عليه السّلام په بنی اسرائيل کښ په ډيرے تقوی او قنوت سره مشهور وو.
سوال:- القانتين مذکر ذکر شو دَ دے وجه څه ده؟
جواب:- لفظ دَ قوم پټ دے يعنی قوم قانتين يا اشاره ده چه دَ دے اطاعت او اخلاص خالص پښتانۀ دَ نارينو وو په شجاعت او حسن بيان کښ.
الحمد لله، ختم شو تفسير دَ سورة تحريم، ثم الحمد لله چه اتم جلد اختتام ته او رسيدو.

يا الله دَ دے تفسير په ليکونکو رحم اوکړے آمين.
کاتب: ارقم جان
کلے حسن خيل بخشی پل
پيښور،

# فهرست تفسیر احسن الکلام جلد ۸


| نمبرشمار | عنوان | صفحه |
|---|---|---|
| | **سوره الاحقاف** | |
| :۱ | ربط، دعوی او خلاصه دسورت احقاف | ۱ |
| :۲ | موده د رضاعت | ۱۱ |
| :۳ | فائدے متعلق د ۲۰ آیت سره | ۱۶ |
| :٤ | تفسیر د الاحقاف | ۱۷ |
| :۵ | اتخذ و من دون الله تفسیر | ۲۱ |
| :٦ | طریقه د دعوت | ۲۲ |
| :۷ | مسئله د جناتو د خول جنت ته | ۲۳ |
| | **سوره محمد** | |
| :۸ | ربط، دعوی او خلاصه | ۲۷ |
| :۹ | درے حالات د شهید انو | ۳۰ |
| :۱۰ | دوه حالات د کافرانو | ۳۲ |
| :۱۱ | تقابل د فریقینو په جزا کښې | ۳۵ |
| :۱۲ | واړه علامات دقیامت | ۳۸ |
| :۱۳ | مقصد د مثال | ۳۹ |
| :۱٤ | څلور حالات د منافقینو | ٤۰ |
| :۱۵ | نتائج د اعراض کتاب الله نه۔ | ٤۱ |
| :۱٦ | دوه فائدے متعلق د ۲٤،۲۳ آیت سره | ٤۲ |
| :۱۷ | سوال جواب متعلق د ۳۰ آیت سره | ٤٦ |
| :۱۸ | لعبٌ ولهوٌ مفهوم | ٤۹ |
| | **سوره الفتح** | |
| :۱۹ | ربط، دعوی او خلاصه | ۵۲ |
| :۲۰ | فائدے متعلق د ۳،۲ آیت سره | ۵۳ |
| :۲۱ | انزال د سکینے په مؤمنانو باندے | ۵۵ |
| :۲۲ | مسئله د زیادت د ایمان۔ | ۵۵ |
| :۲۳ | څلور فائدے متعلق د ۹ آیت سره | ۵۹ |
| :۲٤ | ید الله معنی | ٦۰ |
| :۲۵ | واقعه د بیعت رضوان | ٦۸ |
| :۲٦ | لس صفات د صحابه کرامو۔ | ۷۸ |
| | **سوره الحجرات** | |
| :۲۷ | ربط، دعوی او خلاصه | ۸۳ |
| :۲۸ | مراد د فاسق نه | ۸۹ |
| :۲۹ | د ظن معاني | ۹۸ |